## د اراضی په انتقال نه کولو باندې هم مبیع د مشتری ملکیت دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې حاجی میان او د هغه خور حسن جان خپل پنځلس کناله او درې مرلې ځمکه د دوه ګواهانو په مخکې محمد اسلم باندې خرڅه کړه. ګواهان اوس وفات شوې دی. او پیسې ئې هم وصول کړی دی. هغه وخت د اشتمال اراضی په وجه باندې انتقال وغیره بند وو په دې وجه هغه وخت د ځمکې انتقال د محمد اسلم په نوم باندې ونشو خو په ټوله ځمکه باندې ئې قبضه وکړه. د انتقال د آزادیدو نه پس کله چې محمد اسلم د مبیع دانتقال مطالبه وکړه نو دواړه ورور خور د زمکې د بیع نه منحرف شو، د ډیرو لانجو نه پس د اته کناله او درې مرلو انتقال وشو خو د اووۀ کنالو نه انکاری شو. د حاجی میان د وفات نه پس د درې نیمو مرلو ځمکه د میراث په طور د هغوی لور ریشم جان ته ملاؤ شوه او نوره درې نیم کناله محمد اسلم ته ملاؤ شوه. آیا د شریعت په رڼا کې اووۀ کناله ځمکه محمد اسلم ته ملاویدل پکار وو؟

۲: کوم میراث چې محمد اسلم ته ملاؤ شو د هغه دپاره دا جائز دې یا نه؟

۳: د خپل متوفی پلار د آخرت د برابرولو دپاره ریشم جان له دا ځمکه د هغې شرعی مالک محمد اسلم ته حواله کول پکار دی یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفق:** محمد اسلم پرنسپل فلینګ فیکټری P.O.F واه کینټ. ۱۹۸۶ء/۶/۲۴

**الجواب:** د صدق او ثبوت په شرط دا ټوله ځمکه د هغه مشتری ملکیت دی په دې کې د ریشم جان هیڅ شرعی حق نشته (۱) **وهوالموفق**

---

۱) وفي شرح المجلة: البيع ينعقد بايجاب وقبول.
(شرح المجلة ۲:۲۷ المادة: ۱۶۷ الفصل الاول فيما يتعلق بركن البيع)
وفي الهندية: واما حكمه فثبوت الملک في المبيع للمشتري وفي الثمن للبائع.
(هندية ۳:۳ كتاب البيوع، الباب الاول في تعريف البيع وركنه الخ)

## په کاغذاتو کښې د بل چا په نوم باندې اخستلو کې د مشتري په ملکیت باندې هیڅ اثر نه پریوځي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زما په دوه ترونو کې یو مشر دې او دویم کشر، چې دواړه وفات شوې دی. والد صاحب د هغوی مینځنې ورور وو، دې درې واړو د پلار په مشرئ کې کارونه کول. یعنی په شراکت کې هغوی پیسې جمع کړې او د ځمکې د اخستلو پروګرام ئې جوړ کړو، زمونږ د مشر تره وادهٔ د کلی نه درې څلور میله لرې په موچند نومې ځای کې وشو او هلته هغه ته ځمکه د اخستلو دپاره ملاؤ شوه خو چونکې انتقال زمونږ د نیکهٔ په نوم باندې ونشو په دې وجه د مشر ترهٔ د ښځې په نوم وکړې شو په دې شرط چې د شفعې نیته تیره شی نو دا ځمکه به زمونږ په نوم لیکلې شی خو کله چې نیته راغله نو قباله غلط قسم وه او د بل سړی په نوم باندې وه، عدالت دا فیصله وکړه چې په دې دوران کې یعنی په خاص موده کې هغه سړې حاضر نه شو نو جائیداد به ستاسو وی، جائیداد تقریبا لس مرلې او یو کنال دی او بل چې مونږ کوم اخستلې وو هغه یو مرله او یو کنال دې او هغه هم د هغه زنانه په نوم دې، اوس تقریبا شل کاله د دې خبرې وشو هغه زنانه په دې جائیداد باندې قابض ده او انتقال د هغې په نوم باندې دې، په شریعت کې د دې فیصلې څه حکم دې؟ مهربانی وکړئ د دې مسئلې جواب را کړئ. بینواتوجروا

المستفتی: مظفر خان پشاور ۱۹۷۲ء/۲/۳۰

**الجواب:** په صورت مسئوله کې که ایجاب او قبول یا تعاطی، د هغه ورونو او د بائع ترمینځه متحقق شوې وی نو بیشکه دا ځمکه به د دې ورونو ملکیت وی.[۱] په دې زنانه باندې ضروری ده چې دا ځمکه باقاعده د خپل

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: (قوله وحكمه ثبوت الملك) اي في البدلين لكل منهما في بدل وهذا حكمه الاصلي والتابع وجوب تسليم المبيع والثمن.
(ردالمحتار ۴:۶ كتاب البيوع)

نوم نه منتقل کړی او که دې ورونو د هغه زنانه په نوم باندې اخستلې وی نو بیا هم دا حکم دې. (لما فی الدر المختار فی فصل الفضولی والحاصل انه بیعه موقوف الا فی هذه الخمسة فباطل قید بالبیع لانه لو اشتری لغیره نفذ علیه، قال العلامة الشامی ای علی المشتری. (١٣٤/٤)) (١) او که هغې زنانه په خپل نوم باندې اخستلې وی نو دا ملکیت د هغې زنانه دې او پیسې به په هغې باندې قرض وی (٢) فقط. وهوالموفق

## په سیل (بند)شوي څیزونوکې د ملاوټ په صورت کې مجرم څوک دې؟

**سوال:** څه فرمائی علماء دین په دې مسئله کې چې د حکومت رجسټر شوې ادارې، چې د هغوی نه حکومت ټیکس اخلی، د هغه ادارو سربند مهر شوې څیزونه مثلا چائې د چینو بند سیل شوې بورئ، د وریژو سیل شوې بورئ، کورکمان، مرچ، مصالحه جات، په بندو ډبو کې بسکټ وغیره څیزونه دکاندار په دې بند حالت کې د دې ادارو نه یا د لویو دکاندارانو نه اخلی او بیا ئې وړاندې خرڅوی، بیا د دې وړو دکاندارانو نه نمونې حاصلولو سره

---

١) (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ٤: ١٥٦ فصل في الفضولي)

وفي الهندية: اذا باع الرجل مال الغير عندنا يتوقف البيع علي اجازة المالک ... ولو اشتري لغيره نفذ عليه.

(فتاوي هندية ٣: ١٥٢ الباب الثاني عشر في احكام البيع الموقوف)

وفي الخلاصة: اذا اشتري شيئاً لغيره هذا علي وجوه ان قال البائع بعت هذا من فلان وقال الفضولي قبلت او اشتريت لفلان اولم يقل لفلان يتوقف ولو قال بعت منک فقال الفضولي اشتريت او قبلت لفلان لا يتوقف وينفذ عليه بالاتفاق.

(خلاصة الفتاوي ٣: ٨٤ كتاب البيوع، شراء الفضولي)

٢) وفي الهندية: واما حكمه فثبوت الملک في المبيع للمشتري وفي الثمن للبائع اذا كان البيع باتا. (فتاوي عالمگيرية ٣: ٢ كتاب البيوع، الباب الاول)

ئې د حکومت کارکنان یوسی که په هغې کې ملاوټ وی نو لویه جرمانه وصولولې شی، د پوښتنې مسئله داده چې آیاپه دې صورت کې شرعا ماخوذ دواړه دکانداران دی یا هغه اداري کوم چې دې ځیزونو لره سیل کولو سره مهرلګولونه پس دکاندارانو باندې خرڅوی حال دا چې په بندو ځیزونو کې د ملاوټ تقریبًادې دکاندارانوته علم نه وی، شرعا وضاحت وفرمایئ؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد اسماعیل آف ایبټ آباد......یکم اکتوبر ۱۹۸۸ء

**الجواب:** په ملاوټ باندې د علم کیدو نه پس که دا دکاندار اخستونکی ته د ملاوټ (خلط کولو) نقص ښکاره کړی نو دا دکاندار صرف قانونی مجرم دې اسلامی مجرم نه دې (۱) والله اعلم بالصواب

## د ایجاب او قبول نه بغیر صرف نرخ مقرر کول بیع نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام په دې مسئله کې چې مونږ د خپل جائیداد اختیار نامه عمر حیات ته ورکړې وه، په کرک کې مو د افسر دستخط هم واخستلو، او بیا کراچئ ته د روزګار دپاره لاړم نو عمر حیات ډیر په ارزان قیمت باندې معراج ګل ته د دوه زره او دوه سوه روپئ کنال په حساب سره ورکړه، مونږ ته په کراچئ کې چا د دې خبر راکړو او ویې ویل چې که تاسو ۱۲/۲/۸۰ باندې د کرک جج ته ونۀ رسیدلې نو ستاسو دغه درې کناله او اووۀ مرلې زمکې تصدیق به خرڅ شی (۲) لهذا مونږ د کراچئ نه د کرک د

---

۱) وعن ابي هريرة رضي الله عنه ان رسول الله ﷺ قال من حمله علينا السلاح فليس منا ومن غشنا فليس منا (الصحيح لامام المسلم ۱: ۷۰ باب قول النبي ﷺ من غشنا فليس منا)

وفي شرح المجلة: اذا ذكر البائع ان في المبيع عيب كذا وكذا وقبل المشتري مع علمه بالعيب لا يكون له الخيار بسبب ذلک العيب.

(شرح المجلة ۲: ۳۰۲ المادة: ۳۴۱ اذا ذكر البائع ان في المبيع عيب)

۲) ما في الجواب ددې جملې نه مستنبط معلومیږی. (مفتی سیف الله حقانی)

جج په نوم باندې درخواست وليږلو چې دا اختيار نامه ختمه (Cancel) شي او تصديق هم، نو جج دواړه ختمه (Cancel) کړل. اوس عرض دا دې چې دا څمکه د معراج گل شوه او که زمونږه؟ بينواتوجروا

المستفتي: مير سليمان صورق کله کرک.....٢٥ ربيع الاول ١٤٠٢هـ

**الجواب:** په صورت مسئوله کې ظاهرا صرف نرخ مقرر کړې شوې دې او وعده کړې شوې ده نه ايجاب او قبول شوې دې او نه تعاطى شوې ده. دې معاملې ته به بيع نه شى ويلې.(١)

**نوټ:** موکل کله چې وکيل معزول کړي او اختيار نامه منسوخ کړي نو وکيل پردې شي او د هغه اختيار ختم شي.(٢) وهوالموفق

## د بليک تعريف او د هغې حکم

**سوال:** څه فرمائى علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د بليک څه تعريف دې؟ او دا جائز دې او که ناجائز؟ د دې په تفصيل ليکلو باندې د شکريه ادا کولو موقع راکړئ؟ بينواتوجروا

المستفتي: محمد شريف تحصيل هنگو. ټل ضلع کوهاټ.....٢٨ محرم ١٤٠١هـ

**الجواب:** د کومو څيزونو اخستل خرڅول چې حکومت ممنوع کړې وى نو د

---

(١) قال العلامة الحصکفي: وشرعا مبادلة شيئ مرغوب فيه بمثله... علي وجه مفيد مخصوص اي بايجاب او تعاط... ويکون بقول او فعل.

(الدرالمختار ٤: ٥٤ کتاب البيوع، قبيل مطلب شرائط البيع الخ)

(٢) قال العلامة المرغيناني: للموکل ان يعزل الوکيل عن الوکالة لان الوکالة حقه فله ان يبطله... فان لم يبلغه العزل فهو علي وکالته تصرف جائز حتي يعلم لان في العزل اضرار به من حيث ابطال ولايته.

(الهداية ٣: ١٩٩ باب عزل الوکيل)

هغې اخستلو او خرڅولو ته بلیک او سمګلنګ (غلا) وائی.(۱) په موجوده دور کې بلیک کول صرف قانونی جرم دې ځکه چې په دې سره انتظام ته نقصان رسیږی په کومو ملکونو کې چې د ارتداد دروازې خلاصې وی او د اسلامی نظام نه مخالفت او مقابله ممنوع نه وی نو په داسې ملکونو کې به بادشاهان د څه کردار په صله کې واجب الاطاعة شی؟(۲) وهوالموفق

## د ځمکې په کم راختلو مشتری بائع ته رجوع کولې شی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام په دې مسئله کې چې یو سړی خپله ځمکه خرڅه کړه نو د هغه نزدې ګاونډی په خرڅه شوې ځمکه باندې شفعه وکړه نو په شفعې سره ځمکه هغه ته ملاؤ شوه د ځمکې اولنې قیمت زر روپئ فټ مقرر وو، هم په دې قیمت باندې هغه ځمکه واخستله، اول مشتری ته هغه پنځه سوه روپئ پرینبودلې وې یعنی په پنځه نیم زره ئې خرڅه کړې وه او د خرڅولو په وخت بائع ویلې هم وو چې ځمکه ناپ کړئ، خو دویم مشتری وویل چې هیڅ ضرورت نشته د دې نه وروستو کله چې ځمکه ناپ کړې شوه نو یو نیم فټ کمه وختله آیا د دې پیسې واپس کیدې شی؟ بینواتوجروا

**المستفق:** حضرت جمال حقانی خطیب جی ټی ایس لوشهره... ۲۵/۷/۱۹۸۵ء

---

۱ ﴾ قال المولوي فيروز الدين : بلیک مارکیټ: د مقرره قیمت نه په زیاده قیمت باندې په پټه مال خرڅول (فيروز اللغات ۲۱۴ ب، ل)

۲ ﴾ وقال الدكتور وهبة الزحيلي : وحدد الماوردي واجبات المسلمين نحو الحاكم بامرين وهما، (۱)الطاعة في غير معصية، (۲) النصرة مالم يتغير حاله، فقال اذا قام الامام بما ذكرنا من حقوق الامة فقد ادي حق الله تعالي فيما لهم وعليهم، ووجب له عليهم حقان الطاعة والنصرة مالم يتغير حاله... وبذل الطاعة مشروط بقيام الحاكم بواجباته التي ذكرت سابقا ومضمونها التزام اوامر الشريعة. ( الفقه الاسلامي وادلته ۸: ۶۱۹۰ حقوق الامام الحاكم)

**الجواب:** که د فتوارئ په حساب سره اخستل خرڅول شوي وي نو دويم مشتري به په هغه بائع باندې رجوع کوي.(١) **وهوالموفق**

## په دروغه باندې حاصل شوې مال مملوک وی

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې يو سړی د يو ډسترکټ ممبر نه سيمنټ پرمټ (رسيد) دوه سوه د سيمنټو بورئ د دې غرض دپاره واخستلې چې پنځوس بورئ به خپله استعمالوم، او باقی يو نيم سل بورئ به په ګټه باندې خرڅوم يا د مدرسې دپاره به ئې خرڅ کړم؟ نو آيا دا ګټه د ذاتی اخراجاتو دپاره لګول جائز دی يا نه؟ **بينواتوجروا**

**المستفتی: حافظ محمد ايوب...... ٣٠ رجب ١٤٠٥هـ بمطابق ٢١ اپريل ١٩٨٥م**

**الجواب:** دروغ ويونکې مجرم او ګنهګار وی.(٢) خو په دروغو ويلو سره اخستل شوې مال مملوک وی دا مالک د دې د اخستلو او خرڅولو مختار وی. **وهوالموفق**

---

١) قال العلامة الحصكفي: وان قال في بيع المذروع كل ذراع بدرهم اخذ الاقل بحصته بصيرورته اصلا بافراده بذكر الثمن او ترک لتفريق الصفقة،(درمختار).وقال العلامة ابن عابدين: (قوله المذروع )كثوب وارض(درمنتی).
(درمختار مع ردالمحتار ٤: ٣٤،٣٥ كتاب البيوع)
وقال العلامة الكاساني: وعلي هذا جميع المذروعات من الارض والخشب... وان سمي لكل ذراع ثمنا علي حدة بان قال كل ذراع بكذا فالبيع جائز... وان وجده انقص تسقط حصته من الثمن.
(بدائع الصنائع ٤: ٣٦٣ كتاب البيوع، حكم المذروعات من الثوب والارض)
٢) قال العلامة ابن عابدين: ان كل مقصود محمود يمكن التوصل اليه بالصدق والكذب جميعا فالكذب فيه حرام. (ردالمحتار ٥: ٣٠٢ قبيل كتاب أحياء الموات)

## په لرګی اخستلو کې یو فیصده حصه بغیر د پیمائش نه ورکول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په علاقه وانا (وزیرستان) کې په بعض منډو کې د لرګو سوداګر کله چې لرګې اخلی نو په پیمائش کې مثلا یو فیصده حصه بغیر د پیمائش نه اخلی، بعض علماء کرام دې ته ربوا وائی، لهذا شرعا دا معامله څنګه ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم......طالب علم حقانیه

**الجواب:** چونکې د پیمائش په ذریعه صرف قیمت معلوموملې شی او مبیع مجموعه لرګې وی نه هر یو فټ، لهذا په دې معامله کې هیڅ ګناه نشته خصوصا کله چې دعرف په بناء دا اکرام او مسامحه کې داخل دې (۱)، (۱)

وهوالموفق

---

(۱) عن جابر بن عبد الله رضي الله تعالي عنهما ان رسول الله ﷺ قال رحم الله رجلا سمحا اذا باع واذا اشتري واذا اقتضي.

قال العلامة العيني رحمه الله تعالي : تحت هذا الحديث: وفيه الحض علي المسامحة وحسن المعاملة.

(عمدة القاري شرح الصحيح للامام البخاري ۱۸۹،۱۸۸:۱۱ باب السهولة والسماحة في الشراء والبيع)

قال العلامة سليم رستم باز: حط البائع مقدارا من الثمن المسمي بعد العقد صحيح ومعتبر. (شرح المجلة ۲: المادة ۲۵۶)

وقال رحمه الله تعالي: كذلک لو باع من ارضه الف ذراع بعشرة آلاف قرش ثم بعد العقد زاد البائع مائة ذراع وقبل المشتري في المجلس فتملک رجل الارض المبيعة بالشفعة كان لهذا الشفيع اخذ جميع الالف ومائة ذراع المبيعة والمزيدة بعشرة آلاف قرش. (شرح المجلة ۱۸۵: ۲ المادة ۲۵۸)

وقال ايضا : اذا حط البائع من ثمن المبيع مقدارا كان جميع المبيع مقابلا للباقي من بعد التنزيل والحط مثلا لو بيع عقار بعشرة آلاف قرش ثم حط البائع من الثمن الف قرش كان ذلك العقار مقابلا لتسعة آلاف قرش الباقية.

(شرح المجلة ١٨٧:٢ المادة ٢٦٠)

١ ﴾ او عرف شرعاً معتبر دي، په عقود رسم المفتي كي دی

والعرف في الشرع له اعتبار

ولذا عليه الحكم قديدار

(مفتی سیف الله حقانی)

# باب البيع الفاسد والباطل

## د عقد بیع په وخت د ثمن د نه معلومیدو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید د مکئ (گیدئ) په عمر باندې خرڅې کړې. د خرڅولو په وخت زید اخستونکی ته وویل چې د دې حجم د عام (گیدو) نه زیات دې. مشتری وویل صحیح ده زیات دې خو قیمت مقرر نه شو. تقریبا څلور میاشتې پس ئې یو بل سره حساب وکړو نو اخستونکی عمر د زیات قیمت د ورکولو نه انکار وکړو او وبې ویل چې زه خو به د عام قیمت مطابق پیسې درکوم. د دې شرعی حل څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی محمد فهیم احاطه نمبر ۱۲ سرور روډ نوښار

۵ ربیع الاول ۱۴۰۴ھ بمطابق ۱۱ دسمبر ۱۹۸۳ء

**الجواب:** دا بیع فاسد ده (۱) په مشتری باندې ضروری ده چې مناسب قیمت بائع ته ورکړی (۲) والله اعلم

---

۱) و في الفتاوي الخانيه: و لو باع و سكت عن ذكر الثمن كان فاسدا. (الفتاوي الخانيه علي هامش الهندية ۱۳۴: ۲فصل في البيع الباطل) (و مثله في تنقيح الحامدية ۲۶۰: ۱)

و في الدرالمختار: و فسد بيع ما سكت اي وقع السكوت فيه عن الثمن كبيعه بقيمته. (در مختار ۱۱۸: ۴باب البيع الفاسد)

۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالي: و اذا قبض المشتري المبيع برضا بائعه صريحا او دلالة في البيع الفاسد ولم ينهه البائع عنه ملكه بمثله ان مثليا و الا فبقيمته يعني ان بعد هلاكه او تعذر رده يوم قبضه.

(در مختار مختصرا ۱۳۸: ۴، ۱۳۹، ۱۴۰ قبيل مطلب ردالمشتري فاسدا الي بائعه فلم يقبله)

## د هبه کړې شوې ځمکې د خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې آیا هبه کړې شوې ځمکه خرڅیدلې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: شوکت علی خیبر بازار پشاور..... ١٩٧٥ء/٨/٢٧

**الجواب:** د باقاعده هبه کیدو نه پس موهوب له هغه موهوبه ځمکه خرڅولې شی. لانهاسبب الملك عند القبض.(١) وهوالموفق

## د نهر د اوبو خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو نهر د څلورو کسانو دې د هغې په شروع کې یوه ځمکه ده د چا حق چې په هغه نهر کې نشته، اوس په دې څلورو کسانو کې درې کسان په دې نهر کې حق نه لرونکی باندې اوبه خرڅوی خو یو سړې انکار کوی نو آیا د دې اوبو په دې صورت کې خرڅول جائز دی. بینواتوجروا

المستفتی: وزیر محمد بلوچستانی...١٤٠١/٦/١٨

**الجواب:** دا بیع ناجائز ده، اوبه د احراز نه مخکې نه شی خرڅولې.

---

١) و في الهندیه: و اما شرائطها ... منها ان یکون الموهوب مقبوضاحتي لا یثبت الملك للموهوب له قبل القبض واما حکمها فثبوت الملک للموهوب له.

(فتاويٰ هندیه ٣٧٤: ٤کتاب الهبه ،الباب الاول في تفسیر الهبه)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: و شرط المعقود علیه ستة ... کون الملک للبائع فیما یبیعه لنفسه... فلم ینعقد بیع ما لیس مملوکا له.

(ردالمحتار ٦: ٤کتاب البیوع ، مطلب شرائط البیع انواع اربعة)

لعدم الملك عليه، كما في شرح المجلة ص۸۸(١) وهوالموفق

## د شرابو اخستل او خرڅول او د جوارئ نه د حاصل شوی مال حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په کفارو باندې د شرابو خرڅول جواز لري او که نه؟ او د جوارئ نه د حاصل شوې مال څه حکم دې؟ **بينواتوجروا**

المستفتی: خټک اپریشن انګلینډ.... ۱۹۷۶/۳/۱۷ء

**الجواب:** د مسلمان دپاره د شرابو خرڅول حرام او بيع باطل ده اګر چې په کفارو باندې خرڅولې شی، د دې متعلق حديث هم راغلې دې ( وهوان رسول الله ﷺ حرم بيع الخمر والميتة والخنزير والاصنام...... متفق عليه)(٢) او روايات فقهيه هم راغلی دی، (٣) بله دا چې د جوارئ په ذريعه حاصل شوې مال حرام دې، قال الله تعالى في حقه: رجس من عمل الشيطان.(٤) د مردارې او د شرابو حکم يو دې لکه چې په مخکې حديث کې صراحت دې. داسې مالونه خپلو مالکانو ته واپس کول ضروری دی او د مالکانو د نه کيدو په وخت ئې په مسکينانو طالبانو وغيره باندې صدقه کول ضروری دې (٥) په دې کې زکاة وغيره نه واجبيږی. وهوالموفق

---

١) و قال العلامة خالد الاتاسي رحمه الله تعالیٰ: و بقي عليه من الشروط الستة المذكورة الشرط الرابع و هو كونه مملوكا في نفسه فيبطل بيع ما ليس بمملوک في نفسه كالحر ... والماء في نهر و بئر والصيد والحطب والحشيش قبل الاحراز (شرح المجله ۸۸: ۲، المادة ۱۹۹)

٢) (مشكوٰة المصابيح ۲۴۱ باب الكسب و طلب الحلال)

٣) و قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالیٰ: و بطل بيع مال غير متقوم كخمر و خنزير و ميتة. (الدر المختار ۱۱۶،۱۱۵: ۴ باب البيع الفاسد)

٤) (سورة المائدة آيت ۹۰)

٥) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالیٰ: والحاصل انه ان علم ارباب الاموال وجب رده عليهم والا فان علم عين الحرام لا يحل له و يتصدق به بنية صاحبه. (ردالمحتار ۱۴۶: ۴ مطلب فيمن ورث مالا حراما)

## د ونو د اخستلو او خرڅولو حکم

**سوال:** مایقول العلماء فی المسئلة الأتیة:(١) هل یجوز بیع الاشجار فی الارض الموقوفة قبل القلع املا؟(٢)فی صورة الایجاب ماذانفعل بثمنه؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم ........١٠ جمادی الثانی ١٤٠٥ھ

**الجواب:** جازبیع الاشجارمطلقاً اذاکان موضع القلع معلوماً،نعم لایجوزاذابیعت مع الارض الموقوفة، وعرف دیارنا البیع بلا ارض وکذا مع الاصل الداخل فی الارض فلاخفاء فی الجواز، هذا هو مأخوذ من جزئیات کتاب البیوع وکتاب الوقف من ردالمحتار (١) والهندیه(٢) والخلاصة(٣) فلیراجع. وهوالموفق

---

١ ﴾ قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعاليٰ: اشتريٰ شجرة للقلع يؤمر بقلعها بعروقها و ليس له حفر الارض الي انتهاء العروق بل يقلعها علي العادة الا ان شرط البائع القطع علي وجه الارض... و لو اشتريٰ نخلة و لم يبين انها للقلع او للقرار، قال ابو يوسف: لا يملك ارضها و ادخل محمد ما تحتها و هو المختار و ان اشتراها للقطع لا تدخل الارض اتفاقا و ان للقرار تدخل اتفاقا.

(رد المحتار ٤٢: ٤مطلب في بيع الثمر والزرع ، الشجر مقصودا)

٢ ﴾ و في الهنديه: اشتريٰ اوراق التوت ولم يبين موضع القطع لكنه معلوم عرفا صح .(هنديه ١٠٧ : ٣الفصل الثاني في بيع الثمار و انز ال الكروم )

٣ ﴾و في الخلاصة : و اما بيع الاشجار الموقوفة مع الارض فلا يجوز قبل القلع كبيع الارض و بعد القلع يجوز و هكذا نقل عن الفضلي رحمه الله تعاليٰ و قال ايضا الاشجار الموقوفة اذا كانت غير مثمرة يجوز بيعها قبل القلع لانها هي الغلة.

(خلاصة الفتاويٰ ٤١٩ : ٤كتاب الوقف )

## د وینې د اخستلو او خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې نن صبا زمونږ په علاقه کې په بعض ځایونو کې د ځناورو وینه خرڅیږي بیا هغه په نورو ځیزونو کې ګډولو سره د چرګانو فارم باندې خرڅوی، په شریعت کې د دې حکم څۀ دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: صوفی محمد یعقوب باره هوتی مردان ...... ۱۲ ذوالقعده ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** واضحه دې وی چې د وینې اخستل او خرڅول حرام دی. کمافی شرح التنویر وبطل بیع ما لیس بمال کالدم المسفوح، هامش رد المحتار ۱۰۰/۴ (۱) وبمعناه فی جمیع کتب الفقه. (۲) پس په صورت مسئوله کې چونکې وینه په هر صورت کې باقی ده د هغې حقیقت نه بدلیږي او بله دا چې څه ضرورت هم ورته نشته لهذا دا معامله حرامه ده. بخلاف ما تغیر الی المسك. (۳) وبخلاف المعالجة بها عند الضرورة. وهوالموفق

---

۱) (الدر المختار علي هامش ردالمحتار ۱۱۲: ۴باب البیع الفاسد)

۲) وفي الهندية: فالباطل ما لم يكن محله ما لا متقوما كما لو اشتري خمرا او خنزيراً او صيد الحرم او الميتة او دما مسفوحا فهو لا يفيد الملك.

(الفتاوي الهنديه ۱۴۶: ۳الباب الحادي عشر في احكام البيع الغير الجائز)

و في شرح المجلة: فبيع الميتة والدم والحر باطل و كذا البيع به.

(شرح مجلة ۱۰۳: ۲المادة ۲۱۰بيع مالايعد مالا بين الناس والشراء به باطل)

وقال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالي: (قوله لم يجز بيع الميتة والدم) لانعدام المالية التي هي ركن البيع. (البحر الرائق ۷۰: ۶باب البيع الفاسد)

۳) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالي: (قوله طاهر حلال) لانه و ان كان دما فقد تغير فيصير طاهرا كرماد العذرة خانية، والمراد بالتغير الاستحالة الي الطيبية و هي من المطهرات عندنا...(قوله فيؤكل بكل حال )اي في الاطعمة والادوية لضرورةاو لا.

(ردالمحتار ۱۵۳: ۱مطلب في المسک والزباد والعنبر)

## د ریډیو د اخستلو او خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام په دې مسئله کې چې (۱) یو سړې وائی چې زه ریډیو اخلم صرف د خبرونو دپاره، د ریډیو اخستل څنګه دی؟
(۲) دویم سړې وائی چې زه د بل چا د ریډیو نه خبرونه اورم په دې کې ګناه شته یا نه؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی: عبدالحق آف مصری بانډه**

**الجواب:** (۱) چونکې ریډیو یوه آله ده د آواز د راښکلو لهذا د دې اخستل چې صرف د خبرونو دپاره وی جائز دی، خو داسې خلق ډیر کم دی.
(۲) او چونکې خبرونه اوریدل څه ګناه نه ده لهذا دا سړې مجرم نه دې.

**نوټ** : چونکې دا د ګانې بجانې دپاره استعمالولې شی لهذا عام طور سره به د دې اخستل او خرڅول حرام وی.(۱) **وهوالموفق**

## د ډپو هولډر څیز بچ کولو سره وړاندې خرڅول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د ډپو هولډر ته بعض حقدار افراد هغه ته د چینو اخستلو دپاره نه راځی او د بعضو سره ټال مټول کوی، بهر حال د ډپو د کهاتې نه څه چینی بچ کولو سره هغه د عمرو په

---

(۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالي: و قد منا ثمه معزيا للنهر ان ما قامت المعصية بعينه يكره بيعه تحريما و الا فتنزيها.
(الدر المختار علي هامش ردالمحتار ۵:۲۷۷ فصل في البيع ،كتاب الحظر والاباحة )

لاس باندې خرڅوي، مثلا دوه منه یا یو من، نو د دې چینو خرڅول جائز دی یا ناجائز؟ بینواتوجروا

المستفتی: حاجی کریم الدین لیاقت آباد منډی میانوالی... ۲۳ جمادی الاول ۱۴۰۲هـ

**الجواب:** چونکې دا ډپو هولډر بائع دې وکیل نه دې لهذا د هغه دا کار صرف قانونی خیانت دې که حکومت د دې ډپو هولډر نه قیمت نه وصولولې او وکیل وې نو بیا به اسلامی خیانت وې. وهوالموفق. (ماقال الشیخ تحت نظرکم ولعله یکون وکیلا وخیانته خیانة الوکیل. (مفتی سیف الله حقانی)

## د سلو بورو د پرمټ لېږلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام په دې مسئله کې یو سړی سره د سلو بورو پرمټ دې او هغه دا پرمټ خرڅ کړو، دا بیان کړئ چې د دې کاغذ بیع جائز ده یا نه؟ که جائز وی نو دا کاغذ خو مال نه دې او په دې کاغذ کې چې څه لیکلې شوې دی هغه خو معدوم دی نو دا د معدوم بیع شوه؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالمستعان......۲۹ اکتوبر ۱۹۷۶ء

**الجواب:** دا پرمټ مال متقوم دې.(۱) بله دا چې په نزول عن الحق باندې معاوضه اخستل جائز دی. نظیره مصالحة الحسن رضی الله تعالی عنه معاویة رضی الله تعالی عنه بالنزول عن الوظیفة.(۲) پس د دې اخستل خرڅول پخپله قابل اعتراض نه دی. وهوالموفق

---

۱) قال ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: والمالیة یثبت بتمول الناس کافة او بعضهم والتقوم یثبت بها و باباحة الانتفاع به شرعا(ردالمحتار ۳: ۴مطلب في تعریف المال والملک والمتقوم)

۲) قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ:( قوله و علیه فیفتي بجواز النزول عن الوظائف بمال)... واستدل بعضهم بنزول سیدنا الحسن بن سیدنا علي رضي الله تعالیٰ عنهما عن الخلافة لمعاویة رضي الله تعالیٰ عنه علي عوض و هو ظاهرایضا و هذا اولي مما قدمناه في الوقف عن الخیریة من عدم الجواز.(رد المحتار ۱۷،۱۶: ۴مطلب في النزول عن الوظائف بمال )

## مشترکه مال بغیر د اذن د شریک نه اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د عبدالوهاب او حفیظ الحق ترمینځ یوه مشترکه ځمکه ده او حفیظ الحق په زور باندې مشترکه ځمکه بغیر د شریک د رضا نه خرڅه کړې ده او بل شریک د بې وسئ د وجې نه خاموش پاتې شو، آیا هغه خپلې حصې ته رجوع کولې شی یا نه؟ او رجوع به په بائع کوی که په مشتری؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** عبدالوهاب آف دیر .... ١٤ صفر المظفر ١٤٠٥هـ بمطابق ٧ نومبر

**الجواب:** د صدق او ثبوت په شرط به دا شریک د هغه مشتری نه خپله حصه اخلی او هغه مشتری به په بائع باندې رجوع کوی. لان مال الغیر لا یصح بیعه الا برضاء هذا الغیر فهذا القدر من العقار لیس بمبیع فلیراجع الی ردالمحتار ١٣٧/٤ فصل الفضولی (١) وهوالموفق

## د ویزې اخستل او خرڅول او ددې په بدلون کې کفیل ته رشوت ورکول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په متحده عرب امارات کې ویزه په شپیتۀ درهم تکټ لګولو سره د عربو په ضرورت باندې

---

(١) و في الدرالمختار: (هو من یتصرف في حق غیره بغیر اذن شرعي کل تصرف صدر منه) تملیکا کان کبیع و تزویج (وله مجیز) اي لهذا التصرف من یقدر علي اجازته (حال وقوعه انعقد موقوفا، (درمختار) مختصرا، وتحته في ردالمحتار (قوله انعقد موقوفا) اي علي اجازة من یملک ذلک العقد و لو کان العاقد نفسه.

(ردالمحتار ١٥١: ٤فصل الفضولي)

وفي الهندیة: ولا یجوز لاحدهما ان یتصرف في نصیب الآخر الا بامره و کل واحد منهما کالاجنبي في نصیب صاحبه.

(فتاوي عالمگیریة ٣٠١: ٢الباب الاول في بیان انواع الشرکة)

وتلې شی بیا خلق دا ویزې پاکستان ته رالیږی او بیا په دې باندې شپېته زره یا اتیا زره روپۍ د کار مناسب او د تنخواه مناسب اخلی، کله چې دا سړې امارات ته راشی نو یوه میاشت یا دوه میاشتې نورو خلقو ته ګوری چې کار آسان دې او زیاته تنخواه اخلی او د هغه کفیل یا کمپنی بله وی نو دا سړې خپله ویزه بدلولو سره بلې کمپنۍ ته لاړ شی خپل کفیل ته دوه درې زره دراهم ورکولو سره ځان فارغ کړې او بلې کمپنۍ کې شپږ یا اووۀ زره درهم ورکولو سره کار حاصل کړی، مطلب دا چې مخکې ئې زر درهمه تنخواه وه اوس هغه دوه زره شوه یا مخکې بې روزګاره وو اوس په روزګار شو، اوس دا شپږ یا اته زره درهم ورکول دوه درې زره کفیل ته ورکول یا کمپنۍ ته ورکول څنګه دی؟ یا په امارات کې د ویزې اخستل یا بدلول یا د هغې نه آزادی اخستل په پیسو باندې څنګه دی؟ بغیر د پیسو نه کار نه کیږی دې باره کې شرعی حکم څه دې؟ بله دا چې د عربی په نوم باندې ټیکسی (ګاډې) اخستل څنګه دی؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی**: ګلستان خان پوسټ بکس نمبر ۱۵۲۹۰، العین، U.A.E

**الجواب**: **السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته اما بعد!** پس ویزه د نوټ په شان مال متقوم دې.(۱) او د دې خرڅول جائز دی، خو کفیل ته د بدلون وغیره پیسې ورکول رشوت دې، پس دا کفیل بهرحال مجرم دې او دا ورکونکې که مجبور نه وی نو دې هم مجرم دې.(۲) او دا د عربی په نوم باندې د ګاډی لیکل یو

---

۱) قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: والمالية تثبت بتمول الناس كافة او بعضهم والتقوم يثبت بها و بإباحة الانتفاع به شرعا.

(ردالمحتار ۳: ۴مطلب في تعريف المال والملك والمتقوم)

(ومثله في البحر الرائق ۵:۲۵۶ كتاب البيع)

۲) قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: دفع المال للسلطان الجائر لدفع الظلم عن نفسه و ماله ولاستخراج حق له ليس برشوة يعني في حق الدافع... [بقیه برصفحه آئنده..

قانونی هیله ده په دې سره دغه عربی مالک کیږی نه. وهوالموفق

## د شاملاتو د خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د څو کسانو مشترکه ځمکه ده بغیر د نورو شریکانو د تپوس نه یو سړی د هغې څه حصه خرڅه کړه، نو آیا دا اخستل خرڅول جائز دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم

**الجواب:** که شاملات د مشترک غیر مقسوم نوم وی نو د هغې خرڅول جائز نه دی او دا بیع کالعدم او ناجائز ده، کما فی شرح التنویر: فلومملوکة لم تکن مواتاً، هامش رد المحتار ۳۸۱/۵ (۱) قلت وهی مملوکة لقوم معین فافهم، وفیه ایضا اما لوباعه علی انه لنفسه، فالبیع باطل کذافی هامشه ۱۳۶/۴، ۱۳۷. (۲) وهوالموفق

## د پخیدو نه مخکې یا وروستو د میوو خرڅولو او اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ۱: د میوو اخستل او خرڅول د بائع په اونو (میوو) باندې د رنګ او خوند د پریوتلو نه

... بقیه ازحاشیه گذشته] (ردالمحتار ۳۰۰:۵فروع فصل في البیع من کتاب الحظر والاباحة) وفي فتح القدیر: ثم الرشوة اربعة اقسام، منها ما هوحرام علي الآخذ والمعطي و هو الرشوة علي تقلید القضاء والامارة، الثاني ارتشاء القاضي لیحکم و هو کذلک حرام من الجانبین، الثالث اخذ المال لیسوي امره عند السلطان دفعا للضرر او جلبا للنفع و هو حرام علي الآخذلاالدافع، الرابع ما یدفع لدفع الخوف من المدفوع الیه علي نفسه و ماله حلال للدافع حرام علي الآخذ. (فتح القدیر مختصرا ۳۵۸،۳۵۹:۶ کتاب ادب القاضي)

۱ (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۳۰۶:۵ کتاب احیاء الموات)

۲ (الدرالمختار هامش ردالمحتار ۱۵۳، ۱۵۲:۴ فصل في الفضولي)

مخکې يا د پخيدو نه مخکې جائز دی يا نه؟ که جائز نه وی نو د ميوو بنکاره کيدل په کومه درجه کې د جواز دپاره شرط دې؟

۲: زيد د مالک په حيثيت د باغ د مالک د باغ ميوې مخکې د ظهور نه د عمرو په لاس باندې مطلقا بغير د څه شرط نه خرڅوی يعنی بغير د ذکر د قطع يا ترک علی الاشجار نه، او عمرو د بيع په شروع کې د زيد د ميوو د غټيدلو او پخيدلو دپاره د ميوو بوټو ته اوبه ورکول ضمنی شرط تصور کوی، اوس بکر په دې باندې اعتراض کوی چې بيع مذکور په دې شرط باندې مبنی ده چې که زيد د عمرو په ميوو باندې خپلې اوبه بندې کړی يا د وخت نه مخکې عمرو د ميوو په راشوکولو باندې مجبور کړی نو عمرو به په شروع کې دا بيع نه وه کړې ځکه چې معمول عام طور سره هم په دې طريقه باندې راروان دې او دې شرائطو لره د **المعروف کالمشروط** په شان ګڼلو سره دې ته بيع فاسده وائی او دليل دا بيانوی چې په دې کې مشتری بائع ضمنی طور جبرا د دې امر پابند ګڼی چې هغه به ميوې اوبه کوی او ميوې به د شوکولو د وخته پورې په ونو باندې پريږدی چې د هغې موده تقريبا پنځه مياشتې ده، که داسې ونشی او بائع خپل اختيارات د مشتری د خواهش خلاف استعمال کړی نو ضرور به د بائع او مشتری ترمينځ شخړه واقع کيږی په دې باره کې شرعی حکم څه دې؟ **بينواتوجروا**

**المستفتی: مولاداد..... ۲۲ شعبان ۱۴۰۱ھ**

**الجواب:** د باغونو د ميوو اخستل او خرڅول چې د پوخ والی نه مخکې وی (د ميوو د مرضونو نه په امن کيدو نه مخکې وی) ناجائز دی کله چې په ونو باندې بقاء مشروط وی يا معروف (شامی) (۱) خو که بعض پخ شوې وی او

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالي: (قوله ظهر صلاحها او لا) قال في الفتح لا خلاف في عدم جواز بيع الثمار قبل ان تظهر ولا في عدم جوازه بعد الظهور قبل بدو الصلاح بشرط الترک ...لکن بدو الصلاح عندنا ان تؤمن العاهة والفساد.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۴: ۴۲ مطلب في بيع الثمر والزرع والشجر مقصودا)

بعض کچه وی نو په اخستلو او خرڅولو کې څه پروا نشته. (ماخوذ از هندیة) (١) وشرح المجلة (٢) د المعروف کالمشروط په بناء باندې دا اخستل خرڅول ناجائز دی.(٣) خو که اخستل خرڅول د شوکولو په شرط سره وکړی او وروستو تصریح وکړی چې زه به تبرعاً (احساناً) دا کارونه کوم نو د تصریح په مقابله کې دلالت کالعدم وي (٤)

**نوټ**: مناسب ده چې د باغ مالک دې سوداګر سره وعده وکړی بیع دې نه کوی، د پخیدو نه وروستو دې بیع وکړی چې د ګناه نه بچ شی والله‌اعلم

## ژوندئ چرګې په تول سره د خرڅولو حکم

**سوال**: څه فرمائی علماء د دې مسئلې په باره کې چې د ژوندو چرګو په تول سره اخستل او خرڅول جائز دی یا نه؟ بینواتوجروا

**المستفتی**: نامعلوم ...... یکم جولائی ۱۹۷۳ء

---

١ )وفي الهندية: لو اشتري ثمرة بدا صلاح بعضها و صلاح الباقي يتقارب و شرط الترک جاز عند محمد رحمه الله تعالي.

(الفتاوي العالمكيرية ١٠٧: ٣الفصل الثاني في بيع الثمار)

٢ )وفي شرح المجلة: وقد نطقت المادة (٤٣)ان المعروف عرفا كالمشروط شرطا علي قول محمد المفتي به من جواز بيعها بشرط الترک اذا بدا صلاح بعضها و تقارب بدو صلاح الباقي.

(شرح المجلة للاحكام ٩٨: ٢المادة (٢٠٧)

٣ )وفي الهداية :وان شرط تركها علي النخيل فسد البيع لانه شرط لا يقتضيه العقد.

(هداية ٢٦: ٣كتاب البيوع)

٤ )وفي شرح المجلة: والحاصل ان المعروف عرفا كالمشروط ذكرا عند عدم التصريح بخلافه و الا فالعبرة لما صرح به لا للعرف.

(شرح المجلة للاحكام ١٠١: ١المادة ٤٣المعروف عرفا كالمشروط شرطا)

**الجواب:** واضحه دې وی چې حیوان (ساه لرونکې) د مثلیات نه نهٔ دې، بلکې په عددی متفاوت کې داخل دې، کما هو واضح وصرحوا به فی باب السلم. (١) والقرض (٢) بله دا چې په حیوان کې نه باقاعده پیمانه جاری کیږی او نه وزن، واما الکیل فظاهر واما الوزن فلما فی فتح القدیر ۲۹۱/۵ وانما قلنا ان الحیوان لیس بموزون لانه لا یوزن عادة فلیس فیه احد المقدارین الشرعیین الوزن اوالکیل لان الحیوان لا یعرف قدر ثقله بالوزن لانه یثقل نفسه ویخففها فلا یدری حاله انتهی. (٣) که د اخستلو خرڅولو په وخت وزن کول د تعین مقدار دپاره وی چې د هغې موافق پیسې متعین شی نو دا بیع فاسد ده. (٤) بخلاف شراء اللحم الغیر المعین وزنا اذوزن فی مجلس العقد لان اللحم من الموزونات، او که دا وزن په دې وجه باندې کولې شی چې په دې سره تخمین او اندازه ولګولې شیٔ د ثمن او قیمت، او د هغې نه پس بیع

---

١) قال العلامة الکاساني رحمه الله تعالي: ولا یجوز السلم في العدديات المتفاوتة من الحيوان والجواهر. (بدائع الصنائع ۴۴۲: ۴ما لا یجوز السلم فیه)

٢) قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالي: (وصح) القرض (في مثلي لا في غيره) من القيميات كحيوان و حطب و عقار و كل متفاوت.

(الدر المختار علي هامش ردالمحتار ۱۹۱: ۴فصل في القرض)

٣) فتح القدير ۱۶۷: ۶باب الربوا)

٤) قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالي (و شرط لصحته معرفة قدر) مبیع و ثمن (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۲۳: ۴کتاب البیوع)

قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالي: و اما شرائط الصحة ...و منها ان يكون المبيع معلوماً والثمن معلوماً علما يمنع من المنازعة فا لمجهول جهالة مفضية اليها غير صحيح. (البحر الرائق ۲۶۰: ۵کتاب البيع)

تعاطی (دادن وگرفتن) کولې شی نو په دې کې څه مانع او حرج نشته (١)
لانه بیع عددا لا وزنا او په ظاهر کې شق اول رائج معلومیږی لهذا د دې نه
اجتناب کول پکار دی. وهوالموفق

## د نابالغ د ځمکې خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې مونږ دوه ورونه
یو، زمونږ د والد صاحب ځمکه وه، زمونږ د والد صاحب د وفات نه پس دا
ځمکه زمونږ مشر ورور زمونږ حصه او خپله حصه زما په وړوکوالی کې
خرڅه کړه، چونکې زه هغه وخت نابالغ وم او اوس مشر ورور وائی چې ما
ستا نه په کم عمرئ کې ګوته لګولې وه، جناب عالی! زما دپاره خپله ځمکه
واپس کول د شریعت په رڼا کې جائز دی یا ناجائز؟ بینواتوجروا

المستفتی: فقیر محمد ..... ٢٠/٢/٧٤

**الجواب:** د نابالغ ځمکه خرڅول کله چې بغیر د ضرورت نه وی نامنظور ده،
او دا نابالغ دا د بلوغ نه پس واپس کولې شی، والتفصیل فی اداب الاوصیاء
علی هامش جامع الفصولین ١٣٤/٢ (٢) وهوالموفق

---

١) قال العلامة ابن نجیم رحمه الله تعالیٰ: (قوله و بتعاط) ای و یلزم البیع با لتعاطی ایضا لان جوازه باعتبار الرضا و قد وجد. (البحر الرائق ٢٦٩:٥ کتاب البیع)

٢) و فی الهندیة: انما یجوز بیع العقار با حدی الشرائط الثلاث: اما ان یرغب المشتری بضعف قیمته او للصغیر حاجة الی ثمنه او علی المیت دین لا وفاء له الا به. (الفتاوی العالمکیریة ١٧٦:٣ الباب السابع عشر فی بیع الاب والوصی والقاضی مال الصغیر)

قال العلامة ابن نجیم رحمه الله تعالیٰ: (و شراء ما لا بد للصغیر منه و بیعه للعم والام والملتقط لو فی حجرهم) یجوز لهؤلاء الثلاثة ان یشتروا للصغیر و یبیعوا ما لا بد منه .... و اصله ان التصرفات علی الصغیر علی ثلاثه اقسام نفع .... [بقیه بر صفحه آئنده....

## ګاډي د قبض کولو نه مخکې خرڅول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو ګاډې په شوروم باندې ولاړ دې، اخستونکې پارټئ د شوروم یا د ګاډی د مالک نه د ګاډی قیمت مبلغ درې لاکه روپئ متعین کړې دې او اخستونکې پارټی مونږ نه راغله چې په دې ګاډی کې یو نیم لاک روپئ تاسو جمع کړئ چې د هغې منافع به پنځوس زره روپئ وی مونږ به دا پیسې تاسو ته سره د ګټې په قسطونو کې ادا کړو او د ګاډی اخستونکې پارټی وائی چې ترڅو پورې زه ستاسو پیسې واپس نه کړم تر هغه وخته پورې به دا ګاډې ستاسو په نوم باندې رجسټرډ وی، آیا دا جائز دی یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: حاجی عظیم خان راوی روډ لاهور......۵ رمضان المبارک ۱۴۰۹ھ

**الجواب:** که دا یو نیم لاک روپئ تاسو هغه اخستونکی ته د قرض په طور ورکړې وی نو ستاسو دپاره دا منافع سود دې، **کما قالوا کل قرض جرنفعاً فهو رباً** (۱) او که دا یو نیم لاک روپئ تاسو هغه اخستونکی ته په طور د قیمت ورکړې وی چې هغه په تاسو باندې نیم ګاډې خرڅ کړې دې او تاسو په

---

... بقیه ازحاشیه گذشته ] محض فیملکه کل واحد هو في عیاله ... و نوع هو ضرر محض کالعتاق والطلاق فلا یملکه علیه احد و نوع متردد بین النفع والضرر مثل البیع والاجارة للاسترباح فلا یملکه الا الاب والجد و وصیهما.

(البحر الرائق ۸:۲۰۹ فصل في البیع )

۱) قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: ( قوله کل قرض جر نفعا حرام) اي اذا کان مشروطا.(ردالمحتار ۴:۱۹۴ مطلب کل قرض جر نفعا حرام)

هغه باندې دا ګاډې مخکې د قبض نه په دوه لاک روپئ خرڅ کړو نو دا بیع فاسد او ناجائز ده.(١) وهوالموفق.

## د شائع حصې خرڅول صحیح دی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو بې اولاده سړې وفات شو، او د هغه میراث صرف یو آباد کور دې چې د هغې ډیر حقداران دی خو په هغې باندې یو وارث قبضه کړې ده، په داسې صورت کې نور وارثان د تقیسم وراثت نه مخکې او د خپلې خپلې حصې معلومولو نه بغیر دا ذکر شوې کور خرڅ کړی نو د شریعت په رڼا کې به د هغې څه حکم وی؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالحلیم صوابی مردان..... ١٩ ربیع الاول ١٤٠٣ھ

**الجواب:** کله چې حصې معلومې نه وی نو عدم تقسیم (شیوع) د اخستلو او خرڅولو نه مانع نه دې. هدایة(٢) وشامی(٣)، وهوالموفق

---

١) قال العلامة المرغيناني رحمه الله تعالي: و من اشتري شيئا مما ينقل و يحول لم يجز له بيعه حتي يقبضه، لانه نهي عليه الصلاة والسلام عن بيع ما لم يقبض.
(هداية ٧٤: ٣باب المرابحة والتولية)

٢) و في الهداية: و يجوز بيع احدهما نصيبه من شريكه في جميع الصور و من غير شريكه بغير اذنه.
(هدايه ٦٢٤: ٢كتاب الشركة)

٣) و في الدر المختار: فصح له بيع حصته و لو من غير شريكه بلا اذن الا في صورة الخلط، و تحته في ردالمحتار: (الا في صورة الخلط)... والفرق ان الشركة اذا كانت بينهما من الابتداء بان اشتر يا حنطة او ورثاها كانت كل حبة مشتركة بينهما فبيع كل منهما نصيبه شائعا جائز من الشريک والاجنبي.
(ردالمحتار ٣٦٥: ٣كتاب الشركة)

## د کمپنئ حصې د اصل قیمت نه په کم
## یا زیاتو پیسو باندې خرڅول جائز دی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د یو تجارت یا صنعت دپاره په کروړونو روپو ته ضرورت دې خو چا سره دومره پیسې نشته نو په زرګونو کسان رایوځای شی، څوک لس روپۍ واچوی څوک سل، څوک زر او څوک لاک. دغه شان پیسې برابر شی او خلق د بازار نه برخې اخلی او اکثر د برخو مالکان شی، بیا دا برخې د اصل قیمت نه په زیات قیمت باندې خرڅوی، دغه شان دوه مسئلې پیدا کیږی:
الف: آیا یوې حصې لره د هغې د قیمت نه په زیات باندې خرڅول جائز دی؟ مثلا د یو سړی په یوه کمپنئ کې د سلو روپو حصه ده او هغه په یو نیم سل یا دوه سوه روپۍ باندې خرڅه کړی. ب: آیا داسې قیمت کمول یا زیاتول جائز دی؟ دې عمل ته د برخو په کاروبار کې سټه وائی. **بینواتوجروا**

**المستفتی:** له طرف د ټول اینډ مشینری کمپنی لاهور، ۱۲۱ کتوبر لاهور

**الجواب:** خپلې برخې لره په دواړو صورتونو کې خرڅول شرعي جرم نه دې. (۱) **وهوالموفق**

---

۱) چونکې د کمپنۍ برخې د سامان رسید او سند وی. چه دا سړې په دومره مقدار سره په کمپنۍ کې شریك دې نودا د سامان اخستل خرڅول شو او سامان د طرفینو په رضامندۍ سره چه په څومره قیمت سره خرڅوی جائز ده.

**وفي الهندية :اما تعريفه فمبادلة المال بالمال بالتراضي.**

**(فتاوي عالمگيرية ۲: ۳الباب الاول في تعريف المبيع )**

**وقال العلامة السرخسي رحمه الله تعالي: فان كان يتراضيان بينهما و لم يتفرقا حتي قاطعة علي ثمن معلوم وأتما العقد عليه فهو جائز لانهما ما افترقا الا بعد تمام شرط صحة العقد .(المبسوط للسرخسي ۸: ۱۳باب البيوع الفاسد)**

## په مشترکه ځمکه کې د ذېلې حصې د خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یوه ځمکه د دوه مالکانو ترمینځ شریکه وی او د تقسیم نه مخکې په هغوی کې یو خپله حصه خرڅه کړی نو دا بیع صحیح ده یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد اسلام شیوه کلې تحصیل ڈاکخانه مردان..... ۱۵ ستمبر ۱۹۷۹ء

**الجواب:** هر شریک خپله حصه د تقسیم نه مخکې خرڅولې شی (۱) په دې کې د چا هم اختلاف نشته. والدلیل علیه صحة شفعة الشریك.(۲) وهوالموفق

## د میوې د راوتلو نه مخکې د باغونو د خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې آیا د باغونو د میوو د راوتلو نه مخکې بیع جائز ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: انور کریانه سټور مین بازار ټنډو محمد خان حیدر آباد سنده.

**الجواب:** باطل ده. لانه بیع المعدوم.(۳) وهوالموفق

---

(۱) وفي شرح المجلة :بیع حصة شایعة معلومة كالنصف والثلث والعشر من عقا ر قبل الافراز صحیح لانه لا یشترط في صحة البیع الافرازعند التسلیم لاتفاقهم علي صحة بیع مشاع لا یمکن افرازه .(شرح المجله ۲:۱۰۷،المادة ۲۱۴)

(۲) و في الهدایة :الشفعةواجبة للخلیط في نفس المبیع .
(هدایة ۴:۳۸۹،کتاب الشفعة)

(۳) قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالي: (ومن باع ثمرة بارزة )اما قبل الظهور فلا یصح اتفاقا.(در مختار ۴:۴۲ ،مطلب في بیع الثمر والزرع والشجر مقصودا )
(و مثله في الهندیة ۳:۱۰۶،الفصل الثاني في بیع الثمار)

## د باغ د بیع فاسد په صورت کښې په دویمه بیع کولو باندې دویم مشتری ته د اخستلو او خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چې زید وائی چې د امونو بیع د میوې د لګیدو نه مخکښې بلکې په بعض ځایونو کښې څو کاله مخکښې په ټیکه باندې اخستلې شی، نو دا بیع باطل ده او بعض کچه امونه د لګیدو نه پس اخلی نو د صلاحیت پورې هغه په خپلو بوټو کښې وی چې په هغې سره د مشتری امونه د بائع د ونو نه انتفاع حاصلوی، نو دا د بیع فاسد صورت دې، هم دا آمونه بازارونو ته راځی لهذا د دې خوراک. اخستل ټول ناجائز دی، بکر وائی چې دا عموم بلوی ده، مونږ څوئې په پیسو باندې اخلو. خوراک او اخستل خرڅول هر څه ئې جائز دی، نو په زید او بکر کښې څوک صحیح دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: شبیر احمد خطیب نورانی مسجد میرپور خاص

**الجواب:** که دې ټیکیدار دا باغ د میوې د لګیدو او پخیدو نه مخکښې اخستلې وی نو دا بیع فاسد ده. **لکون البقاء مشروطا او معروفا وهو مفسد کما فی ردالمحتار ۳۹/۴** (۱) خو د دې ټیکیدار نه اخستونکې د هر قسم تصرف مجاز دې، **کما فی ردالمحتار ۱۳۰/۴ بخلاف المشتری شراء فاسدا اذا باعه من غیره بیعا صحیحا فان الثانی لا یومر بالرد الخ.** (۲) او که دې ټیکیدار د میوې

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالي: (قوله لكن في القهستاني عن المضمرات) حقه ان يقول عن النهاية ،لان عبارة القهستاني مع المتن و شرط تر كها علي الشجر والرضاء به يفسد البيع عندهما و عليه الفتوي.

(ردالمحتار ۴: ۴۳ مطلب في بيع الثمر والزرع والشجر مقصودا)

۲) (ردالمحتار علي هامش الدرالمختار ۱۴۵: ۴ قبيل مطلب البيع الفاسد لا يطيب له)

لګیدو نه مخکې اخستلې وی نو بیع باطل ده، **لکونه بیع المعدوم**.(۱) خو د باغ د مالک د اذن او اجازت په وجه باندې به هر قسم تصرفات مباح وی **بخلاف الربا. وهوالموفق**

## د ثمن نه ذکر کولو په صورت کې د بیع حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام ددې مسئلې په باره کې چې سوداګرخلق زمونږپه خواکې دکپاس تجارت کوی،هغوی کپاس د زمیندارانو نه اخستلو سره کارخانې ته لیږی، کارخانې والا هغه مال خپل ځان سره کیږدی او په خپل کار ئې راولی، سوداګر ته دا اختیار حاصل وی چې د ۲ فروری پورې په کوم تاریخ باندې کارخانې والو سره نرخ مقرر کولو سره پیسې وصول کړی، هغه نرخ ګورنمنټ (حکومت) روزانه مقرر کوی او د مال د خرڅولو په وخت نرخ نه مقرر کیږی نو آیا دا تجارت صحیح دې یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** غلام الله پنو عاقل سکهر .....۲۲ ستمبر ۱۹۷۵ء

**الجواب:** که اخستل خرڅول د نرخ مقرر کیدو نه پس کیږی او د هغې نه مخکې دا مال (کپاس) په طور د امانت محفوظ وی نو په دې معامله کې هیڅ فساداوحرمت نشته،اوکه داکپاس دنرخ دمقررکیدومخکې استعمالیږی او مملوک متصور کیږی نو دا بیع فاسد بلکې باطل ده.(۲) **وهوالموفق**

## د ماشوم د خرڅولو او اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې نن صبا په وړو

---

۱) قال العلامة الکاساني رحمه الله تعالی: منها ان یکون موجودا فلا ینعقد بیع المعدوم ...و کذا بیع الثمر والزرع قبل ظهوره لانهما معدوم.

(بدائع الصنائع ۳۶۶: ۴فصل ما یرجع الي المعقود علیه)

۲) قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالی: و بطل بیع صرّح بنفي الثمن فیه لانعدام الرکن و هوالمال. (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۱۱۸: ۴باب البیع الفاسد)

وړو کلو کې دکانداران دکانونه کوی، په کلو کې اکثر واړهٔ هلکان یا جینکئ د کور دپاره د خوراک څښاک د څیزونو اخستل خرڅول کوی، صراحة دا پته نه وی چې دا معامله د اولیاء په اذن کوی که په خپله رائې باندې، آیا په دې مسئله کې اذن عرفی معتبر دې یا نه؟

دویم دا کله چې کله د خوراک څیزونه د خپل ځان د پاره اخلی معلومه نه وی چې اذن د اولیاء د هغې سره مقرون دې او که نه خو صراحة منع نه کوی، آیا د دکاندار دپاره د جواز حیثیت لری یا نه؟ مهربانی وکړئ د دې مسئلې جوابات مکمل او مدلل سره د حوالې د دین د کتابونو نه په صفحاتو ولیکئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا محمد ضیاء الدین وارډ نمبر ٤/c

سهنوریم دادر هسپتال مانسهره ٤ ربیع الثانی ١٤٩٠هـ

**الجواب:** نابالغ هلک یا جینئ کله چې هوښیار وی، یعنی په ګټه او تاوان کې تمیز کولې شی نو د هغوی بیع او شراء به نافذ وی په دې شرط چې ماذون وی، یا وکیل وی کنه نو بیع به موقوف او معلق وی او واضحه دې وی چې اذن د تصریح سره مخصوص نه دې بلکې دعرف نه هم معلومیدلې شی یدل علی جمیع ما ذکرت ما فی الهندیة ٥:١٢٣،اذا اذن لصبی یعقل البیع والشراء یجوز یرید انه یعقل معنی البیع والشراء بأن عرف ان البیع سالب للملك والشراء جالب و عرف الغبن الیسیر من الغبن الفاحش لا نفس العبارة(١)، وفی الدر المختار علی هامش ردالمحتار ٥:١٥٠ وبأع ساکتا عن اذنه وحجره کان ماذونا استحسانا وتعریف الصبی والمعتوه الذی یعقل البیع والشراء(الی ان قال) فان اذن لهما الولی فهما فی شراء وبیع کعبد ماذون فی کل احکامه وفی ردالمحتار فیصیر ماذونا بالسکوت(٢) وفی الدر المختار فی

١) (هندیه ١٠: ٥،الباب الثاني عشر في الصبي والمعتوه یأذن له ابوه)

٢) (الدر المختار مع ردالمحتار ١٢١: ٥مبحث في تصرف الصبي و من له الولایة علیه)

باب الوكالة ثم ذكر شرط التوكيل فقال اذا كان الوكيل يعقل العقد ولوصبيا او عبدامحجورا(١) وبمعناه في غيرواحد من الكتب(٢) وهوالموفق.

## د دكان پرمټ خرڅول

**سوال:** څه فرمائی علماء كرام په دې مسئله كې چې زمونږ د مدرسې دپاره حكومت د دكان پرمټ منظور كړې دې، اوس كه مونږ صرف د پرمټ كاغذ په چا باندې خرڅ كړو نو دا جائز ده يا نه؟**بينواتوجروا**

المستفتی : اراكين مدرسه تعليم الاسلام لكی مروت

**الجواب:** پرمټ د نوټ په شان مال متقوم دې (٣) د هغې اخستل خرڅول جائز نه دی.

لاسيما اذاكان من قبيل النزول عن الحق كما ان الحسن بن على نزل من حق الخلافة بالوظيفة ولم ينكر عليه احد(٤). وهوالموفق

---

١) (درمختار ۴۴۵ كتاب الوكالة)

٢) و في الفتاوي الخانية : الاب اذا اذن لابنه في التجارة ان كا ن الصبي يعقل البيع والشراء و يعرف ان البيع يزيل الملک و يعرف الغبن الفاحش واليسير صح اذنه و ان لم يعرفه لا يصح و ان كان يقدر علي التلفظ بالبيع والشراء.

(الفتاوي الخانيه علي هامش الهنديه ۶۲۷،۶۲۶: ۳كتاب الماذون)

٣) و في ردالمحتار :والمالية تثبت بتمول الناس كافة او بعضهم والتقوم يثبت بها وباباحة الانتفاع به شرعا.

(ردالمحتار ۳: ۴كتاب البيوع ،مطلب في تعريف المال والملک والمتقوم )

٤) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالي :(قوله و عليه فيفتي بجواز النزول عن الوظائف بمال) ...واستدل بعضهم بنزول سيدنا الحسن بن سيدنا علي رضي الله تعالي عنهما عن الخلافة لمعاوية رضي الله تعالي عنه علي عوض و هو ظاهر ايضا و هذا اولي مما قدمناه في الوقف عن الخيرية من عدم الجواز.(ردالمحتار ۱۶،۱۷: ۴مطلب في النزول عن الوظائف بمال)

## د تصویر ویستلو کاروبار

**سوال:** څۀ فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زما نه یو فوټو ګرافر تپوس وکړو چې زه د خلقو فوټو (تصویر) وباسم او بیا د هغې فریم جوړوم آیا په شریعت اسلام کې زما دا کاروبار جائزدې یا ناجائز؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** فیض الله متعلم دار العلوم حقانیه اکوړه ختک

**الجواب:** تصویر ویستل او په هغې اجرت حرام دی.(۱) کله چې جاندار وی، د داسې سړی دپاره ضروری ده چې بل څه جائز کاروبار شروع کړی. جائز اسباب هم ښه ډیر دی.

قال رسول الله ﷺ :اشد الناس عذابا عند الله المصورون متفق علیه(۲)و عن سعید بن الحسن قال کنت عند ابن عباس رضی الله تعالی عنهما اذجاءه رجل فقال یاابن عباس انی رجل انما معیشتی من صنعة یدی وانی اصنع هذه التصاویر فقال ابن عباس لا احدثك الا ما سمعت من رسول الله ﷺ سمعته یقول من صور صورة فان الله معذبه حتی ینفخ فیه الروح ولیس بنافخ فیها ابدا (رواه البخاری)(۳)فقط.وهوالموفق

## که مبیع نقد وی او قیمت قرض نو دا معامله جائز ده

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید د عمرو دپاره کپړه په داسې طریقه واخستله چې عمرو زید ته وویل چې ته زما دپاره کپړې واخله زه به درته د هرې پور نرخ درکړم، او رنګ به هم زه خوښوم، پس

---

۱) قال العلامة العیني رحمه الله تعالی: فیه ان تصویر ذي روح حرام و ان مصوره توعد بعذاب شدید. (عمدة القاري ۱۲:۳۹،باب بیع التصاویر)

۲) مشکوٰة المصابیح ۳۸۵باب التصاویر ، الفصل الاول )

۳) الصحیح البخاري ۲۹۶:۱باب بیع التصاویر التي لیس فیها روح )

مونږ دواړه لاهور ته لاړو، زيد کپړه واخستله او قرض ئې ورکړه عمرو ته، او د هرى پور پورې کرايه هم زيد ورکړه او دا ئې هم وويل چې که کپړه په لاره کې ورکه شوه نو زه د هغې ذمه دار يم او د دې کپړې قيمت به شپږ مياشتې پس ماته راکوې، نو آيا په دې کې ربا راځى يا نه؟ **بينواتوجروا**

**المستفتى: مولوى سردار خان هرى پور**

**الجواب:** چونکې په مذکوره مسئله کې نه سود موجود دې او نه په قرض منافع موجود ده لهذا دا جائز ده. (١) **وهوالموفق**

## د مشترى د قيمت ادا کولو نه مخکې په بل چا باندې د خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائى علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د حکومت پاکستان د قوانين مطابق د هاؤسنگ سکيم د لاندې د زيد دپاره د کور اخستلو نه څه ممانعت هم نشته، پس زيد ته يو کور الاټ شو، زيد نه د کور پوره قيمت ادا کړو او نه هغه سره څه پيسې شته پس د زيد دوست بکر هم دا کور د سرکارى قيمت نه په زيات قيمت باندې د زيد نه اخستل غواړى. د گورنمنټ (حکومت) د طرف نه د زيد دپاره د کور خرڅولو نه څه ممانعت هم نشته، نو آيا د زيد دپاره دا جائز دى چې داسې کور په منافع خرڅ کړى؟ مهربانى وکړئ د قرآن پاک او احاديث نبوى ﷺ په رڼا کې حکم شرعى بيان وفرمايئ؟ **بينواتوجروا**

**المستفتى: مولانا صاحب شاه نائب خطيب ٥٨ ايس اينډ ټى بټالين ... جون ١٩٨٨ء**

---

(١) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: و اما الثالث و هو شرائط الصحة فخمسة و عشرون منها عامة و منها خاصة فالعامة لكل بيع شروط الانعقاد المارة ...و عدم التوقيت و معلومية المبيع و معلومية الثمن و خلوه عن شرط مفسد والرضاء و الفائدة والخاصة معلومة الاجل في البيع المؤجل ثمنه ...والمماثلة بين البدلين في اموال الربا والخلو عن شبهة الربا. (ردالمحتار ٦: ٤مطلب شرائط البيع انواع اربعة)

**الجواب:** که زید د دې کور مالک شوې وی نو د دې کور خرڅول ممنوع نه دی.(۱) وهوالموفق

## د افیون، چرس، سیګریټ او هیروئن د تجارت حکم

**سوال:** څهٔ فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د افیون، چرس، سیګریټ او هیروئن کاروبار جائز دې یا ناجائز؟ بینواتوجروا

المستفتی: حبیب الرحمن دار العلوم حقانیه اکوړه ختک..... ۲۳ ربیع الاول ۱۴۱۱ھ

**الجواب:** سوا د تمباکو نه د دې نورو څیزونو کاروبار مکروه تحریمی دې. (ماخوذازشامی(۲) وغیره(۳)) وهوالموفق

## د باغ خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید خپل د سیوانو باغ هغه وخت چې د سیوانو ګلونه هم نه وو ښکاره شوې یا ښکاره وو خو میوه ښکاره نه وه په عمرو باندې د وزن په حساب سره خرڅ کړو مثلا

---

۱) و في الهندية :واما شرائط الانعقاد فانواع ...منها ان يكون مملوكا في نفسه و ان يكون ملک البائع فيما يبيعه لنفسه ...ولا بيع ما ليس مملوكا له و ان ملكه بعده. (فتاويٰ عالمگيرية ٣،٢:٣،الباب الاول في تعريف البيع و ركنه و شرطه)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعاليٰ: و شرط المعقود عليه ستة ...كون الملک للبائع فيما يبيعه لنفسه ...فلا بيع ما ليس مملوكا له وان ملكه بعده. (ردالمحتار ٦:٤مطلب شرائط البيع انواع اربعة)

۲) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعاليٰ:( قوله و صح بيع غير الخمر)...ثم ان البيع و ان صح لكنه يكره.(ردالمحتار ٥:٣٢٣، كتاب الاشربة)

۳) و في بدائع الصنائع :و يجوزبيعها عند ابي حنيفة رحمه الله تعاليٰ مع الكراهة. (بدائع الصنائع ٢٨١:٤كتاب الاشربة)

د اتیا روپیؤ من په حساب سره ئې ورکړو، آیا دا بیع جائز ده یا ناجائز؟

بینوا توجروا

المستفتی: مولانا محمد خان کوئټه بلوچستان. ۲۳ جمادی الاول ۱۴۰۳ھ

**الجواب**: دا دواړه بیعې ناجائز دی خو وعده ناجائز نه ده.

اما عدم جواز الاول فلما فی شرح المجلة ص ۹۸ بیع المعدوم باطل فبطل بیع ثمرة لم تبرز اصلا(۱)، و بمعناه فی الفتاوی (۲) واما عدم جواز الثانی فلکون البقاء علی الاشجار مشروطا او معروفا کما فی شرح المجلة ص ۹۹ (۳) وان شرط فی البیع ترکها علی الشجر فسد البیع الا اذا تناهت الثمرة فیصح الشرط علی قول محمد وبه یفتی (تنویر) (۴) و قالو المعروف کالمشروط ،فلیراجع الی ردالمحتار ص: ۳۸، ۳۹ (۵). وهو الموفق

---

۱ ) (شرح المجلة، ۹۲:۲، المادة ۲۰۵ الفصل الثاني فيما يجوز بيعه وما لا يجوز)

۲ ) قال العلامة الكاساني رحمه الله تعالي: منها ان يكون موجودا فلا ينعقد بيع المعدوم ...و كذا بيع الثمر والزرع قبل ظهوره لانهما معدوم.
(بدائع الصنائع، ۳۲۶:۴ فصل ما يرجع الي المعقود عليه)

۳ ) و في شرح المجلة: و شرط تركها علي الشجر والرضاء به يفسد البيع و عليه الفتوي كما في النهايه. (شرح المجلة ۹۴:۲، المادة ۲۰۶)

۴ ) (تنوير الابصار، ۴۳:۴ مطلب في بيع الثمر والزرع والشجر مقصودا)

۵ ) و في ردالمحتار: (قوله لكن في القهستاني عن المضمرات ) حقه ان يقول عن النهايه لان عبارة القهستاني مع المتن و شرط تركها علي الشجر والرضا به يفسد البيع عندهما و عليه الفتوي كما في النهاية ولا يفسد عند محمد ان بدا صلاح بعض و قرب صلاح الباقي و عليه الفتوي كما في المضمرات. (ردالمحتار ۴۳:۴ مطلب في بيع الثمر والزرع والشجر مقصودا)

## د چرس، افیون او بنګو تجارت او د هغې د خوراک حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په ملک کې د افیون، بنګ او چرسو تجارت رائج دې چې د هغې په باره کې ستاسو نه پوښتنه کوو چې که جزئی مسئله وی نو هغه ولیکئ، که جزئی نه وی نو په تفصیل سره یې ولیکئ چې داسې تجارت جائز دې یا ناجائز؟ بینواتوجروا

المستفتی: غوث احمد فاضل حقانیه دا کخانه ستروغه تحصیل ټانک، ډی آئی خان، ۲۶ صفر ۸۹ھ

**الجواب:** ۱: د افیون او چرس تجارت مکروه تحریمی دې.

فی الدر المختار: وصح بیع غیر الخمر مما مر ومفاده صحة بیع الحشیشة والافیون قلت وقد سئل ابن نجیم عن بیع الحشیشة هل یجوز؟ فکتب لایجوز، فیحمل علی ان مراده بعدم الجواز عدم الحل .قال العلامة الشامی فی ردالمحتار ۵: ۴۰۱، ثم ان البیع وان صح لکنه یکره کما فی الغایة، و قال العلامة الشامی ناقلا عن ابن الشحنة انه یودب بائعها (الحشیشة) انتهی.(۱) قلت والتادیب انما یکون فی المکروه التحریمی والافیون فوق الحشیشة فیکون بائعه اولی بالتادیب.

۲: د دوائی دپاره د نشې دمقدار نه کم جائز دې او زیات حرام دې.

فی الدرالمختار: یحرم اکل البنج والحشیشة والافیون، وفی ردالمحتار ۵: ۴۰۴، الصواب ان مراد صاحب الهدایة و غیره اباحة قلیله للتداوی و نحوه و من صرح بحرمته اراد به القدر المسکر منه(۲) فقط. وهو الموفق

---

۱ ) (شامي ۵:۳۲۳ کتاب الاشربة)

۲ ) (شامي ۵:۳۲۵ کتاب الاشربة)

## د نشې والا څیزونو بیع په کرایه باندې وړل او د سمګلنګ (دحکومت نه په غلا یو شی بل ځای ته وړل) حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ۱: د هیروئن تجارت جائز دې یا نه؟ که ناجائز وی نو حرام دې یا مکروه؟ او د هغې په کرایه باندې وړل جائز دی یا ناجائز؟

۲: زمونږ په ملک کې اوړه او وریژې افغانستان ته سمګل (وړلی) کولې شی او هلته مجاهدین او غیر مجاهدین ټول دا خوری، دا کاروبار جائز دې یا ناجائز؟ ۳: دمجاهدین او مهاجرین نه وسله، غنم او تیل وغیره شیان په بیع اخستل جائز دی یا ناجائز؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: مولانا وزیر محمد صاحب ضلع پشین بلوچستان، ۶ ربیع الثانی ۱۴۰۸ھ

**الجواب:** ۱: سوا د شرابو نه د نورو نشیی توکو خرڅول مکروه تحریمی دی.

کما فی شرح التنویر: وصح بیع غیرالخمر، وفی ردالمحتار ۵:۴۰۱ (۱) ثم ان البیع و ان صح لکنه یکره کما فی الغایة وفیه ایضا وذکر ابن الشحنة انه یودب بائعها ۵:۴۰۲ (۲) فافهم. او د هیروئن په کرایه باندې وړل جائز نه دی.

وهومذهب الصاحبین وهوالاستحسان فلیراجع الی ردالمحتار ۵:۳۴۵ (۳).

۲: دا خو قانوناً ممنوع دی خو شرعا ممنوع نه دی، په پاکستان او

---

۱ ﴾ (ردالمحتار ۳۲۳:۵ کتاب الاشربة)

۲ ﴾ (ردالمحتار ۳۲۵:۵ کتاب الاشربة)

۳ ﴾ قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: (قوله و حمل خمر ذمي) قال الزیلعي و هذا عنده و قالا هو مکروه لانه علیه الصلوة والسلام لعن في عشرة و عد منها حاملها... و قولهما استحسان.

(ردالمحتار ۲۷۷:۵ فصل في البیع ، کتاب الحظر والاباحة)

افغانستان دوارو کې اسلام په خطره کې دې خو په پاکستان کې مسلمان، شیعه، مرزائی او مرتدین ټول په امن دی.

۳: که د دې مجاهدینو مهاجرینو مقرر معاونت د ژوند د ضروریاتو او محاذ دپاره ناکافی وی نو جائز دې. وهوالموفق

## د آزادې زنانه د اخستلو او خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام په دې مسئله کې چې یو سړې خپله ښځه د هوش او عقل په حالت کې په خپل پلار یا نورو خپلوانو باندې د غوا چیلی په شان خرڅه کړی، نو آیا هغه ته د طلاق حاجت باقی پاتې شو او که په خرڅولو سره طلاق واقع کیږی؟ اوکه شل یا پنځویشت کاله پس په ژبه طلاق ورکړی نو د هغې عدت به د کومې مودې نه شروع کیږی او د طلاق ورکولو نه پس به د هغې سره نکاح جائز وی که د عدت تیریدلو نه پس؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: آباد شیر آفریدی**

**الجواب:** که د دې سړی (خاوند) خرڅول حقیقی خرڅول وی نو دا سړې فاسق او فاجر شو او دا پیسې به د هغه دپاره حرام وی. **لان بیع الحرباطل لعدم کونه مالا.**(۱) **وقال رسول الله ﷺ ورجل اعتبد محررة رواه ابوداؤد**(۲) لهذا باقاعده د طلاق ورکولو نه مخکې دا زنانه د لومړي خاوند په نکاح کې ده، بیشکه د طلاق ورکولو نه پس کله چې عدت تیر شی نو دا زنانه په بل خای کې نکاح کولې شی که د هغه پیسو ورکولو والا سره نکاح کول غواړی یا بل

---

۱ قال في شرح تنویر الابصار: (بطل بیع ما لیس بمال کالدم والحر والبیع به اي جعله ثمنا. (در مختار ۱۱۲: ۴باب البیع الفاسد)

۲ ) عن عبد الله بن عمر رضي الله تعالي عنه ان رسول الله ﷺ کان یقول ثلاثة لا تقبل الله منهم صلوة ... ورجل اعتبد محرره.
(سنن ابي داود ۸۸: ۱باب الرجل یوم القوم وهم له کارهون)

سړی سره، په دې زنانه باندې هيڅ جبر او زور نه نشته او که دا مراد وی چې ما دا زنانه د نکاح نه خارج کړه او دا پيسې به په هغه دويم سړی باندې واجب الاداء وی نو دا خلع ده او صحيح ده، وفی الدرالمختار: والخلع يکون بلفظ البيع والشراء والطلاق والمبارأة. (باب الخلع) (۱) وفی ردالمحتار ۲: ۷۸۲، و فی الفصولين اذا ضمنه الاب اوالاجنبی وقع الخلع الخ (۲) اود عقد خلع د وخت تيريدلو نه پس به نکاح منظور وی کله چې د هغې په مرضئ باندې وی، خو دعرف نه دشق اول مرادکيدل معلوميږي ځکه چې اخستونکی خپل ځان مختار ګڼی چې خپله نکاح وکړی يائې په بل سړی باندې خرڅه کړی. وهوالموفق

## ويزه اخستل او په بل چا باندې ګرانه خرڅول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې يو سړې په عربستان کې ويزه د خپل ځان دپاره واخلی بيا هغه په ګران قيمت باندې خرڅوی، نو آيا دا صحيح ده؟ بينواتوجروا

**المستفتی:** ډاکټر بهادر سيد رياض سعودی عرب ص ب ۲۹۵۴

**الجواب:** واضحه دې وی چې ويزه يو قسم کاغذ دې او مال متقوم دې. (۳) د هغې اخستل او خرڅول جائز دی اګر که په هر څومره قيمت باندې وی، خو د دواړو طرفونو راضی کيدل ضروری دی، بله دا چې په نزول عن الحق باندې عوض اخستل جائز دی، کما نزل سيدنا الحسن رضی الله تعالی عنه

---

۱) (درمختار ۲۰۷: ۲باب الخلع)

۲) (ردالمحتار ۶۱۶: ۲مطلب في خلع الصغيرة)

۳) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالي: والمالية يثبت بتمول الناس كافة او بعضهم والتقوم يثبت بها و باباحة الانتفاع به شرعا. (ردالمحتار ۵: ۴مطلب في تعريف المال والملك والمتقوم) (و مثله في البحر الرائق ۲۵۶: ۵كتاب البيع)

لمعاویة رضی الله تعالی عنه علی عوض (۱) وفی مسئلتنا ینزل بأثم هذا عن حقه فافهم. وهوالموفق

## د ویزې په اخستلو او خرڅولو کې د شرط فاسد حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید په قطر کې هره ویزه په پنځه زره روپۍ اخستلې ده او اوس ئې په عمر او بکر وغیره باندې په لس زره روپۍ خرڅوی او قطر ته ئې رسوی خو ورسره دا وعده هم د هغوی نه اخلی چې هر یو کس به ماته درې سوه روپۍ د میاشتې راکوئ، د دې شرط څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم

**الجواب:** دویزې اخستل او خرڅول بذات خود مشروع دی. لکونه مالامتقوما (۲) کالنوت اولکونه من قبیل النزول عن الحق (۳) خو د نورو شرائطو فاسده ؤ د وجې نه د دې عقد فاسد کیدل ممنوع نه دی. (۴) وهوالموفق

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالي: قوله و عليه فيفتي بجواز النزول عن الوظائف بمال...واستدل بعضهم بنزول سيدنا الحسن بن سيدنا علي رضي الله عنهما عن الخلافة لمعاوية رضي الله تعالي عنه علي عوض و هو ظاهر ايضا و هذا اولي مما قدمناه في الوقف عن الخيرية من عدم الجواز. (ردالمحتار ۴:۱۷ مطلب في النزول عن الوظائف بمال)

۲) قال العلامة ابن عابدين: والمالية يثبت بتمول الناس كافة او بعضهم والتقوم يثبت بها وباباحة الانتفاع به شرعا. (ردالمحتار ۴:۵ مطلب في تعريف المال والملك والمتقوم).
(ومثله في البحر الرائق ۵:۲۵۶ كتاب البيع)

۳) قال العلامة الحصكفي: وعلي هذا لا يجوز الاعتياض عن الوظائف... لكن افتي كثير باعتباره وعليه فيفتي بجواز النزول عن الوظائف بمال.
(الدرالمختار ۴:۱۵،۱۶ مطلب في النزول عن الوظائف بمال)

۴) وفي الهداية: وكل شرط لا يقتضيه العقد وفيه منفعة لاحد المتعاقدين او للمعقود عليه وهو من اهل الاستحقاق يفسد. (الهداية ۳:۵۹ باب البيع الفاسد)

## په ویزه کې د بائع مشتري ته د دهوکې ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام په دې مسئله کې چې یو سړی د سعودي عرب نه شل ویزې راوړې او وایي چې دا آزادې ویزې دی او دیرش زره روپۍ د دې قیمت دې، کله چې هغه ته وویلې شو چې هسې نه چې داسې وشی چې مونږ سعودیه ته تلو سره بې روزګاره ګرځو، هغه وویل چې زه اقرار کوم چې دا آزادې ویزې دی خو تاسو به تر شپږو میاشتو پورې مونږ سره یئ که کار وی او که نه وی او د شپږو میاشتو تیریدلو نه پس به مونږ تاسو ته ویلیز متهر درکوو او په بنه کمپنۍ کې به تاسو ته کار ملاؤ شی. هم په دې اقرار باندې دیرش زره روپۍ دهر کس ورکړې شوې، سعودیه ته رسیدلو سره معلومه شوه چې دا ویزې د زمیندارۍ د مزدورانو دی چې هغوی سوا د زمیندارۍ نه په بله هیڅ کمپنۍ کې کار نه شی کولې، ددې بې روزګارۍ د وجې نه هغه د ورور نه پنځوس زره روپۍ وغوښتلې، زمونږ ذکر شوې دواړو بچو یو لاک لس زره روپۍ خرج کړې. فی الحال د زراعت په یو معمولی فارم باندې په درې زره روپۍ ملازمان دی، اوس هغه صاحب وائی چې هغوی په روزګار باندې دی حال دا چې دا ویزه په درې زره روپۍ باندې ملاویږی او هغه دیرش زره روپۍ د هر کس نه اخستلې دی. دخپل ورور نه ئې هم پنځوس زره روپۍ اخستلې دی. اوس سوال دا دې چې د دې دهوکې څه حکم دې او شرعا مونږ له څه کول پکار دی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** باغی شاه چراټ نوښار.......٤ محرم ١٤٠٥هـ

**الجواب:** دا مدعی علیه د ویزو خرڅونکې به د دهوکې ورکولو د وجې نه پیسې واپس کوی (١) او که مدعی د تسلئ دپاره قسم وخوری نو د شریعت خلاف نه دې (٢) **وهوالموفق**

---

(١) قال العلامة الحصكفي: (ان غره) اي غر المشتري البائع او بالعكس او غره الدلال فله الرد. (درمختار ١٧٨: ٤باب المرابحة والتولية)

(٢) وفي الهندية: فان صحت الدعوي سأل المدعي عليه عنها فان اقر او انكر فبرهن المدعي قضي عليه والا حلف بطلبه. (هنديه ١٣: ٤الباب الثالث في اليمين)

## د ایجنسئ حکم، د کمپنئ د نرخ نه په زیات قیمت باندې د خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د حکومت نه د یوې ایجنسئ اخستل څه حکم لري؟

۲: زمونږ د سیمنټ ایجنسی ده. د سیمنټ د حکومت نه مقرر نرخ پنځوس یا شپیتهٔ روپئ بورئ دې. اوس که مونږ د دې نرخ نه په زیات قیمت باندې سیمنټ خرڅ کړو نو دا به جائز وی یا ناجائز؟ او د فیکټرئ قانون دادې لیکلې شی!

الف: سیمنټ کمپنئ والا زیاتولې هم شی او کم هم. ب: هر قسم سیمنټ د حکومت د فیکټرئ والا سپلائی کولې شی. ت: د سیمنټ اخستلو دپاره به پیسې اول د کمپنئ سره جمع کوی. د: په خپله علاقه کې چې څوک سیمنټ خرڅوی او کوم ریټ چې حکومت ورکړې دې هم په هغې باندې به یې خرڅوی وغیره؟ بینواتوجروا

المستفتی: عزیز الرحمن بنون متعلم حقانیه اکوړه خټک......۱۰ رجب ۱۴۰۳ هجری

**الجواب:** د ایجنسئ اخستلو والا اګر چې د ایجنسئ په اخستلو کې ګنهګار دې. **لکونه شراء وبیعا بشرط.** (۱) خو د دې باوجود د مقرر نرخ نه مخالفت صرف قانونی جرم دې (۲) **لکونه مالکا یتصرف فی ملکه کیف شاء. وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة الکاساني: والصحیح قولنا لما روي عن ابي حنیفة... ان رسول الله ﷺ نهي عن بیع وشرط والنهي یقتضي فساد المنهي عنه فیدل علي فساد کل بیع وشرط. (بدائع الصنائع ۴:۳۸۷ الشروط الفاسدة)

۲) وفي الهدایة: ولا ینبغي للسلطان ان یسعر علي الناس... فان کان ارباب الطعام یتحکمون ویتعدون عن القیمة تعدیا فاحشا وعجز القاضي عن صیانة حقوق المسلمین الا بالتسعیر فحینئذ لا بأس به... فاذا فعل ذلک وتعدي رجل عن ذلک وباع بأکثر منه اجازه القاضي. (هدایة ۴:۴۷۲ فصل في البیع، کتاب الکراهیة)

## یو سړی وعده وکړه چې ته ګاډی واخله بیا ئې په ما باندې په ګران قیمت خرڅ کړه، څه حکم دی؟

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې حاجی عبدالله خان ته یو سړي وائی چې په کراچئ کې لارئ په پنځه لاکه روپئ باندې خرخیږي هغه زما دپاره واخله زه تاته یو لاک روپئ ګټهٔ درکوم دا وعده ده یا بیع؟ بعض خلق وائی چې دا بیع ده او ناجائز ده، ځکه چې په بیع مالیس عنده کې داخل ده، بهر حال حاجی عبدالله خان لارئ اخلی او قبض کوی ئې د هغې نه وروستو د وعدې مطابق سوداګانې کوی آیا د وعدې مطابق ګټه اخستل جائز دی او که بیع ختمولو سره نوې عقد وکړی. **بینواتوجروا**

المستفتی: حاجی عبدل......۱۹۹۸ء/۳/۲۲

**الجواب:** دا معامله جائز ده ځکه چې د زید مقصد دا وی چې ته مالدار سړې ئې، لارئ په پنځه لاکه روپئ باندې واخله او د هغې نه پس ئې په ما باندې په اووهٔ لاکه روپئ خرخه کړه نو په دې کې د عدم جواز هیڅ وجه نشته؟، دا حاجی د وعدې مطابق په بیع تعاطی سره په زید باندې لارئ خرخوی په دې کې هیڅ توکیل نشته.(۱) **وهوالموفق**

## اهل حقوق ته دحقوق رسولونه پس بقایا مال په بلیک باندې خرخول جائز دی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې زه بغیر زما د طلب کولو ډپو هولډر مقرر کړې شوم دې وخت کې خلق د حاجت نه کیدو د وجې نه راشن نه وصولوی، ما د مجبورئ د وجې نه وویل ورونو زما پیسې بندې دی تاسو راشن نه اوچتوئ په دې باندې به مشرانو وویل چې خپلې پیسې نقدې کړه او په بازار کې ئې په دکاندارانو باندې خرخ کړه، نتیجتا به ئې

(۱) د سوال نه دا معلومیږي چه لارئ دې بل سړی دپاره اخستلې شی او بیا دهغه نه د اداشوی قیمت نه زیاتې روپئ اخستلې کیږي لهٰذا دا سودی معامله ده او جائز نه ده. فافهم...(مفتی سیف الله حقانی)

ماته د بلیک طریقې ښودلې، یو کرت ما دهمکی ورکړه چې یا ماته د بلیک اجازت راکړئ یا زه ډېو پرېږدم، خلقو ماته په یو ځای د دې اجازت راکړو اوس ماته پریشانی دا ده چې کیدې شی دا کار ناجائز وی، د الله پاک په دربار کې حاضریدل دی، لهذا تاسو واضحه کړئ چې پورته ذکر شوې اخستل او خرڅول د خلقو په اجازت سره جائز دې یا ناجائز؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی**: عبدالمتین ډپو هولډر........۱۹۷۵ء/۹/۲

**الجواب**: عوامو ته دهغوی دحق رسولو نه پس چې کوم راشن بچ شی یا دبعض کسانو خپل حق په خوشحالئ سره پرېښودلو نه پس چې کوم بچت وشی هغه تاسو په بلیک باندې خرڅولې شئ، په دې کې هیڅ خیانت نشته. **وهوالموفق**

## د بائع بیعانه د ضبط کولو حکم

**سوال**: څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې حاجی غلام محمد په اسماعیل باندې کور خرڅ کړو، په پنځه ویشت زره روپئ قیمت باندې فیصله شوې ده او فریق ثانی د کور اخستلو والا اقرار نامه اسټامپ اخستلو سره د هر دواړو ډلو نه دستخطونه سره د ګواهانو وکړل او پنځه زره روپئ بیعانه مونږته راکړې شوه او دا شرط تحریری واخستلې شو چې ۱۰/۲/۷۹ء تا ۱۰/۴/۷۹ء په میعاد کې که کور خرڅونکې انکاری شو نو لس زره روپئ به ادا کوی، په نه ادا کولو باندې به عدالت ته رجوع کوی، که اخستونکی یعنی مشتری رجسټری ونکړی نو د هغه بیعانه به ضبط کولې شی، او میعاد ئې ختم شوې وې، نه اسماعیل د مهلت استدعا کړې ده نه ئې رجسټری کړې ده نوپه دې لحاظ سره داسودا ختمه شوې ده، اوس د شریعت په رڼا کې د بیعانه د ضبط کولو ماته حق حاصل دې یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی**: حاجی غلام محمد جهلم........۵/رمضان المبارک

**الجواب**: چونکې دا عقد د شرط فاسد د وجې نه فاسد دې[1] لهذا بائع او

---

[1] قال العلامة شيخ الاسلام برهان الدين المرغيناني : وكل شرط لا يقضيه العقد وفيه منفعة لاحد المتعاقدين او للمعقود عليه وهو من اهل الاستحقاق يفسده.
(هدايه ۳:۵۹ باب البيع الفاسد)

مشتری هر یو د فسخ کولو او کالعدم کولو مجاز دې، خو د شرعی اصولو د لاندې دا بائع د بیعانه ضبط کولو مجاز نه دی (۱) وهوالموفق

## د وسلې اخستل او خرڅول

**سوال.** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې آیا د وسلې اخستل او خرڅول د حکومت د اجازت نه بغیر جائز دی یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: نامعلوم

**الجواب**: دا اخستل او خرڅول صرف قانونی جرم دې (۲) وهوالموفق

---

(۱) قال الدكتور وهبة الزحيلي: وبيع العربون هو ان يشتري الرجل شيئا فيدفع الي البائع من ثمن المبيع درهما او غيره مثلا علي انه ان نفذ البيع بينهما احتسب المدفوع من الثمن وان لم ينفذ يجعل هبة من المشتري للبائع... واختلف فيه العلماء فقال الجمهور انه بيع ممنوع غير صحيح فاسد عند الحنفية... لان النبي ﷺ نهي عن بيع العربان.
(الفقه الاسلامي وادلته ۵:۳۴۳۴ بيع العربون)

وفي المرقاة: قال نهي رسول الله ﷺ عن بيع العربان... هو ان يشتري السلعة ويدفع الي صاحبها شيئا علي انه ان امضي البيع حسب وان لم يمض البيع كان لصاحب السلعة ولم يرتجعه المشتري وهو بيع باطل عند الفقهاء لما فيه من الشرط والغرر.
(مرقاة المفاتيح شرح مشكوة المصابيح ۶:۸۰ باب المنهي عنها من البيوع)

وقال الشيخ السهانفوري: قلت ويرد العربان اذا ترک العقد علي كل حال بالاتفاق.
(بذل المجهود في حل ابي داؤد ۲۸۷ باب في العربان)

(۲) قال العلامة شيخ الاسلام برهان الدين المرغيناني: ويكره بيع السلاح في ايام الفتنة... وقد بيناه في السير وان كان لا يعرف انه من اهل الفتنة لا بأس بذلک لانه يحتمل ان لا يستعمله في الفتنة فلا يكره بالشک. (هداية ۴:۴۷۲ فصل في البيع)

## په کالو کې د سپينو زرو او تانبې ټانکه لګولو سره د سرو زرو په نرخ باندې د خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې يو توله د سرو زرو کالی جوړولو کې يو ماسه ټانکه لګولې شی او په بعض کې درې ماسې، په يو ماسه سرو کې دوه رتئ چاندی او يو رتئ تانبه يوځای کولو سره ټانکه لګولې شی، د دې ټانکې نه بغير کالی نه جوړيږی. مونږ د دې ټانکې سره وزن کولو باندې د سرو زرو په قيمت باندې ورکوو او کله چې مونږ د ګاهک نه کالی اخلو نو د يوې تولې په ځای د يولس ماسو په قيمت ورکوو. او د اصلی سرو زرو د نرخ نه دوه سوه روپئ هم کمې ورکوو، آيا دا جائز دی يا ناجائز؟ **بينواتوجروا**

**المستفتى:** عصمت الله جيولرز بنوں........۱۱ رمضان المبارک ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** دا معامله جائز ده. په دې کې نه دهوکه موجود ده او نه سود، ټانکو او چاندئ لره د سرو په نرخ باندې خرڅول په هيڅ مذهب کې منع نه دی خصوصاً کله چې دالحاظ وکړې شی چې په غالب الذهب اوخالص الذهب کې فرق معتبر نه وی (۱) او که زرګران د کالو د اخستلو په وخت د دوه زره روپو کالې په اتلس سوه باندې اخلی نو په دې کې ربا نشته.(۲) سود دا دې چې يو توله کالې په يولس ماسې سرو باندې واخلی.(۳) **وهوالموفق**

---

۱ ﴾ وفي الهندية: وان كان الغالب علي الدنانير الذهب فهي ذهب ويعتبر فيها من تحريم التفاضل ما يعتبر في الجياد حتي لا يجوز بيع الخالصة بها ولا بيع بعضها ببعض الا متساويا في الوزن. (فتاوي عالمگيرية ۳:۲۱۹ الفصل الاول في بيع الذهب والفضة)

۲ ﴾ قال العلامة الحصكفي: (وان عدما حلا) كهروي بمرويين لعدم العلة.
(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۴:۱۹۹ باب الربا)

۳ ﴾وفي الهندية: وهو في الشرع عبارة عن فضل مال لا يقابله عوض في معاوضة مال وهو محرم في كل مكيل وموزون بيع مع جنسه.
(فتاوي عالمگيرية ۳:۱۱۷ الفصل السادس في تفسير الربا)

## په سود خور باندې د یو څيز د خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سود خور یا په بله طریقه باندې حرام مال ګټونکو والا انسان باندې د یو څيز خرڅول څنګه دی؟ کله چې دکاندار ته د هغه مال معلومات وی. **بينواتوجروا**

المستفتی: عبدالحئ بمعرفت مبارک شاه دارالسلام

**الجواب:** د حرام مال د مبیعې په عوض اخستل هم حرام دی، لقول الفقهاء الحرمة تنتقل(۱) وهوالموفق. (کتبه مفتی سیف الله حقانی)

## پنشن په حکومت باندې د خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې سرکاری ملازم کله چې ملازمت پوره کړی نو سرکار ئې په پنشن باندې ډسچارج کوی، خو سرکار د پنشن نه څلور حصې خپله اخلی، او څلور حصې ملازم خپله په سرکار باندې خرڅې کړی او دوه حصې د ملازم دپاره د میاشتې د ګورنمنټ (حکومت) نه د اخستلو دپاره باقی پاتې شی. ۱: سرکار چې د ملازم نه په زبردستئ باندې ۴/۱ حصه اخلی آیا د سرکار دپاره چې کوم قیمت د اخستلو دې او د ملازم دپاره چې کوم قیمت د خرڅولو دې پیسې جائز دی یا نه؟ ۲: پنشن والا چې په خپله مرضئ سره خپل پنشن په سرکار باندې خرڅوی آیا دا قیمت جائز دې یا نه؟ **بينواتوجروا**

المستفتی: عبدالحمید ایس وی معلم ګورنمنټ هائی سکول لنډها

دی آئی خان......۱۰ رمضان المبارک ۱۴۰۳ھ

---

(۱) قال العلامة الحصكفي: الحرام ينتقل فلو دخل بامان واخذ مال حربي بلا رضاه واخرجه الينا ملكه وصح بيعه لكن لا يطيب له ولا للمشتري منه، (درمختار)

وقال العلامة ابن عابدين: (قوله الحرام ينتقل) اي تنتقل حرمته وان تداولته الايدي وتبدلت الاملاك، (قوله ولا للمشتري منه فيكون بشرائه منه مسيئا لانه ملكه بكسب خبيث وفي شرائه تقرير للخبث ويؤمر بما كان يؤمر به البائع من رده علي الحربي. (الدرالمختار ۱۴۵ : ۴ مطلب البيع الفاسد لا يطيب له ويطيب للمشتري منه)

**الجواب:** دا پنشن د حکومت د طرف نه ورکړه او امداد دې، پس پنشن ټول یا بعض په حکومت باندې خرڅول که په خوښه وی او که جبرا قابل اعتراض امر نه دې، په ورکړه کې ورکوونکی هر قسم تصرف کولې شی. **وهوالموفق**

**دقیمت د وصولولو نه مخکې مبیع دوباره په بائع باندې په کم قیمت خرڅول**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په کلی لنډی کوتل کې بعض سوداګرو دا کاروبار اختیار کړې دې چې مثلا سعید یو فریج په شپږ زره روپۍ د دوه میاشتو په وعده باندې د زید په لاس خرڅ کړی بیا سعید د زید نه دا فریج په څلور زره روپۍ باندې اخلی او هغه ته څلور زره روپۍ نقدې ورکوی ځکه چې زید ته د پیسو ضرورت ووپس هغه دوه زره روپۍ تاوان برداشت کولو سره څلور زره روپۍ د سعید نه نقدې واخستلې او شپږ زره روپۍ به دوه میاشتې پس سعید ته ورکوی زمونږ خلقو دا قسم طریقه خپله کړې ده،لهذا تاسوحکم شرعی بیان کړئ. **بینواتوجروا**

المستفتی: عثمان خیل دکاندار لنډی کوتل ٤ جمادی الاول ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** دا معامله ناجائز ده، لما فی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ۴: ۱۱۴، ۱۱۵ وفسد شراء ما باع بنفسه اوبوکیله من الذی اشتراه ولوحکما کوارثه بالاقل من قدرالثمن الاول قبل نقد کل الثمن الاول (۱). **وهوالموفق**

**د ولی د یتیم دمال خرڅولو حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې متوفی د خپل ځان نه وروستو یو زوجه او څه نابالغ اولاد پریښودلې دې،، په میراث کې هغه کور هم دې په کوم کې چې هغوی اوسیدل، خو د هغه د وفات نه پس په هغه کور کې د هغه د بچو اوسیدل ګران دی، کونډه او د

(۱) (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۱۲۸:۴ باب البیع الفاسد)

هغې سرپرست خپلوان دې کور لره خرڅولو سره د هغې په عوض کې په بل ځای کور جوړول غواړي. آیا د هغوی دا عقد بیع هرکله چې ماشومان نابالغ دی صحیح ده یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ مولانا احتشام الحق خطیب سی ایم ایچ نوشهره

**الجواب:** ولی (سرپرست) د یتیم په مال کې تصرف نافعه کولې شی (۱) **کما فی اداب الاوصیاء علی هامش جامع الفصولین ۱۴۵/۲ اولحاجة الیتیم الی ثمنه. وهوالموفق**

## د ریډیو او ټی وی د اخستلو او خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې په دکان کې د نور سامان سره ریډیو او ټی وی هم خرڅوی نو د هغه ټی وی تجارت صحیح دې یا نه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: تبلیغی حضرت صابر جنرل سټور کوچی مارکیټ

نوښار صدر...... ۱۸/ربیع الثانی ۱۴۰۳هـ

**الجواب:** ریډیو او ټی وی بذات خود آلات دی، په جائز او ناجائز دواړه قسم کارونو کې په کارراوستلې کیږي خوچونکې عموماً آلات دلهو اولعب دپاره اخستلې شی لهذا د قواعدو په رڼا کې ددې خرڅول ممنوع دی، خو که څوک ئې په نیک نیت باندې اخلی نو په هغه باندې خرڅول منع نه دی. (۲) **وهوالموفق**

---

۱ ) قال العلامة الحصکفي: (و) جاز شراء مالا بد للصغیر منه وبیعه) اي بیع مالابد للصغیر منه لاخ وعم وام. (درمختار ۵:۲۷۶ فصل في البیع، کتاب الحظر والاباحة)

وفي الهندیة: ولو باع الوصي ماله من اجنبي بمثل قیمته یجوز وقیل انما یجوز تصرفه باحد شروط ثلاثة اما ان یبیع بضعف قیمته او للصغیر حاجة الي ثمنه.
(هندیة ۳:۱۷۶ مطلب في بیع القاضي وشرائه مال الیتیم)

۲ ) قال العلامة الحصکفي: (وجاز بیع عصیر) عنب (ممن) یعلم انه (یتخذه خمرا) لان المعصیة لا تقوم بعینه بل بعد تغیره وقیل یکره لا عانته علي المعصیة... ان ما قامت المعصیة بعینه یکره بیعه تحریما والا فتنزیها. (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۳۷۶:۵، ۳۷۷ فصل في البیع، کتاب الحظر والاباحة)

## په کفارو باندې افیون او هیروئن خرڅول

**سوال:** څه فرمائی د شرع متین علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې د پاکستان نه افیون او هیروئن برآمد کولو سره مغربی ملکونو ته رسوی، د بعض علماء کرامو خیال دې چې چونکې یورپی ممالک دارالکفر دې او د مسلمانانو په مخالفت کې څه کمې نه پریږدی په دې وجه په طور د دشمنئ په دې ملکونو کې د دې سړی تجارت صحیح دې یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: مولوی محمد عثمان فاضل دارالعلوم کراچی کورنگی.... ۱۴/محرم ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** د مسلمانانو دپاره د افیون او هیروئن وغیره خرڅول مکروه تحریمی دی برابره خبره ده که دا خرڅول په کفارو باندې وی او که په مسلمانانو باندې. اما الکراهیة فلما فی اشربة شرح التنویر، وصح بیع غیر الخمر وفی ردالمحتار ۴۰۱:۵ ثم ان البیع وان صح لکنه یکره کما فی الغایة([1]) واما کونها تحریمیة فلورود التادیب فی ما هو ادنی منها([2]) واما الاطلاق فظاهر من اطلاقهم، پس په یورپی کفارو باندې د افیون خرڅول په حقیقت کې د دین هیرول بلکې د دین خرڅول دی. وهوالموفق. وفیه تامل: (مفتی سیف الله حقانی)

## د افیون د تجارت حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د افیون تجارت څنګه دې؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: حاجی عبدالعزیز درگئ، ملاکنډ ایجنسی...... ۲۱/جولائی ۱۹۷۹ء

---

[1] (درمختار مع ردالمحتار ۵:۳۲۳ کتاب الاشربة)

[2] وقال العلامة الحصفکي: وممن جزم بحرمة الحشیشة شارح الوهبانیة في الحظر ونظمه فقال:... وافتوا بتحریم الحشیش وحرفه وتطلیق محتش لزجر:: وقرروا لبائعه التادیب والفسق اثبتوا. (درمختار ۵:۳۲۷ کتاب الاشربة)

**الجواب:** د افیون تجارت مکروه تحریمی دې کله چې دا تداوی دپاره نه وی، اما الکراهة فلما فی ردالمحتار ۶: ۴۰۴ ثم ان البیع وان صح لکنه یکره کما فی الغایة(۱) واما التحریم فلکونها مطلقه ولروایة تأدیب بائع الحشیشة کما صرح به قبیل الصید(۲) وهومثل الافیون بل دونه واقله ضررفافهم. وهوالموفق

**تمباکو، د خشخاش او افیون اخستل او خرخول او خوراک، د بینک د ملازمت حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې آیا په څمکه باندې تمباکو او خشخاش کرل جائز دی یا ناجائز او کومه ګټه چې د تمباکو د پانو یا د خشخاش د تخم او افیون نه حاصلیږی هغه حرام دې یا حلال؟ او د خشخاش تخم استعمالول حرام دی یا حلال؟ دا قسم نور معلومات که راکړې شی نو ډیره مهربانی به وی، د بینک د ملازمت په باره کې د علماء کرامو متفقه فیصله څه ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: سید جمال شاه نیشنل بینک آف پاکستان

مینګوره سوات.....۲۳ | صفر ۱۳۹۰ھ

**الجواب:** الف : چونکې د تمباکو څښل په غرض صحیحه سره مباح دی لهذا ددې کرل او اخستل خرخول هم مباح دی، قال العلامة الشامی: فانه لم یثبت اسکاره، ولا تفتیره ولا اضراره بل ثبت له منافع فهو داخل تحت قاعدة الاصل فی الاشیاء الاباحة(۳).

---

۱ ﴾ (ردالمحتار ۵:۳۲۳ کتاب الاشربة)

۲ ﴾ وقال العلامة الحصکفي : وممن جزم بحرمة الحشیشة شارح الوهبانیة في الحظر ونظمه فقال : ... وافتوا بتحریم الحشیش وحرقه وتطلیق محتش لزجر

و قرروا لبائعه التادیب والفسق اثبتوا.

(درمختار ۵:۳۲۷ کتاب الاشربة)

۳ ﴾ (ردالمحتار ۵:۳۲۶ کتاب الاشربة)

[ب]: د خشخاش تخم بیشکه حلال او جائز دي ځکه چې نه مسکر دې او نه مفتر (۱) [ت]: د افیون اخستل او خرڅول مکروه دی. صرح به رد المحتار کتاب الاشربة. (۲)

ج: د بینک په ملازمت کې تعاون علی المعصیة موجود دې کوم چې حرام دې. لقول رسول الله ﷺ لعن آکل الربوا وموکله وکاتبه (رواه النسائی) (۳).

قال الله تبارك وتعالی: ولاتعاونوعلی الاثم والعدوان (۴). وهوالموفق

## د ملازم سرکاری څیز په زیات قیمت باندې خرڅول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د سرکاری ډاکخانې لفافه او پوسټ کارډ د مقرر قیمت نه په زیات قیمت باندې خرڅول او ګټه پرې کول جائز دی یا ناجائز؟ **بینوا توجروا**

المستفتی: محمد ایوب خان بمعرفت حاجی شیر زمان وانا کیمپ وزیرستان. ربیع الاول ۱۳۹۴ھ

**الجواب:** د ډاکخانې د ملازمینو دپاره د مقرر نرخ نه په زیات قیمت باندې خرڅول جائزنه دی ځکه چې دا خلق د حکومت د طرف نه وکیلان دی او د حکومت په نزد په زیادت باندې خرڅول جرم دې. (۵) خو کوم سړې چې د

---

۱) قال العلامة ابن عابدين : وليس الاحتياط في الافتراء علي الله تعالي باثبات الحرمة او الكراهة اللذين لا بد لهما من دليل بل في القول بالاباحة التي هي الاصل. (ردالمحتار ۵:۳۲۶ كتاب الاشربة)

۲) قال العلامة ابن عابدين : (قوله صح بيع غير الخمر)... ثم ان البيع وان صح لكنه يكره كما في الغاية. (ردالمحتار ۵:۳۲۳ كتاب الاشربة)

۳ (سنن نسائي ۲:۲۸۰ الموتشمات وذكر الخلاف علي عبد الله بن مرة والشعبي في هذا، كتاب الزينة)

۴).(سورة المائدة آيت: ۲)

۵) قال العلامة الكاساني : واما الوكيل بالبيع فالتوكيل بالبيع لا يخلو اما ان يكون مطلقا واما ان يكون مقيدافان كان مقيدا يراعي فيه القيد بالاجماع (بدائع الصنائع ۵:۲۶ كتاب الوكالة)

ډاکخانې نه لفافې واخلي، او د هغې نه پس ئې په زياتو پيسو خرڅوی نو بيع صحيح ده خو د وعدې خلاف کار کولو باندې به ګنهګار وی. وهوالموفق

## د اخستلو او خرڅولو په مجلس کې په مختلفو قيمتونو سره نرخ مقررولو باندې بيع کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې يو کميشن ايجنټ مونږ ته د بازار نه کپړه په لاندې ليکلې شوې شرطونو باندې راکوی:
۱: د نقد ادا کولو په صورت کې په اته انې فی سينکړه. (يعنی سل جوړې)
۲: په لس دولسو ورځو کښې د ادا کولو په صورت کې په يوه روپئ فی سينکړه ۳: يو مياشت يا د هغې نه د زياتې په صورت کې يوه روپئ او اته انې فی سينکړه، نو آيا په دې پورته ذکر شوې شرطونو باندې ورکول جائز دی او که په سود کې داخليږی. بينواتوجروا

المستفتی: شيخ زاهد علی بمعرفت ضياء کلده هاؤس ريل بازار لائکپور. ۱۵/۷/۸۲

**الجواب:** که هم د دې اخستلو او خرڅولو په مجلس کې جنس او قيمت متعين کړې شوې وی نو د نقد د وجې نه کمې او د غير نقد په صورت کې زيادت جائز دې.(۱) لان الحرام هی الزيادة عوض الاجل لا لاجل الاجل صرح به العلامة اللکهنوی فی فتاواه ۱: ۵۴۷(۲). وهوالموفق

---

۱) وفي خلاصة الفتاوي: رجل باع شيئا علي انه بالنقد بكذا وبالنسيئة بكذا والي شهرين بكذا لم يجز. والي شهر بكذا
(خلاصة الفتاوي ۳:۶۰ جنس آخر فيما يتعلق بالثمن)

۲) قال العلامة عبد الحئي اللکهنوي: د ثمن زياتوالي د اجل (نيتې) په وجه بيشکه صحيح دې ددې ثبوت د هدايه د کتاب المرابحه د عبارت نه ډيرښه کيږی. په هدايه کې دی الا تري انه يزاد في الثمن لاجل الاجل... فصيح الدين هروي رحمه الله د شرح وقايه په کتاب المرابحه کې داسې ليکی: في النسيئة يزاد الثمن... [بقيه برصفحه آئنده...

## د میلو د خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې که یو سړې میلو ښکار کړی او په هغه باندې تکبیر ویلو سره ئې ذبح کړی نو د هغه میلو غوښه د اوښ یا د غوا د طاقت زیاتولو دپاره یا د هغه تیل د نورو فائدو دپاره خرڅول جائز دي یا ناجائز؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولوی گل ولی خان ۱۵/۱/۱۹۶۹

**الجواب:** چونکې میلو حرام دې لهذا د هغه د غوښې او وازگې پخپله خوړل او په بل باندې خوړل هم حرام دی.

فی الهندیة: فذوالناب من سباع الوحش مثل الاسد... والدب والقرد فلا خلاف فی هذه الجملة الافی الضبع فانه حلال عندالشافعی ۵: ۳۲۱(۱)

بیشکه کله چې ذبح شرعی موجوده شی نو غوښه او وازگه اگر چې نجس نه ده خو د هغې پخپله خوړل اوپه انسان باندې خوړل حرام وی. او نورې فائدې ترې نه اخستل جائز دی.

قال فی الهندیة ۵: ۳۱۸ واما حکمها فطهارة المذبوح وحل اکله من الماکول وطهارة غیر الماکول للانتفاع لا بجهة الاکل کذا فی محیط السرخسی(۲). فقط

---

...بقیه ازحاشیه گذشته ]لاجل الاجل اوپه البحر الرائق کې دی: لان للاجل شبها بالمبیع الاتري انه یزاد في الثمن لاجل الاجل اوهم په دې کتاب څو کرښې پس لیکی: الاجل في نفسه لیس بمال ولا یقابله شيئ من الثمن حقیقة اذا لم یشترط زیادة الثمن بمقابله قصدا ویزاد في الثمن لاجله اذا ذکر الاجل بمقابلة زیادة الثمن قصداً.

(مجموعة الفتاوي ۲: ۱۲۴ کتاب البیع)

۱ ) (فتاوي هندیة ۵: ۲۸۹ الباب الثاني في بیان مایؤکل من الحیوان وما لا یؤکل)

۲ ) (فتاوي هندیه ۵: ۲۸۶ کتاب الذبائح، الباب الاول في رکنه وشرائطه وحکمه)

## نیلام او په هغې کې بولی نه کولو والو ته د پیسو ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د حکومت د طرف نه هر وخت د مختلفو څیزونو د نیلام کولو احکامات جاری کیږی او په هغې باندې بولی کولې شی کوم چې زمونږ د علاقې د څو مخصوص کسانو اجاره داری جوړه شوې ده، د حکومت کسان د نیلامئ په ورځ باندې موجود وی او هم هغه مخصوص کسان په بنده کمره کې کیناستلو سره خپل مینځ کې فیصله کوی چې مثلا لس زره د یو څیز قیمت دې په مونږ کې دې څوک هم د دوه زرو نه زیاته بولی نه کوی په هغوی کې به یو د درې زرو بولی کوی، او بولی به دهغه په حق کې شی، اوس چې چا بولی اخستلې ده هغه به مونږ لسو کسانو ته هر یو کس ته سل سل روپئ راکوی ددې په بدل کې چې مونږ د هغه په بولی یعنی د درې زرو نه د زیاتی رقم بولی نه ده کړې، آیا دا پیسې جائز دی یا ناجائز؟ بینواتوجروا

المستفتی: حاجی امتیاز خان سکنه میرا اکبر غوریواله بنوں

**الجواب:** نیلام (بیع من یزید) بذات خود جائز ده : **کما ورد فی حدیث الترمذی وغیره.**(۱) **وصرحه به جمیع فقهاء الحنفیة**(۲) خو د ملکیت غیر نیلام (اخستل او خرڅول) بغیر د اذن شرعی نه حرام دې.(۳) بله دا چې بولی نه

---

(۱) عن انس بن مالک رضي الله عنه ان رسول الله ﷺ باع حلساً وقدحاً وقال من يشتري هذه الحلس والقدح فقال رجل اخذتهما بدرهم فقال النبي ﷺ من يزيد علي درهم فاعطاه رجل درهمين فباعهما منه(جامع الترمذي ۱:۳۶۱ ابواب البيوع ،باب ماجاء في بيع من يزيد)

(۲) قال العلامة الحصكفي : لا يكره ... بيع من يزيد وقد باع عليه الصلوٰة والسلام قدحا وحلسا ببيع من يزيد. (الدرالمختار ۱۴۸،۱۴۹ : ۴باب البيع الفاسد)

(۳) وفي الهندية : اما شرائط الانعقاد فانواع منها ان يكون مملوكا في نفسه وان يكون ملك البائع فيما يبيعه لنفسه فلا ينعقد بيع الكلاء ولا بيع ما ليس مملوكا له وان ملكه بعده.
(فتاوىٰ هندية ۳:۲،۳ كتاب البيوع ، الباب الاول)

کونکو اشخاصو ته څه پیسې ورکول د رشوت کیدو د وجې نه، اخستل او ورکول دواړه حرام دی. (۱) وهوالموفق

## په حرام مال باندې د اخستلې شوې څیز د استعمال حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې کوم سړې په حرام مال باندې یو څیز واخلی نو د هغې د استعمال به څه حکم وی، په تفصیل سره بیان کړئ؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم.

**الجواب:** چونکې زمونږ په علاقو کې د ثمن تعین نه شی کولې بلکې عقد علی الاطلاق نه پس ثمن او رقم ورکولې شی او هم د دې په شان صورت کې مبیعه حلاله راځی، لهذا په دې طریقه سره د اخستلې شوې څیز په استعمال کې باک نشته او د تعین صورت که وی نو مبیعه به حلاله نه وی، ردالمحتار (۲) وهوالموفق

---

۱ ﴾ قال العلامة ابن عابدين : الرشوة بالكسر ما يعطيه الشخص الحاكم وغيره ليحكم له او يحمله علي ما يريد ... وفي القنية الرشوة يجب ردها ولا تملك وفيها دفع للقاضي او لغيره سحتا لاصلاح المهم فاصلح ثم ندم يرد ما دفع اليه.
(ردالمحتار ۳۳۷،۳۳۸ : ۴ مطلب في الكلام علي الرشوة)

۲ ﴾ قال العلامة ابن عابدين : (قوله اكتسب حراما الخ) توضيح المسألة ما في التتارخانية حيث قال رجل اكتسب مالاً من حرام ثم اشتري فهذا علي خمسة اوجه اما ان دفع تلك الدراهم الي البائع اولا ثم اشتري منه بها او اشتري قبل الدفع بها ودفعها او اشتري قبل الدفع بها ودفع غيرها او اشتري مطلقا ودفع تلك الدراهم او اشتري بدراهم اخر ودفع تلك الدراهم قال ابو نصر يطيب له ولا يجب عليه ان يتصدق الا في الوجه الاول واليه ذهب الفقيه ابو الليث... وقال الكرخي في الوجه الاول والثاني لا يطيب وفي الثلاث الاخيرة يطيب وقال ابوبكر لا يطيب في الكل لكن الفتوي الآن علي قول الكرخي دفعا للحرج عن الناس. (ردالمحتار ۲۴۴ : ۴ مطلب اذا اكتسب حراماً ثم اشتري فهو علي خمسة اوجه)

## د (سپینې) خاورې په بدل کې په موسم کې مکئ ورکول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په علاقه کې زمیندار اکثر غریب دی او دکاندار هغوی ته خاوره د مکئ په بدله کې ورکوی یعنی یو بورئ خاوره ورکوی او فیصله کوی چې په موسم راتلو باندې به دوه منه اوچ مکئ زما دکان ته رارسوې آیا دا بیع جائز ده یا ناجائز؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** شیخ محمد میر سوات......۸ ستمبر ۱۹۷٤ء

**الجواب:** د نیټې د جهالت د وجې نه ناجائز ده. (هدایة) (۱) **وهوالموفق**

## ډالډه غوړو لره د کورنی غوړو په نرخ باندې د خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ډالډه غوړی، کوم چې د خالص کورنو غوړو په شان ښکاریږی او بائع او مشتری دواړه ئې کورنی غوړی ګڼی، هغه د کورنو غوړو په قیمت باندې خرڅول جائز دی یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** محمد علی خان سکنه غوریواله ضلع بنون...۱۹۷٦ء/۲/۲۵

**الجواب:** د دې خاص غوړو د کورنو غوړو په نرخ باندې خرڅول جائز دی،

---

(۱) قال العلامة المرغيناني: لا يجوز البيع الي قدوم الحاج وكذلک الي الحصاد والدياس والقطاف والجزار لانها تتقدم وتتاخر.
(هداية ۳:٦۱ باب البيع الفاسد)

وقال العلامة الحصكفي: وصح بثمن حال ومؤجل الي معلوم لئلا يفضي الي النزاع، وقال العلامة ابن عابدين: (قوله لئلا يفضي الي النزاع) واما مفهوم الشرط المذكور وهو انه لا يصح اذا كان الاجل مجهولا.
(شامي ۴:۲۵ مطلب في التأجيل الي مجهول)

خو دهوکه ورکول او دې غورو ته کورنی غوړې ویل حرام دی. لما رواه مسلم ان النبی ﷺ نهی عن بیع الغرر. (۱) پس تاسو توبه وکړئ او زیاتی قیمت واپس کړئ. (۲) وهوالموفق

## د بائع د ثمن نه زیات لیکلې شوې پیسې د مشتری نه اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو بائع په مشتری باندې د ځمکې یوه ټکړه په لس زره روپئ باندې خرڅوی، مشتری اوس دا شرط لګوی چې زه به سنا د ورونو او حقداران شفعه د وجې نه په کاغذونو کې پنځلس زره روپئ ولیکم او س که بائع پنځلس زره روپئ اخستلو سره انکار وکړی چې زه بقایا پیسې نه درکوم نو په صورت مذکوره کې بقایا پیسې چې پنځه زره روپئ دی د بائع دپاره اخستل جائز دی یا ناجائز؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولانا عبدالرؤف مقام ودا کخانه ویسه ضلع کیملپور

**الجواب:** د بائع دپاره دا زیاتی پیسې اخستل حرام دی ځکه چې دا رقم په ثمن کې داخل نه دې. (۳) والهزل لایؤثر فی البیع (۴) وهوالموفق

---

۱) عن ابي هريرة رضي الله تعالي عنه قال نهي رسول الله ﷺ عن بيع الحصاة وعن بيع الغرر. (الصحيح للامام المسلم ۲:۲ باب بطلان بيع الحصاة والبيع الذي فيه غرر)

۲) قال العلامة الحصكفي : ان غره المشتري البائع او بالعكس فله الرد.
(درمختار ۱۷۸ : ۴ باب المرابحة)

۳) وفي شرح المجلة : الثمن ما يكون بدلا للمبيع ويتعلق بالذمة.
(شرح المجلة ۲ : ۲ المادة ۱۵۲)

۴) قال العلامة ابن عابدين : (قوله ولم ينعقد مع الهزل)... فان تواضعا علي الهزل باصل البيع اي توافقا علي انهما يتكلمان بلفظ البيع عند الناس ولا يريدانه واتفقا علي البناء اي علي انهما لم يرفعا الهزل ولم يرجعا عنه فالبيع منعقد لصدوره من اهله في محله لكن يفسد البيع لعدم الرضاء بحكمه (ردالمحتار ۷،۸ : ۴ كتاب البيوع ،مطلب في حكم البيع مع الهزل)

## په بلیک باندې مال خرڅول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ۱: په باره کې دکانونه د حکومت پاکستان ملکیت دی، د هغې کرایه حکومت پاکستان وصولوی او هلته مختلف سهولتونه مثلا بجلی وغیره حکومت پاکستان ورکوی.

۲: د بارې نه مختلف څیزونه پیښور یا پنجاب ته د رسولو په وخت بعض وخت کستم والا پریږدی او بعض وخت کپړه وغیره اخلی.

۳: په پیښور کې یو کوچی بازار د بارې نه د راوړلې شوې کپړې نه ډک دې، او بغیر د څه ممانعت نه په هغه بازار کې د دې کاروبار کیږی.

۴: عام طور دوه درې جوړه کپړې یا نور څیزونه په لږ مقدار کې راوړلو سره هغوی نه نیسی خو که زیاته کپړه یا نور څیزونه زیات وی نو نیسی ئې او کله ئې پریږدی هم د دې مسئلې تفصیل راولیږئ. **بینواتوجروا**

المستفتی: غلام علی پی اے ایف پشاور ......۱۸ اگست ۱۹۹۹ء

**الجواب:** د اسلامی نظام د راتلو نه پس د امیر المومنین هر حکم واجب التسلیم وی او د دې نه مخکې د صدر د حکم مخالفت کول قانونی جرم دې اسلامی جرم نه دې.(۱) په دنیوی خطراتو سره مالی دې او د اخروی خطراتو نه خالی دې. **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة الحصكفي : لان طاعة الامام فيما ليس بمعصية فرض . وقال العلامة ابن عابدين : والاصل فيه قوله تعالي واولي الامر منكم وقال ﷺ اسمعوا واطيعوا ولو امر عليكم عبد حبشي اجدع وروي مجدع وعن ابن عمر انه عليه الصلاة والسلام قال عليكم بالسمع والطاعة لكل من يؤمر عليكم ما لم يامر كم بمنكر . (شامي ۳:۳۴۰ مطلب في وجوب طاعة الامام) ... [بقیه بر صفحه آئنده...

## د غیر د ملک بیع او هغې ته د حلال ویلو حکم

**سوال:** اطلب من سماحتكم حل المسئلة صورتها رجل خرج من البيت في سبيل الله واعطى ارضه لاخيه من الاب بحضور الرجال من القرية بان تزرع ارضي وتكون الزراعة منصفا بيني وبينك على سواء بشرط ان لاتبدل ولاتبع ارضي بالغير وايضاً هذا القول بحضور الرجال من القرية فقال اتبع كلامك واسلم كلامك وقالت الرجال ان باعها فنحن ضامنون لك، ثم لما ذهب ايام فباع بعضها وبدل بعضها بدون الاجازة من صاحب الارض ايصح هذا البيع املا؟ والاف الزراعة حرام املا؟ وان كانت حراما فيقولون بالحلة بعد العلم بحرمتها فما حكم هؤلاء الناس وايضا ان ولد له ولداً فما حكم ولده بالحلة والحرمة؟ بينوا توجروا

المستفتي: سين غفور متعلم دار العلوم حقانيه اكوره ختك... ۱۹۶۹ء/۹/۲۵

**الجواب:** هذا البيع والتبدل حرام وكذا الانتفاع بها قال الله تعالى: ولا تأكلوا اموالكم بينكم بالباطل (۱) وقال رسول الله ﷺ لا يحل مال امرء مسلم

---

...بقيه ازحاشيه گذشته]

وقال الدكتور وهبة الزحيلي: حدد الماوردي واجبات المسلمين نحو الحاكم بامرين وهما (۱) الطاعة في غير معصية. (۲) النصرة مالم يتغير حاله، فقال اذا قام الامام لما ذكرنا من حقوق الامة فقد ادي حق الله تعالي فيما لهم وعليهم ووجب له عليهم حقان الطاعة والنصرة مالم يتغير حاله... وبذل الطاعة مشروط بقيام الحاكم بواجباته التي ذكرت سابقا ومضمونها التزام اوامر الشريعة.

(الفقه الاسلامي وادلته ۸:۶۱۹۰ حقوق الامام الحاكم)

۱) (سورة النساء آيت ۲۹)

الاعن طيب قلبه(۱)، وفى استحلال هذا البيع والتبدل مع العلم بعدم الاذن خوف الكفر، قال فى شرح العقائد النسفية ۱۲۰ اذا اعتقد الحرام حلالا فان كانت حرمته لعينه وقد ثبت بدليل قطعى يكفر والا فلا بان يكون حرمته لغيره او ثبت بدليل ظنى وبعضهم لم يفرق بين الحرام لعينه ولغيره فقال من استحل حراما وقد علم فى دين النبى ﷺ تحريمه فكافر انتهىٰ (۲) باختصار يسير ولا نقص فى الاولاد لان المغصوب يملك بالاستهلاك، والاكل استهلاك (۳).

وهوالموفق

## د پلار په ځوی باندې د يو ځيز د خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې يو سړې چې نوم ئې نجيب الله دې د هغه درې ځامن دی دغه مذکوره سړی خپل پوره جائيداد په خپل ژوند کې تقسيم کړو، د پوره جائيداد ئې څلور حصې جوړې کړې درې حصې ئې خپلو درې وارو ځامنو ته ورکړې او يوه حصه ئې خپله واخستله بيا ئې خپله حصه په خپل ژوند کې خپل وړوکی ځوی باندې د زرو روپو په عوض کې خرڅه کړه او د خپلې بوډۍ ښځې د ګور کفن او خرچ اخراجات ئې هم د وړوکی ځوی په ذمه باندې ولګول، نجيب الله وفات شو

---

۱) وفي مشكوٰة المصابيح: عن ابي حرة الرقاشي عن عمه قال قال رسول الله ﷺ الا لا تظلموا الا لا يحل مال امرئٍ الا بطيب نفس منه.
(مشكوٰة المصابيح ۲۵۵ باب الغصب والعارية)

۲) شرح العقائد ۱۳۰)

۳) وفي الدرالمختار: فان غصب وغير المغصوب فزال اسمه واعظم منافعه او اختلط المغصوب يملك الغاصب بحيث يمتنع امتيازه او يمكن بحرج ضمنه وملكه بلاحل انتفاع قبل اداء ضمانه فلو غصب طعاما فمضغه حتي صار مستهلكا يبتلعه حلالا في رواية.
(الدرالمختار ۱۳۵: ۱۳۴: ۵ كتاب الغصب)

اوس د هغه نور ځامن د پلار خرڅول نه مني، مهرباني وکړئ اوس د شریعت په رڼا کې دا بیان کړئ چې د پلار دا بیع د کشر ځوی په حق کې صحیح ده یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: علاقه گدون قومی دواخانه تلا تحصیل صوابی ضلع مردان ..... ۱۹۶۹ء/۳/۲۲

**الجواب:** د نجیب الله د کشر ځوی گواهان که موجود وی نو حکم یا حاکم ته دې پیش کړی ځکه چې د پلار په ځوی باندې خرڅول بیشکه صحیح دی (۱) خو ثبوت ضروری دې. (۲) وهوالموفق

**د زمیندار د مالک ځمکې لره خرڅول اولنگی اخستلو سره غیرته قبضه ورکول**

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې بکر د ځمکې مالک دې، عمر د هغه زمیندار دې. آیا دا زمیندار شرعا دا ځمکه خرڅولې شی، او آیا لنگی اخستلو سره د ځمکې د مالک په غیر موجودگئ او بې خبرئ کې د ځمکې قبضه یو غیر کس ته ورکولې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: امیر حسن سکنه دیر ......۱۹۸۵ء۳/۱۶

**الجواب:** دا زمیندار نه د ځمکې مالک دې او نه د ځمکې د مالک وکیل، لهذا دا زمیندار نه خو د ځمکې د خرڅولو اجازه لري(۳)، او نه لنگی

---

(۱) قال العلامة الحصکفي: وینعقد ایضا بلفظ واحد کما في بیع القاضي والوصي والاب من طفله وشرائه منه. (الدرالمختار ۴:۲۰ کتاب البیع)

(۲) قال العلامة الحصکفي: ونصابها لغیرها في الحقوق سواء کان الحق مالا او غیره رجلان او رجل وامرأتان. (الدرالمختار ۴:۴۱۳ کتاب الشهادة)

وفي الهندیة: وشرط فیها شهادة رجلین او رجل وامرأتین سواء کان الحق مالا او غیر مال. (فتاوي هندیة ۳:۴۵۱ کتاب الشهادات، الباب الاول)

(۳) وفي شرح المجلة: ویشترط لنفاذ البیع ان یکون البائع مالکا للمبیع وان لا یکون في المبیع حق آخر. (شرح المجلة ۲:۳۴۹ المادة ۳۶۵) ...[بقیه برصفحه آئنده...

اخستلې شي، او نه د اسلامي اصولو خلاف قوانین څه حیثیت لري (١) وهوالموفق

## د مشتري د مبيع سره په غير مبيع باندې د قبضې کولو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې يو سړي ليکلې شوې نمبرو : ۲۱۴۳، ۲۲۴۵، ۲۲۵۸، ۲۲۷۱ او ۲۲۷۴ کې پنځوس کناله او دولس مرلې ځمکه اخستلې ده، اوس دا سړې په يو نمبر کې په دومره مقدار ځمکه باندې قابض شوې دې، په شريعت کې داسې په يو نمبر باندې د قابض کيدو څه حکم دې؟ بينواتوجروا

المستفتي: شمشاد خان غله منډۍ پاړه وق. ۱۹۸۵/۱۰/۲

**الجواب:** صرف په يو نمبر باندې د ټولې رقبې په مقدار باندې قابض کيدل ناجائز دي ځکه چې دا مبيع نه ده، بيشکه که دا مقبوضه د بائع ملکيت وي او دغه په اجازې سره مشتري قبضه کړې وي نو بيا جائز دې. (٢) وهوالموفق

---

...بقيه از حاشيه گذشته]

وفي الهندية: واما شرائطه فانواع ومنها ان يكون ملك البائع فيما يبيعه لنفسه... فلا ينعقد بيع ما ليس مملوكا له. (هندية ٣:٢،٣ كتاب البيوع الباب الاول)

١ ﴾ قال الدكتور وهبة الزحيلي: ولكن لا تجب الطاعة عند ظهور معصية تتنافي مع تعاليم الاسلام القطعية الثابتة لقوله عليه الصلاة والسلام لا طاعة لاحد في معصية الله، وانما الطاعة في المعروف لاطاعة لمن لم يطع الله. (الفقة الاسلامي وادلته ٨:٦١٩١ حقوق الامام الحاكم)

٢ ﴾ قال العلامة ابن عابدين: وكون الملك للبائع فيما يبيعه... ولا بيع ماليس مملوكا له وان ملكه بعده. (ردالمحتار ٦:٤ مطلب شرائط البيع انواع اربعة)

وفي الهندية: واما شرائط النفاذ فنوعان الملك اوالولاية والثاني ان لا يكون في المبيع حق لغير البائع (فتاوي عالمگيرية ٣:٣ كتاب البيوع، الباب الاول في تعريف البيع)

وفي شرح المجلة: ويشترط لنفاذ البيع ان يكون البائع مالكاً للمبيع... وان لا يكون في المبيع حق آخر.

(شرح المجلة ٢:٣٤٩ المادة ٣٦٥ الفصل الاول في بيان انواع البيع)

## د ناول د کتابونو خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د ناول کتابونه او د لوبو د سامان دکان پرانستلو سره ژوند تیرول څنګه دی؟ د لوستونکی او د خرڅونکی څه جرم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد نثاربرټ.... یکم فروری ۱۹۷۵ء

**الجواب:** د ناول کتابونه په لهو الحدیث کې داخل دی لهذا د هغې اخستل او خرڅول د کراهیت نه خالی نه دی.(۱) د لوبو څیز په غیر مباح لوبو کې استعمالیږی د هغې هم دا حکم دې(۲). **وهوالموفق**

## د شریک د یتیم ځمکه خرڅول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید عمرو او بکر درې واړه په یوه ځمکه کې شریکان دی بکر یتیم دې زید د بکر نیکهٔ دې او عمرو د بکر ترهٔ دې. تقریبا شل کاله مخکې زید او عمر د بکر د حصې سره مشترکه ځمکه د خالد په لاس خرڅه کړه خو دا ئې ښکاره نه کړل چې په دې کې د بکر یتیم هم حصه ده، خو د بیع رقم ئې په تناسب سره د بکر د والد مرحوم په قرضه کې ادا کړو چې د هغې نه بکر منکر نه وو، د بکر د بلوغ

---

۱) وقال الله تبارک وتعالی: ومن الناس من یشتري لهو الحدیث لیضل عن سبیل الله بغیر علم ویتخذها هزوا، اولئک لهم عذاب مهین. (سورة لقمان آیت:۶)

وقال محمد علي الصابوني: اي ومن الناس من یشتري ما یلهي عن طاعة الله ویصد عن سبیله مما لا خیر ولا فائدة فیه قال الزمخشري واللهو کل باطل الهي عن الخیر. (صفوة التفاسیر ۲:۴۴۸)

۲) قال العلامة الحصکفي: وقدمنا ثمه معزیا للنهر ان ما قامت المعصیة بعینه یکره بیعه تحریما والا فتنزیها.

(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۲۷۷:۴ کتاب الحظر والاباحة، فصل في البیع)

پورې مالي متصرف سوا د زید نه بل څوک هم نه وو. خو زید د بکر شرعا وصي یا وکیل نه دې. خو د ځمکې د حدودو به تولو حصو باندې حاوي دی اوس بکر دعوی دائر کړه چې چونکې زه یتیم اوم او ماته د دې علم نه وو په دې وجه دې ماته زما ځمکه واپس کړې شي تاسو دا وضاحت وفرمایئ چې دا ځمکه بکر ته واپس کیدې شي یا نه؟ که کیدې شي نو زر ضمانت به د کوم وخت په اعتبار سره ادا کولې شي؟ ځکه چې د خالد مشتری نه هغه وخت د بیع پیسې وصول کړې شوې دی. او د بکر د والد په قرض کې هم هغه وخت ورکړې شوې دی بینواتوجروا

المستفتي: قاضي فقیر محمد ضلع سوات ... ۳۰/جمادی الثانی ۱٤۰۱ هـ

**الجواب**: چونکې دا خرڅونکې نه اولیاء دی او نه اوصیاء صرف شریکان دی لهذا د هغوی دا اقدام نامنظور او کالعدم دې.(۱) دا بکر به خپله حصه واپس اخلی او دا حصه د قیمت به باقاعده مشتری ته واپس کوی او دا مشتری به بکر ته د هغه د دویشتو کالو اجرت (اجاره) ورکوی.(۲) وهوالموفق

**تنبیه** د دې جواب مبنی دا ده چې د قرض د ادا کولو دپاره د مرحوم د زمکې

---

۱) قال العلامة الحموي: لو ادعي يتيم بعدم بلوغه ان بيع عقاره بغير مسوغ فادعي المدعي عليه المسوغ فالقول قول اليتيم وعلي المدعي عليه البينة لان اليتيم ينكر خروجه عن ملكه اذبيعه والحالة هذه عندنا باطل كما صرح به في التتارخانية.
(شرح الاشباه والنظائر للحموي ۳:۲٦۳ كتاب الوصايا)

وقال العلامة ابن نجيم: لا يجوز للوصي بيع عقار اليتيم عند المتقدمين ومنعه المتأخرون ايضا الا في ثلاثة كما ذكره الزيلعي، اذا بيع بضعف قيمته وفيما اذا احتاج اليتيم الي النفقة ولا مال له سواه وفيما اذا كان علي الميت دين لا وفاء له الا منه. (الاشباه والنظائر ۲۹۱ كتاب الوصايا)

۲) قال العلامة الحصكفي: اشتري دارا وسكن ثم ظهر انها وقف او كانت للصغير لزمه اجر المثل صيانة لمال الوقف والصغير. (الدرالمختار ۵:۱۳۱ كتاب الغصب)

نه علاوه نور مال موجود دي (سیف)

## د حکومت د اشتمال په خرج باندې

## د خلقو نه کټ کړې شوې ځمکې اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې حکومت د اشتمال اراضی کار شروع کړو، د حکومت قانون دې چې څومره خرچه په اشتمال باندې راځی د خلقو نه ئې وصولوی خو د سهولت په لحاظ د ځمکې د هر خاوند نه یو یو مرله او دوه دوه مرلې هم دغه شان د تناسب مطابق ځمکه کټ کولو سره یو ځای ته جمع کړی کوم ته چې شاملات وائی چې د هغې په ذریعه حکومت نیم خرج وصول کړی او باقی خرج د خلقو نه په طور د نقد وصولوی، دا ځمکه تقریبا شکل کناله ده کومه چې د بیع من یزید په شان خرڅیږی د دې ځمکې اخستل شرعا څنګه دی؟

۱: سره د دې چې دا ځمکه په کاغذاتو کې یو ځای ته جمع کړې شوې ده مستقل نمبر والا ده او بیا د دې خپلو خپلو ځمکو سره یوځای کول ممکن نه دی ۲: که دا ځمکه وانخستلې شی نو خواوشا نزدې خلق په دې ځمکه باندې ناحق قابض کیږی او د بیع په صورت کې د ځمکې هر مالک ته د هغې په قیمت کې خپله حصه پوره ملاویدو سره د اشتمال د خرج نه مستثنی کولې شی او باقی خرج به د نقد په طریقه باندې وصولولې شی

۳: خو بعض خلق په دې اشتمال باندې د بعض وجو نه خفه دی خو حکومت اوس دا جبراً نافذ کوی ځکه چې کاغذات کامل مکمل شو او ډیر خرج په دې باندې شوې دې.

۴: او کوم خلق چې راضی دی کوم چې د اکثریت حکم لری په هغې کې ممبرانو د دې ځمکې په خرڅولو باندې په قیمت معین باندې راضی کیدو سره دستخطونه کړی دی او د عامو خلقو نه فردا فردا تپوس کول او

دستخط اخستل ګران دی نو آیا په دې خیال به د دې ځمکې اخستل شرعاً جائزوی؟چې هرحقدارته په دې شاملات کې خپلې پیسې ملاؤشي؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: عبدالغنی مسجد عبداللطیف باچا شمسی روډ محله تلیا**

**ډاکخانه ومقام هوتی مردان**

**الجواب:** په دې کې شک نشته چې دا ځمکه (شاملات) د شریکانو حق دې او په دې کې هم شک نشته چې په داسې ځمکه باندې ډیر په سرعت سره جبراً قبضه کولې شی پس که ټولو یا اکثر مالکانو په اشتمال باندې رضامندی ښکاره کړې وی نو د اشتمال لوازم (یعنی خاص طور سره خرچ وصولولو باندې) به هم راضی وی لهٰذا د **مبادلة الارض بالارض** په شان به د **مبادلة الارض بالدارهم** هم حکومت مجاز وی او په دې اخستلو او خرڅولو کې به څه نقصان نه وی. **قال علیه السلام لا ضرر ولا ضرار رواه مالك في الموطا(۱)، وفي الاشباه والنظائر يتحمل الضرر الخاص لاجل دفع ضرر العام(۷۶)(۲) وايضاً لما جاز بيع خشب المسجد وانقاضه عند خوف التغلب، كما في ردالمحتار۳: ۵۱۴(۳) فيكون هذا البيع جائزا بطريق الاولى. فقط**

---

۱) (موطا امام مالک ۶۲۳ القضاء في المرفق)

۲) الاشباه والنظائر ۸)

۳) قال العلامة ابن عابدين: والذي ينبغي متابعة المشايخ المذكورين في جواز النقل بلا فرق بين مسجد او حوض ولا سيما في زماننا فان المسجد او غيره من رباط او حوض اذ لم ينقل يأخذ انقاضه اللصوص والمتغلبون كما هو مشاهد ... سئل شيخ الاسلام عن اهل قرية رحلوا وتداعي مسجدها الي الخراب، وبعض المتغلبة يستولون علي خشبه وينقلونه الي دورهم هل لواحد اهل المحلة ان يبيع الخشب بامر القاضي، ويمسک الثمن ليصرفه الي بعض المساجد او الي هذا المسجد؟ قال نعم.

(ردالمحتار ۳:۴۰۷ كتاب الوقف، مطلب في نقل انقاض المسجد ونحوه)

## د گنی او د غنمو د کرلی شوی تخم بیع

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید د عمر نه په ځمکه کې کرلې شوې دگنی اوغنمو تخم واخستلو .آیا داجائز ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: حیدرخان... ۱۹۷۶ء/۳/۱۲

**الجواب:** وفی ردالمحتار لا یصح بیع الزرع قبل صیرورته بقلا لانه لیس بمنتفع به ۴:۲۸(۱). وهوالموفق

## د بیع فضولی حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ ځمکه کومه چې د اووه منو ده زما ورور خرڅه کړې ده او زما اجازت په هغې کې نه وو کله چې ماته خبر راورسید نو ما پیسې مشتری ته واپس کړې او اجازت مې ورنکړو او هغه مشتری پیسې وانخستلې په دې باندې دویشت کاله تیر شو او زه هغه ته وایم چې پیسې واخله او ځمکه پریږده، تاسو حضرات راته شرعی حکم بیان کړی. بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم علاقه مهمند.... یکم ذی قعده۱۴۰۱ھ

**الجواب:** که په دې ځمکه کې د دې مدعی شرکت منلې شوې یا په شهادت سره ثابت شوې وی نو د هغه بیع صحیح نه ده او دا بیع د فضولی ده، لما فی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ۴/۱۳۶ (۲) او واضحه دې وی چې

---

۱) (ردالمحتار ۴:۴۲ مطلب في بيع الثمر والزرع والشجر مقصوداً)
(ومثله في شرح المجلة ۲:۹۹ المادة: ۲۰۷)
وفي الخلاصة : ولو باع الزرع ان لم يصر بقلا لايجوز.
(خلاصة الفتاوي ۳:۲۹ كتاب البيوع ، جنس اخر في الزرع والثمر)

۲) قال العلامة الحصكفي : واصطلاحا من يتصرف في حق غيره بغير اذن شرعي كل تصرف صدر منه تمليكا كان كبيع... وله مجيز حال وقوعه انعقد موقوفا ومالا مجيز له حالة العقد لا ينعقد اصلا... [بقيه برصفحه آئنده...

محکم سره د تاخیر د دعوې د وجې نه ساقط او ناقابل سماعت نه وی، کما فی رد المحتار ۳٤۳/٤ الثانی ان النهی حیث کان للقاضی لاینافی سماعها عن المحکم.(١) وهوالموفق

## د بیع فاسد په صورت کې به د مشتری ملکیت کله ثابتیږی؟

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د یو باغ سیوان په ونو کې ښکاره شی خو پاخه نه وی، نو په داسې وخت کې اخستونکی راشی او وائی چې په دې باغ کې څومره سیوان دی د هغې برابر ئې زه فی سیر مثلا په سل روپئ باندې اخلم. هغه وخت کې ئې بائع هم په خوشحالئ باندې قبول کړی، مشتری بائع ته بعض ثمن خو اوس ورکړی او بعض ثمن ورته د سیوانو تللو نه پس ورکوی، دا دې هم واضحه وی چې د عقد په وخت نه د تاجیل ثمن ذکر کیږی او نه د تاجیل مبیع ذکر کیږی. خو دا خبره واضحه ده چې د سیوانو راشوکول د پخیدو نه پس وی او بیا ئې وزن هم د عقد نه درې څلور میاشتې وروستو وی. کله چې سیوان پاخهٔ شی. خو د عقد په وخت ئې د شوکولو او نه شوکولو څه ذکر نه وی شوې په داسې صورت کې بیع جائز ده یا ناجائز؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: نامعلوم**

**الجواب:** چونکې دا بیع د څو وجوهاتو د وجې نه بیع فاسد ده لهذا په دې

---

...بقیه ازحاشیه گذشته]

(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۱۵۲،۱۵۱:۴ فصل في الفضولي)

وفي شرح المجلة: البيع الذي يتعلق به حق الغير كبيع الفضولي وبيع المرهون ينعقد موقوفا علي اجازة ذلک الآخر.

(شرح المجلة ۳۵۱:۲ المادة:۳۶۸ الفصل الاول في بيان انواع البيع)

١) (ردالمحتار ۳۸۱:۴ مطلب هل يبقي النهي بعد موت السلطان)

کې به د مشتري ملکیت د قبض کولو نه پس ثابتیږي. کما هو حکم البیوع الفاسدة. (۱) او ددې قبض نه مخکښې به د بائع ملکیت برقرار وي او عشر به هم په هغه باندې واجب وي،

والاصل ما ذکره في شرح التنویر: ولو باع الزرع ان قبل ادراکه فالعشر علی المشتري ولو بعده فعلی البائع؛ (هامش ردالمحتار ۲: ۷۴)(۲). وهوالموفق

## د یتیم جائیداد جبرا خرڅول

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې محمد شهزاد او فقیر سعید د پلار د وفات د وجې نه یتیمان شو په دې دور کې د یتیمانو د رهائش والا علاقې باندې د یو جابر حکمران حکومت وو د ذکر شوې جابر حکمران کارندومشر یتیم ورورلره ځان سره بوتلواو ټول پاتې شوې جائیداد د هغه نه په زور په بیعه واخستلو او وړوکی ورور ته علم هم نشته او کارندګانو د مشر یتیم نه د دواړو ورونو د طرف نه په بیع نامه باندې ګوتې ولګولې نوآیا د یتیمانو جائیداد خرڅیدلې شي په داسې حال کې چې د نابالغ کیدو د وجې نه په زبردستئ د هغوی نه ګوتې ولګولې شي؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد شهزاد چکدره ضلع دیر ...... ۱۰ ربیع الاول ۱۴۰۱ه

---

۱) وفي شرح المجلة: البیع الفاسد یفید حکماً عند القبض یعني ان المشتري اذا قبض المبیع باذن البائع صار مالکاً له.

(شرح المجلة ۲: ۳۵۹ المادة: ۳۷۱)

وقال العلامة الحصکفي: واذا قبض المشتري المبیع برضا بائعه صریحا او دلالة بان قبضه في مجلس العقد بحضرته في البیع الفاسد... ولم ینهه البائع عنه ملکه. (الدرالمختار مختصرا ۱۳۹،۱۳۸: ۴ کتاب البیوع)

۲) (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۶۰: ۲ باب العشر)

**الجواب:** که دا خرڅونکې بذات خود یتیم وی او د هغې باوجود غیر عاقل وی نو دا خرڅول کالعدم او نامنظور دی، لما فی شرح التنویر ٥/٤ وشرطه اهلية المتعاقدين اى كونهما عاقلين ولا يشترط البلوغ. (۱) او دا دې هم واضحه وی چې که دا جبر او اکراه مسلم یا ښکاره وی نو دا بیع نا منظور او کالعدم ده. كما فى شرح التنوير على هامش ردالمحتار ۴:۵ ولذا لا يلزم بيع المكره وفى ردالمحتار قدمنا ان بيع المكره فاسد موقوف على اجازة البائع(۲). وهوالموفق

## د پټکی د اخستلو او خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید دکان په یو لاک روپۍ پټکی باندې واخستلو، اوس دا سړې دکان په بل سړی باندې په دوه لاکه روپۍ خرڅوی، آیا د پټکی دا اخستل او خرڅول جائز دی یا نه دی؟ علت هم ولیکئ؟ بینوا توجروا

**المستفتی:** متعلم حافظ منیر محمد .... ۶/اپریل ۱۹۸۶ء

---

۱ ) (ردالمحتار ۵: ۴ مطلب شرائط البيع انواع اربعة)

وفي الهندية : اما شرائط الانعقاد فانواع منها في العاقد وهو ان يكون عاقلا مميزا كذا في الكافي فيصح بيع الصبي والمعتوه اللذين يعقلان البيع واثره.
(فتاوي هندية ۲: ۳ كتاب البيوع ، الباب الاول)

۲ ) (شامي ۷: ۴ قبيل مطلب في حكم البيع مع الهزل)

وقال العلامة المرغيناني : واذا اكره الرجل علي بيع ماله ... و اكره علي ذلك بالقتل او بالضرب الشديد او بالحبس فباع او اشتري فهو بالخيار ان شاء امضي البيع وان شاء فسخه ورجع بالمبيع.
(الهداية ۳۴۶: ۳ كتاب الاكراه)

**الجواب:** د پتکی دا خرخول او اخستل ناجائز رسم دې ځکه چې دا پیسې نه اجرت معجله او نه د نزول عن الحق معاوضه ده، بلکې رشوت دې.(۱) ناحقه اخستل دی. بخلاف ما اذا اخذه لما ذکرنا فانه مشروع (۲) فافهم

## بغیر د ځمکې نه د اوبو خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې اوبه بغیر د ځمکې نه خرڅول څنګه دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: متعلم حافظ منیر محمد .....۶/اپریل ۱۹۸۶ء

**الجواب:** د مفتی به قول او ظاهر الروایة په بناء دا اخستل او خرڅول ناجائز

---

۱ ﴾ قال العلامة ابن عابدين: الرشوة بالكسر ما يعطيه الشخص الحاكم وغيره ليحكم له او يحمله علي ما يريد... وفي الفتح ثم الرشوة اربعة اقسام: منها ما هو حرام علي الآخذ والمعطي وهو الرشوة علي تقليد القضاء والامارة. الثاني: ارتشاء القاضي ليحكم وهو كذلک ولو القضاء بحق لانه واجب عليه. الثالث: اخذ المال ليسوي امره عند السلطان دفعا للضرر او جلبا للنفع وهو حرام علي الآخذ فقط، الرابع: ما يدفع لدفع الخوف من المدفوع اليه علي نفسه او ماله حلال للدافع حرام علي الآخذ.

(ردالمحتار ۴:۳۳۸ مطلب في الكلام علي الرشوة والهدية)

۲ ﴾ وفي الهندية: ثم الاجرة تستحق باحد معان ثلاثة اما بشرط التعجيل او بالتعجيل او باستيفاء المعقود عليه.

(فتاوي عالمگيرية ۴:۴۱۳ الباب الثاني في بيان انه متي تجب الاجرة)

وقال العلامة الحصكفي: وعليه فيفتي بجواز النزول عن الوظائف بمال.

(الدرالمختار ۴:۱۶ مطلب في النزول عن الوظائف بمال)

دی. (شامی ۳۹۵/۵) (۱) والله اعلم

## د یو شریک په بل شریک باندې د خپلې حصې خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید او عمرو چاته یو یو لاک روپۍ ورکولو سره فریم راوغوښتلو، کله چې هغه سړې کراچۍ ته لاړو نو هغه دواړه لاکه روپۍ را یوځای کولو سره فریم واخستلو، کله چې هغه سړې راغلو نو دلته فریم ډیر قیمت لرلو زید فریم واخستلو اوس چې هر کله فریم د زید په ملکیت کې دې زید عمرو ته یو لاک روپۍ په قسطونو ورکوی نو آیا دا سود دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** مولوی هدایت الله...... ۱۹ جولائی ۱۹۷۹ء

**الجواب:** په ظاهر کې دا معامله جائز ده ځکه چې عمرو خپله حصه په زید باندې خرڅه کړې ده.(۲) **وهوالموفق**

## بیع په شرط د اقالې سره د بیع فاسد کیدل او د بیع فاسد حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید ځمکه خرڅه کړه خو ورسره ئې دا شرط هم ولګولو چې که په درې کاله کې دننه ما پیسې پیدا کړې نو ځمکه به ماته واپس کوې او پیسې به واپس درکوم. مشتری دا شرط ومنلو، خو اوس پیسې واپس اخستلو او ځمکې واپس ورکولو ته تیار نه دې، د دې په باره کې د شریعت څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** شفیع الله سکنه جهانګیره مردان...... ۲۳ ربیع الثانی ۱۴۰۳ھ

---

۱ ﴾ قال العلامة الحصکفي: (ولایباع) الشرب (ولا یوهب ولا یؤجر ولا یتصدق به) لانه لیس بمال متقوم في ظاهر الروایة وعلیه الفتوی. (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۵:۳۱۷ فصل الشرب)

۲ ﴾ وقال العلامة المرغیناني: ویجوز بیع احدهما نصیبه من شریکه في جمیع الصور. (هدایة ۲:۶۲۴ کتاب الشرکة)

**الجواب:** دا بیع فاسد ده.(۱) بیع صحیحه نه ده په بیع فاسده کې په دواړو کښې هريو دا عقد فسخ کولې شي. (شامی)(۲) **وهوالموفق**

## د میوې د پخیدلو نه مخکې د خرڅولو دپاره حیله

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د باغ میوه ښکاره شوې نه وی نو خلق د هغې د بیع د جواز دپاره دا صورت اختیاروی چې په بعض پیسو سره ونه او په بعض پیسو باندې ځمکه د معلومې مودې په اجاره اخلی لکه چې په **خلاصة الفتاوٰی** ۲۹/۳ کې لیکلې شوې دې آیا دا صحیح ده؟ **بینوا توجروا**

**المستفتي: قاری یعقوب**

**الجواب:** الحيلة المسطورة جائزة.(۳) والحوالة صحيحة.(۴) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة المرغيناني: كل شرط لا يقتضيه العقد وفيه منفعة لاحد المتعاقدين او للمعقود عليه وهو من اهل الاستحقاق يفسده.
(الهداية ۳:۵۹ كتاب البيوع ،باب بيع الفاسد)

۲) قال العلامة الحصكفي: ويجب علي كل واحد منهما فسخه قبل القبض... او بعده ما دام المبيع بحاله في يد المشتري. (الدرالمختار ۴:۱۴۰ كتاب البيوع، باب بيع الفاسد)

وفي الهداية: ولكل من المتعاقدين فسخه رفعا للفساد وهذا قبل القبض ظاهر لانه لم يفد حكمه فيكون الفسخ امتناعا منه وكذا بعد القبض الخ.
(الهداية ۳:۵۰ كتاب البيوع، الفصل الخامس في البيع)

۳) وفي الهندية: ولو اراد ان يترک في الارض ويكون له الولاية الشرعية فالحيلة ان يشتري الحشيش واشجار البطيخ ببعض الثمن ويستاجر الارض ببعض الثمن من صاحب الارض اياما معلومة. (فتاوي عالمگيرية ۳:۱۰۷ الفصل الثاني في بيع الثمار الخ)

۴) وفي الخلاصة: وان كان البيع بشرط الترک لا يجوز البيع ولو اراد ان يترک في الارض ويكون له الولاية الشرعية فالحيلة ان يشتري... [بقيه برصفحه آئنده...

# د ملکانه ځمکې د اخستلو او خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د مسجد یو امام ته ملکانه یعنی څه جائیداد چې د مسجد په نوم باندې منسوب وی خرڅه کړی نو آیا په دې امام پسې مونځ جائز دې؟ په داسې حال کې چې هغه جائیداد په اصل کې د مسجد وی صرف مجازی مالک ئې امام وی او هغه د دې نه صرف حاصلات اخستلې شی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: شمشیر ګلوزی پشاوری ...... ۲۴ اپریل ۱۹۸۶ء**

**الجواب:** که دا ملکانه د امام په نوم وی (۱) نو اخستل او خرڅول یې جائز دی، کنه نو د عکس په صورت به ناجائز وی. (۲) **وهوالموفق**

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] الحشیش واشجار البطیخ ببعض الثمن ویستاجر الارض ببعض الثمن من صاحب الارض ایاما معلومة.

(خلاصة الفتاوي ۳:۲۹ کتاب البیوع، جنس آخر في الزرع والثمر)

۱) یعنی امام ته تملیک ورکړې شوې وی ...(مفتی سیف الله حقانی)

۲) قال العلامة ابن عابدین: وکون الملک للبائع فیما یبیعه لنفسه... ولا بیع ما لیس مملوکا له وان ملکه بعده.

(ردالمحتار ۴:۶ مطلب شرائط البیع انواع اربعة)

وفي الهندیة: واما شرائطه فانواع ومنها ان یکون ملک البائع فیما یبیعه لنفسه... فلا ینعقد بیع ما لیس مملوکاله. (فتاوي عالمگیریة ۳:۲،۳ کتاب البیوع، الباب الاول)

وفي شرح المجلة: یشترط لنفاذ البیع ان یکون البائع مالکا للمبیع... وان لا یکون في المبیع حق آخر.

(شرح المجلة ۳۴۹:۲ المادة ۳۶۵ الفصل الاول في بیان انواع البیع)

## پخپله راختلي ګیا د خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ۱: زمونږ یو ځنګل دې اوس یو سړی دعوی کړې ده چې په دې ځنګل کې چې کومه ګیا ده په هغې کې زه هم شریک یم او دا هم منم چې دا څمکه ستاسو ده ونې ستاسو دی مونږ صرف په ګیا کې شریک یو دهغه دلیل دا دې چې ستاسو نیکونو په طور د تبرع مونږ ته دا راکړې وه چې په ګیا کې تاسو هم شریک یئ، اوس سوال دا دې چې که هغه په دې باندې ګواهان پیش کړل چې د دې تبرع شوې ده نو دا تبرع به صحیح وی او که نه؟

۲: په صورت د صحت کې دا خلق ځنګل ته سخت نقصان رسوی، د هغې نقصان د وجې نه زه هغوی د ګیا نه منع کولې شم او که نه؟

۳: په ذکر شوې صورت کې که هغه دا دعوی وکړی چې دا ګیا ما ستاسو د نیکهٔ نه اخستلې ده نو آیا دا بیع صحیح ده یا نه؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی: امین الحق مندوخیل بلوچستان..... ۲۳ شوال ۱۴۰۱ھ**

**الجواب: ومنه الصدق والصواب**.... چونکې پخپله راختلې ګیا د حدیث په وجه باندې ﴿**المسلمون شرکاء فی ثلاث**﴾ (۱) او د فقهاء کرامو د تصریح مطابق **فکذا الکلاء النابت فی ملك انسان بلا تعاطی سببه مباح ایضاً**.(شرح المجلة ۶۷۸) (۲)

مشترک غیر مملوک ده، لهذا د هغې د قطع کولو نه مخکې خرڅول یا تبرعا ورکول بې قاعدې او ناجائز کارونه دی، **وفی شرح التنویر: وفسد بیع المراعی ای الکلاء واجارتها الخ**(هامش رد المحتار ۱۱۰/۴) (۳) **وهوالموفق**

---

۱ ﴿عن ابن عباس قال قال رسول الله ﷺ المسلمون شرکاء في ثلاث الماء والکلاء والنار. (مشکوة المصابیح ۲۵۹ باب احیاء الموات والشرب)

۲ ﴿(شرح المجلة ۱۸۱: ۴ المادة: ۱۲۴۱)

۳ ﴿(الدر المختار علي هامش ردالمحتار ۱۲۳: ۴ باب البیع الفاسد)

## د ټیکه دار د اجازت نه بغیر د مزدور دپاره په غر کې د موندلې شوې کان د اخستلو او خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې کوم غر په موجوده دور کې د خلقو په بیع اخستلې شوې وی او هلته کان راوخی نو حکومت هغه په خپله قبضه کې اخستلو سره په ټیکه باندې ورکوی، ټیکه دار په مزدورانو باندې مال راوباسی. او بعض مزدوران د هغې نه مال په غلا خرڅولو دپاره مارکیټ ته راوړی نو د دې مال د اخستلو او خرڅولو څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: چیف کیمسټ مینګوره سوات ۱۹۷۲ء/۱۰/۱۰

**الجواب:** غر چې د هغې باقاعده احیاء نه وی شوې د چا مملوک نه شی کیدې په هغې کې اخستل او خرڅول نه شی جاری کیدې، **یدل علیه ما فی عشر الدر المختار**[۱] پس د قاعدې موافق کومه چې ټولو فقهاء کرامو ذکر کړې ده د دې خیزونو پنځمه حصه به حکومت ته ورکولې شی او څلور حصې به د واجدین (مزدورانو) وی.[۲] د هغوی دپاره د دې مقدار خفیه پټ او خرڅول شرعا جائز دی. **والله اعلم بالصواب**

---

۱) قال العلامة الحصكفي: يجب العشر في ثمرة جبل او مفازة ان حماه الامام لانه مال مقصود لا ان لم يحمه لانه كالصيد.

وقال العلامة ابن عابدين: (قوله ان حماه الامام) فان ثمر الجبال مباح لا يجوز منع المسلمين عنه وقال ابو يوسف لا شيء فيما يوجد في الجبال لان الارض ليست مملوكة ولهما ان المقصود من ملكها النماء وقد حصل.

(الدر المختار مع ردالمحتار ۲:۵۳ باب العشر)

۲) قال العلامة الحصكفي: معدن خلقي خلقه الله تعالى ومن كنز اي مال مدفون ... في ارض خراجية او عشرية... خمس مخففا اي اخذ خمسه لحديث "وفي الركاز الخمس" وهو يعم المعدن كما مر وباقيه لمالكها ان ملكت والا كجبل ومفازة فللواجد.

(الدر المختار ۲:۴۸،۴۹ باب الركاز)

## په سائیکل باندې ټکټ لګولو سره د قرعه اندازئ په ذریعه یو سړی ته ورکول بیع فاسد ده

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی یو سائیکل واخستلو بیا هغې لره خرڅول غواړی چې د هغې په قرعه اندازئ باندې ئې دوه روپئ ټکټ ولګولو چې په هغې کې تقریبا یو سل او پنځه څلویښت کسان شامل شو چې په هغې کې بنده هم یو ټکټ واخستلو بیا په هغه ټکټونو باندې قرعه اندازی وکړې شوه چې په هغې کې زما ټکټ راووتلو او سائیکل ماته ملاؤ شو، کله چې ما سائیکل خپل ځای ته ورسولو نو خلقو زما په زړه کې شکونه پیدا کړه چې دا واپس کړه نو ماله څه کول پکار دی؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: عبدالرحمن تخت بهائی مردان، ۱۹۷۲ء/۶/۶

**الجواب:** دا معامله بیع فاسد ده چې ناجائز ده، لان فیه تعلیق البیع بالشرط الفاسد لانهم ارادوا ان من خرج اسمه عند القرعة یکون مالکاله بالدرهمین فیکون فاسدا، قال العلامة الشامی فی ردالمحتار۴:۲۲۲ ماکان مبادلة مال بمال یفسد بالشرط الفاسد ویبطل تعلیقه ایضا لدخوله فی التملیکات لانها اعم وما لیس مبادلة مال بمال ان کان من التعلیقات او التقییدات یبطل تعلیقه بالشرط فقط[1] او د بائع دپاره سوا د هغه دوه روپو نه د ټولو کسانو پیسې واپس کول ضروری دی ځکه چې دا رقم ثمن نه دې بلکې بغیر د عوض نه اخستلې شوې دې چې یو قسم رشوت دې[2] پس غوره دا ده چې دا بیع کالعدم کړې شی او بائع ټولې پیسې واپس کړی او

---

[1] (ردالمحتار ۲۴۷: ۴ ما یبطل بالشرط الفاسد ولا یصح تعلیقه به)

[2] قال العلامة ابن عابدین: وفي المصباح الرشوة بالکسرة ما یعطیه الشخص الحاکم وغیره لیحکم له او یحمله علي ما یرید جمعها... الثالث اخذ المال لیسوي امره عند السلطان دفعا للضرر او جلبا للنفع وهو حرام علي الآخذ فقط... الرشوة یجب ردها ولا تملک. (ردالمحتار ۳۳۷: ۴ مطلب في الکلام علي الرشوة)

مشتری دې سائیکل واپس کړي او که بائع د پیسو واپس کولو ته تیار نه وي نو د دې مشترې دپاره ضروري ده چې دا بیع دې فسخ کړي او د دې نه پس دې دا ټول کسان مشترکه طور سره دا سائیکل خرڅ کړي او قیمت دې په خپل مینځ کې تقسیم کړي، وهو بيع مال من عليه الحق والظفر على خلاف جنس حقه وهو جائز عند الشافعي وعليه الفتوى عندنا(۱). وهو الموفق

## د حکومت د ملک غیر د هغه څیزونو خرڅول چې د هغې دخیره کول ضرري نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې کوم وخت د پاکستان په خوا کې د سوشلزم طوفان په تیزئ سره راغلو، هم د هغې د بندولو د پاره صدر ایوب په پاکستان کې د مساوات حکم جاري کړو او هغې ته ئې د زرعی اصلاحاتو نوم ورکړو چې د هغې د لاندې د لوئې لوئې جاګیردارو دپاره محدود ګزاره پلاټ متعین کړې شو او د هغه سابقه مالکانو دپاره مذکوره فاضله رقبو قیمت سرکاری طور په مناسب شرح باندې مقرر کولو سره د عوضانه په نوم باندې موسوم کړې شو، د دې نه پس هر قابض مستحق زمیندار نه د قبضه فاضله رقبې عوضانه د مقرر کړې شرح مطابق په سرکاری خزانه کې داخلولو سره ذکر شوې رقبه جات د حکومت د هغه مزارع په نوم باندې منتقل کړې شو کوم چې په دې وخت کې مالک متصور وو. ۱: مذکوره بیع حکومت د خپل طرف نه چې په هغې کې د زمیندار یا مالک دخل نه وو. ۲: مذکوره مالکانو د حکم د صدور نه هیڅ خلاف ورزی، انکار یا بغاوت نه دې کړې

۳: اول مالکانو قیمت عوضانه مقرر کړې په شرح باندې هیڅ اعتراض نه دې

---

(۱) وقال العلامة الحصكفي: ليس لذي الحق ان ياخذ غير جنس حقه وجوزه الشافعي وهو الاوسع، وقال ابن عابدين: (قوله وجوزه الشافعي) قدمنا في كتاب الحجر ان عدم الجواز كان في زمانهم اما اليوم فالفتوى على الجواز.
(شامي ۲۰۰: ۴ فروع كتاب الحظر والاباحة، فصل في البيع)

کړې. ۴: بله دا چې ذکر شوې مالکانو په خزانه کې جمع شوې د بیع په قیمت کې تصرف کولو سره په خپل مفاد کې استعمال کړو. ۵: د حکومت د طرف نه کوم چې دویم مالک متصور دې دریم مالک زمیندار ته په عوض سره مالکانه حقوق ورکړې شوې دی. ۶: دریم مالکان یعنی زمیندار د دویم مالک (حکومت) نه د قیمت په ادا کولو سره ملکیت حاصل کړې
۷: د پورته ذکر شوې حکم د لاندې چې کومه بیع شوې ده لهذا مونږ فتوی طلب کوو چونکې د پورته حکم د لاندې د متاثرینو تعداد کم از کم یو کروړ اهل اسلام دی لهذا سوال دا دې چې دا بیع صحیح ده یا نه؟ او که فاسد ده نو ددې د پیداوار څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: میاں رسول شاه ټوپ بازار درګئ مانسهره ...... ۲۴ جمادی الثانی ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** دا بیع د ملکیت غیر بیع ده او د داسې څیزونو نه ده چې د هغې ذخیره کول ضرر نه ورکوی، پس په ظاهر کې دا بیع نافذ نه ده. (۱) خو د مقدار مسکن او د ضرر بین احکام جدا دی:

كما يشير اليه ما في شرح التنوير لو خاف الامام على اهل بلد الهلاك اخذ الطعام من المحتكرين وفرق عليهم فاذا وجدوا سعة ردوا مثله هامش ردالمحتار ۵:۳۵۲ (۲) فافهم، وجه الاشارة انه اناط الحكم على الهلاك ولا شك

---

۱) في الهداية: ومن باع ملك غيره بغير امره فالمالک بالخيار ان شاء اجاز البيع وان شاء فسخ. (هداية ۳:۸۸ فصل في بيع الفضولي)

وفي شرح المجلة: يشترط لنفاذ البيع ان يكون البائع مالكا للمبيع.

(شرح المجلة ۲:۳۴۹ المادة: ۳۶۵، فصل في البيع)

۲) (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۵:۳۸۳ فصل في البيع)

وقال العلامة ابن نجيم: ولو خاف الامام علي اهل مصر الهلاک اخذ الطعام من المحتكرين وفرقه، فاذا وجدوه ردوا مثله وليس هذا من باب الحجر وانما هو من باب دفع الضرر عنهم كما في حال المخمصة. (البحر الرائق ۸:۲۰۲ كتاب الكراهية، فصل في البيع)

فی اهلاك من الحر والبرد عند عدم المسکن بخلاف المزرعة فأن للرزق اسباباً شتی فلو اذن الملاك فی عقود المزرعات لزالت المفسدة. وهو الموفق

## د ملازم په محکمه باندې خپل سامان د بل ځا په نوم خرڅول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ۱: زید په یو محکمه کې ملازم دې چې د محکمې د سامان په اخستلو او خرڅولو باندې مامور دې. که زید یو څیز په خپلو پیسو باندې واخستلو او بیا ئې هم هغه محکمې ته په ګټه باندې خرڅ کړی نو آیا دا جائز ده؟

۲: زید په دې خرڅولو کې خپل نوم نه پیش کوی بلکې د یو بل سړی په ذریعه ئې خرڅوی نو آیا د دې دویم سړی په نوم باندې به دا خرڅول جائز وی؟ **بینوا توجروا**

المستفتی: غلام حیدر کلرک دفتر زراعت ایبټ آباد... ۱۵/۵/۱۹۷۵ء

**الجواب:** ۱: که ملازمت کونکی ته د محکمې د طرف نه د دې اخستلو او خرڅولو اجازت وی یا ملازم د څه ضائع شوی څیز د عوض رسولو په اراده باندې دا څیز د محکمې د پاره اخستلې وی نو په دې کې هیڅ باک نشته. (۱)

---

(۱) فی شرح المجلة: لا یجوز لاحد ان یتصرف فی مال الغیر بلا اذنه... عدم الجواز شامل لجمیع انواع التصرف من استعمال کرکوب... وهبة وبیع ورهن ... وجمیع ما یجریه من العقود تملیکا بعوض او بغیره یتوقف علی اجازته... فتصرف الغیر فی مال الغیر ممنوع الا ان تکون وصایة او ولایة او تدعوا ضرورة فیجوز.
(شرح المجلة ۱:۲٦۲، المادة ۹٦)

وقال العلامة الحصکفی: والاصل ان المستحق بجهة اذا وصل الی المستحق بجهة اخری اعتبر واصلا بجهة مستحقه ان وصل الیه من المستحق علیه.
(الدر المختار علی هامش ردالمحتار ٤:۱٤۱ باب البیع الفاسد)

۲: بغیر د ضرورت نه دروغ ویل ناجائز دی (۱) وهوالموفق

## په بیع کې د غبن فاحش حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی غیر منقول جائیداد (کوم چې تقریبا د پنځو زرو روپو دې) خرڅ کړو او مشتری بائع ته دهوکه ورکولو سره زر روپۍ ورکړې نو آیا په دې صورت کې بائع بیع فسخ کولې شی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم

**الجواب:** صرف په غبن فاحش سره (چې کله د دهوکې ورکولو نه خالی وی) بیع نه شی رد کیدلې،

وفی الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳: ۲۲۰ ولا رد بغبن فاحش فی ظاهر الروایة وبه یفتی ان غره ای غر المشتری البائع الخ (۲). وهوالموفق

---

۱) عن سفیان بن اسد الحضرمي: قال سمعت رسول الله ﷺ يقول كبرت خيانة ان تحدث اخاک حديثا هو لک به مصدق وانت به كاذب.
(مشكوة المصابيح ۴۱۳ باب حفظ اللسان والغيبة والشتم)

وقال العلامة ابن عابدين: كل مقصود محمود يمكن التوصل اليه بالصدق والكذب جميعا فالكذب فيه حرام.
(ردالمحتار ۵:۳۰۳ فروعات كتاب الحظر والاباحة)

۲) (الدر المختار ۴:۱۷۸ باب المرابحة والتولية، مطلب في الكلام علي الرد بالغبن الفاحش)

وفي شرح المجلة: اذا وجد غبن فاحش في البيع ولم يوجد تغرير فليس للمغبون ان يفسخ البيع الا انه اذا وجد الغبن وحده في مال اليتيم لايصح البيع.
(شرح المجلة ۲:۲۳۵ المادة ۳۵۶ الفصل السابع في الغبن والتغرير)

## د ځمکې په بیع کې د ونو او د غیر آباد غرونو د داخلولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې:

۱: د کوهستان په علاقه کې دوه قسمه ځمکې دی آباد او غیر آباد، په هغې کې ځنګلې دی او په هغې کې دوه قسمه ونې دی یو قسم ګیا وغیره دویم نمبر لکه چې لوئې قسم ونې دی.

۲: غیر آباد ځمکه د آبادې ځمکې سره تبعا خرڅولې شی مثلا بائع وائی چې ما په تاسو باندې د آبادې ځمکې د څلورو جریبو سره د غیر آباد ځمکې شل حصې خرڅې کړې، دا حصې متعین وی خو هغه وخت په ځمکه کې چې کومې ونې وی نو هغه د خرڅولو په وخت مسکوت عنه وی هغه وخت دا دومره قیمتی نه وې اوس چونکې قیمتی جوړې شوې نو اوس بائع وائی چې دویم قسم ونې (چه د هغې نه مونږ تیرونه جوړو) مو نه وو خرڅ کړې هغه زما دی او اول قسم ونې (کوم چې صرف ګډې بیزې خوری) هغه د مشتری ملکیت دې، مشتری وائی چې هر څه زما دی نو آیا دا ذکر شوې ځنګلې د بائع دی او که د مشتری دی؟

۳: که آباده ځمکه ئې داسې خرڅه کړې وی چې ما دا ټوله ځمکه د ټولو متعلقاتو سره په تاسو باندې خرڅه کړه او د غیر آباد ځمکې د حصو تعین ئې ونکړو، نو آیا په دې کې غیر آباد غرونه شامل دی یا نه؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی:** مولوی عبدالحق مدرس مدرسه شیر گرھ ضلع مردان .... ۲۲ رمضان/ ۱٤۰۵ھ

**الجواب:** ونې د غارس مملوکه وی او یا د پخپله راختلو په صورت کې د ځمکې د مالک ملکیت وی.(۱) مرعٰی او مختطب وغیره مرافق دی خو هغه

---

(۱) وفي شرح المجلة: الاشجار النابتة بلا غرس في ملک احد هي ملکه ليس لآخر ان يحتطب منها الا باذنه. (شرح المجلة ۱۸۲: ۴ المادة ۱۲۴۴)

وقال العلامة ابن عابدين: الشجر له ساق فلا تدخل فيه حتي يجوز بيعها اذا نبتت في ارضه لکونها ملکه. (ردالمحتار ۱۲۳: ۴ قبيل مطلب صاحب البئر لايملک الماء)

د آبادۍ ځمکې په مرافق کې شمار کول صحیح نه دی، **لعدم کونها من مشتملات العامرة ولا من اجزائها الحکمية،** په کومو ونو کې چې قرار مقصود وی نو هغه تبعا للارض خرڅيږي **لا اذا صرح بعدم بيعها.** (ماخوذ من شرح الجملة ورد المحتار) ([1])

پس که په صورت مسئوله کې د دې غیر آباد متعلق تصریح نه وی شوې نو د عرف په بناء باندې دا مشتری مدعی علیه دې او بائع مدعی **لانه يدعی ملك غير العامرة وملك اشجارها والمشتري ينكره وهو متمسك بالظاهر.** ([2])

او که د دې غیر آباد اونو دخرڅ متعلق تصریح شوې وی نو معامله واضح ده.

**وهوالموفق**

## د پښیمانتیا شرط لګولو سره د بیع کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی څلور کناله ځمکه په دویشت زره روپۍ باندې خرڅه کړه او دا شرط ئې ولګولو چې که زه پښیمانه شوم نو زه به تاته دوه زره روپۍ درکوم او که ته پښیمانه شوې نو ته به ماته دوه زره روپۍ راکوې اخستونکی دوه زره روپۍ خرڅونکی سره جمع کړې، اوس خرڅولو والا پښیمانه شو نو آیا دا ځمکه

---

۱ ) وفي شرح المجلة: وفي العرصة تدخل الاشجار المغروسة علي ان تستقر لان جميع المذكورات لا تفصل عن المبيع فتدخل في البيع بدون ذكر ولا تصريح.
(شرح المجلة ۱۴۶:۲ المادة ۲۳۱)

وقال العلامة الحصكفي: ويدخل الشجر في بيع الارض بلا ذكر مثمرة كانت اولا صغيرة او كبيرة اذا كانت موضوعة فيها للقرار.
(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۳۹:۴ فصل فيما يدخل في البيع تبعا الخ)

۲ ) وفي شرح المجلة: المدعي من يلتمس خلاف الظاهر والمدعي عليه من يتمسك بالظاهر. (شرح المجلة ۵:۵ الكتاب الرابع عشر في الدعوي)

هغه واپس اخستلې شي؟ او آيا داد پښيمانتيا دوه زره روپۍ اخستل حلال دی که حرام؟ بينواتوجروا

المستفتي: بخت حسين متعلم حقانيه مصري بانډه. ۲۳/صفر المظفر ۱۴۰۲هـ

**الجواب:** دا بيع د شرط د وجې نه فاسده ده او هر يو طرف دا عقد فسخ کولې شي. لما في ردالمحتار ۱۲۱/٤ (۱) وهداية ۶۴/۳ (۲) او دا پښيمانتيا رشوت او حرام دې. وهوالموفق

## پخپله راختلې ګيا اخستل او خرڅول او په ګانړه کې د کينودلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې يو ځمکه يا يو غر دې او په هغې کې شرعا د چا د ملکيت او تصرف حق نشته او هغه مشترک او متنازع دې خو اهل بلد هغه د يو خاص سړی په ملکيت او تصرف کې ورکړې دې اوس سوال دا دې چې په ځمکه يا غر کې ګيا راختلې ده د هغې په ګانړه کې ورکول جائز دی يا نه؟ حال دا چې شرعا دا سړې د دې مالک نه دې بلکې عرفا ئې مالک جوړ شوې دې او د دې ګانړه شوی څيز نه

---

(۱) قال العلامة ابن عابدين (قوله قبل القبض او بعده) لكن ان كان قبله فلكل الفسخ يعلم صاحبه لابرضاه، وان كان بعده فان كان الفساد في صلب العقد بان كان راجعا الي البدلين المبيع والثمن كبيع درهم بدرهمين وكالبيع بالخمر او الخنزير فكذلک، وان كان بشرط زائد كالبيع الي اجل مجهول او بشرط فيه نفع لاحدهما فكذلک عندهما لعدم اللزوم وعند محمد لمن له منفعة الشرط. (ردالمحتار ۴:۱۴۰ كتاب البيوع، باب البيع الفاسد، قبيل مطلب ردالمشتري فاسد الي بائعه فلم يقبله)

(۲) قال العلامة المرغيناني: ولكل واحد من المتعاقدين فسخه، رفعا للفساد، وهذا قبل القبض ظاهر؛ لانه لم يفد حكمه، فيكون الفسخ امتناعا منه، وكذا بعد القبض اذا كان الفساد في صلب العقدلقوته، وان كان الفساد بشرط زائد فلمن له الشرط ذلک دون من عليه؛ لقوة العقد؛ الا انه لم يتحقق المراضاة في حق من له الشرط.
(الهداية ۳:۶۴ باب البيع الفاسد، فصل في احكامه)

فائده اخستل د جواز حکم لری یا نه؟ د دې اخستل او خرڅول جائز دی یا نه؟ بینواتوجروا

**المستفتی:** امداد الله توحیدی کراچی نمبر ۲۵ شاه فیصل کالونی نمبر ۲۱

**الجواب:** دپخپله راختلې گیا که په مملوکه ځمکه کې راختلې وی یا غیر مملوک کښ، بهر حال دا د چا مملوک نه ده د دې اخستل او خرڅول وغیره ناجائز او کالعدم دی، لحدیث: المسلمون شرکاء فی ثلاث فی الماء والکلاء والنار ای شرکة اباحة لا شرکة ملك فمن سبق الی شئ من ذلك فی وعاء او غیره واحرزه فهواحق به وهوملك له دون من سواه الخ کذا فی شرح التنویر وشرحه ردالمحتار ۵: ۴۴۰ فلیراجع(۱). وهوالموفق

## په شرط فاسد سره اخستلې شوې د غیر مقبوضه ځمکې بیع فسخ کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې دا کور د چا حق دې (چه په هغې کې بنگله ده او رقبه ئې تقریبا یو کنال ده) دعویداران ۱: اکبر شاه ولد حیات خان د دکان مالک بائع، ۲: شیرجان ولد عبدالرحمن المعروف رحمن متوفی د مُشتری دوه ځامن دی شیرجان او میر عباس خان. ۳: مسماة بستی، مسماة پشاوری دختران اکبر شاه بائع محمد میر ولد سلیم وارث میراث اکبر شاه بائع

**د نمبر ۱ بیان:** اکبر شاه اقبالی دې چې ما متنازع فیه کور عبدالرحمن ته رهن قطعی په ذریعه استامپ ۱۹۳۲ء کې خرڅه کړې ده خو زبانی شرط دا وو

---

۱) (شامي ۵:۳۱۲ فصل الشرب)

وعن ابن عباس رضي الله تعالیٰ عنه قال قال رسول الله ﷺ المسلمون شرکاء في ثلث الماء والکلاء والنار. (مشکوة المصابیح ۲۵۹ باب احیاء الموات والشرب)

وفي شرح المجلة: الماء والکلاء والنار مباحة والناس في هذه الاشیاء الثلاثة شرکاء... ان دلیل اشتراکها حدیث الناس شرکاء في ثلاث.

(شرح المجلة ۴:۱۷۵ المادة ۱۲۳۴ الفصل الاول)

چې په پیسو ې اپس کیدو باندې په کور د بائع وی، نه د مشتری، دواړه ستهامپونه د مشتری د ځوی شیرجان سره موجود دی په دې وجه شیرجان دې دخپلې حصې رقم اخستلو سره کور پریږدی لکه چې دویم ورور میر عباس خان د خپلې حصې رقم اخستلو سره د کور نه لاس واخستلو.

**د مدعی نمبر ۲ بیان** : شیرجان اقبالی دې چې کور قطعی طور باندې والد عبدالرحمٰن په بیع اخستلې دې او زبانی شرط دا وو چې ستاسو د ژوندی کیدو پورې تاسو (یعنی نمبر ۱ اکبر شاه) به په کور کې قیام پذیر وی د وفات نه پس یا د نقل مکانئ په صورت کې به په کور باندې مشتری (شیرجان) د قبضې کولو حقدار وی، زما ورور میر عباس خان انفرادی قسم خوړلې وو چې هغوی به خپل جائیداد په خپل ورور شیرجان باندې نه خرڅوی، ورور میر عباس خان پیسې قرض اخستلو سره د اکبرشاه په مطالبه باندې د کور نیمه حصه زبانی طور په قبضه کې ورکړه، ما اقرار کونکی ته په دویمه ورځ پته ولګیده نو ورور ته مې په ذریعه د اکبرشاه، سید اکبر رقم ورکول وغوښتل او د ګوتې لګولو مې ورته وویل خو میر عباس خان انکار وکړو او معامله هم هغه شان پاتې شوه.

**د مدعی نمبر ۳ بیان** : مسماة بستی، محمد میر کوم چې دې وخت کې په کور باندې قابض دې وائی چې که اکبر شاه کور خرڅ کړې دې نو د خرڅولو په وخت مونږ ته پته نه وه کنه نو نه به مو خرڅولې.

**نوټ** : د خرڅولو په وخت هغوی دواړه پیدا هم نه وو که معاملې د مقدمې صورت اختیار کړو، نو میر عباس خان د شیرجان ورور خپله حصه چې زبانی خرڅه کړې وه، د استهامپ په ذریعه به ئې دوباره طلب کوی. **بینواتوجروا**

**المستفتی: شیر جان ضلع بنوں.... ۱۹۶۹ء/۱/۷**

**الجواب**: د طرفین د بیاناتو نه معلومیږی چې دا بیع چې کومه شوې ده بیع فاسد ده ځکه چې مدعی او مدعی علیه دواړه په دې خبره باندې متفق دی چې د بائع د منفعت دپاره څه نه څه شرط مقرر شوې دې او دا هم معلومه ده

چې قبضه تراوسه پورې مشتری او د مشتري وارثانو ته نه ده ورکړې شوې لهذا دا کور تر اوسه پورې مشتری او د هغه د وارثانو په ملکیت کې نه دې داخل شوې او اکبر شاه د دې بیع په فسخ کې هر وخت مستقل دې

قال فی الهداية كل شرط لا يقتضيه العقد وفيه منفعة لاحد المتعاقدين او للمعقود عليه وهو من اهل الاستحقاق يفسده[1] وفيها ايضاً ولكل واحد من المتعاقدين فسخه رفعاً للفساد وهذا قبل القبض ظاهر لانه لم يفد حكمه فيكون الفسخ امتناعاً منه وكذا بعد القبض الخ[2]. فقط والله اعلم

## د وخت د حاکم په اکراه (مجبوره کولو باندې) د بیع او اقرار حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو بادشاه په یوه علاقه باندې عشر مقرر کړو، او د ټول یا اکثر ملک عشر ئې په خپل خاندان کې تقسیمولو سره په مختلف علاقو باندې د خپل خاندان افراد مقرر کړل او جبری طور ئې د خلقو نه بیګار هم واخستلو. او په بعض ځمکو باندې ئې نیمه حصه مقرر کړه او جبرا ئې د خلقو نه اقرار نامې هم ولیکلې چې تاسو دا اقرار وکړئ چې دا ټوله ځمکه د فلانی خان یا نواب ده او په نه کولو باندې ئې د خپلو جائیدادونو نه بې دخل کوی او سوا د دې ظالم حکمران نه بل یو

---

۱) (الهداية ۳:۵۹ باب البيع الفاسد) وفي خلاصة الفتاوي: وان لم يرد الشرع به في صورة ولا هو متعارف ولكن فيه منفعة البائع او المشتري او المعقود عليه فان كان في الشرط منفعة المعقود عليه والمعقود عليه من اهل ان يستحق حقا علي الغير ... لا يجوز العقد ... ولو كان في الشرط منفعة لاحد المتعاقدين ... يفسد العقد.

(خلاصة الفتاوي ۳:۵۰ كتاب البيوع، الفصل الخامس في البيع)

۲) (الهداية ۳:۶۴ فصل في احكامه، باب البيع الفاسد)

قال العلامة الحصكفي: ويجب علي كل واحد منهما فسخه قبل القبض ... او بعده مادام المبيع بحاله في يد المشتري.

(الدر المختار ۴:۱۴۰ كتاب البيوع، باب البيع الفاسد)

منصف عادل حاکم یا حکومت هم نشته چې د مظلوم عوامو فریاد هلته ورسوی، دغه شان د خلقو نه اقرار او دستخط اخلی وروستو یو بل منصف او قانونی حاکم په دې علاقې باندې حکمران شو او مقدمات د شریعت په رڼا کې حل کیدل شروع شو نو د هغه سابق حکمران خاندان خلقو زمونږ په ځمکو باندې دعوې شروع کړې چې دا زمونږ ځمکې دی او د خپل اثبات دپاره ئې دستخطونه او اقرار کوم چې جبرا او اکراها اخستلې شوې وو پیش کړل او عوامو هم دعوی وکړه چې دا جائیداد زمونږ دې ځکه چې دا د ظالم حکمران د راتلو نه مخکې زمونږ په قبضه کې وو او مونږ ذاتی مالکان وو او دې ظالم حکمرانانو په مختلف قسم حیلو سره جبرا زمونږ په املاک باندې قبضه وکړه او دستخطونه ئې اخستلې دی نو اوس عرض دا دې چې دا مظلوم او محکوم عوام د چا نه چې املاک اخستلې شوې دی نه کافر دی او نه باغیان، بادشاه او د هغوی د خاندان خلق په زور یا په حمایت د انګریز حکمران کیدو سره د عوامو په جائیدادونو او املاک باندې قبضه کوی او اکراها او جبراً دا اقرار او دستخطونه اخلی آیا دا اقرار او دستخطونه د عوامو د حق غورځونکی دی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالحلیم ټیکیدار دود باضلع دیر ..... ۱۹۶۹ء/۱۰/۱۵

**الجواب:** ۱: که عوام د خپل ملک او حاکم په اکراه او زوال اکراه نه پس عدم رضا علی البیع لره ثابت کړی نو دا بیوع به فسخ کولو سره جائیدادونه عوامو ته حواله کولې شی او حکامو ته به قیمتونه واپس کولې شی،

فی الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۵:۱۱۲ (۱) وامر السلطان اکراه وان لم یتوعده (وفیه ایضاً ۱۱۰) (۲) فلواکره بقتل اوضرب شدید اوحبس اوقید

---

۱ (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۵:۹۱ کتاب الاکراه)

۲ (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۵:۸۹ کتاب الاکراه)

مديدين حتى باع او اشترى فسخ ما عقد ولا يبطل حق الفسخ بموت احدهما وفي ردالمحتار فيقوم ورثة كل مقامه كورثة المشتري وبمعناه في الهندية ۳۹:۵(۱). فقط

**په متعلقه استفتاء باندې د اضافي جواب:**

**الجواب:** كه عوام آبائی ملک او د سلطان اکراه ثابت كړي نو دا اقرار لغو او لا حاصل دې، كما في الدر المختار: امر السلطان اكراه وان لم يتوعده وفيه ايضا فلو اكره بقتل او ضرب شديد او حبس او قيد مديدين حتى باع او اشترى او اقر او آجر فسخ ما عقد ولا يبطل حق الفسخ بموت احدهما، وفي ردالمحتار ۵:۱۱۰ فيقوم ورثة كل مقامه(۲) وفي الهندية ۵:۳۹، وان كان قولا لا يستوى فيه الجد والهزل كالبيع والاقرار والاجارة فحكم الاكراه فساد ذلك القول(۳). فقط

**بائع ته په كالو واپس كولو كې د كالو نه**
**كټوتی او په كم قيمت باندې د اخستلو حكم**

**سوال:** څه فرمائی علماء كرام د دې مسئلې په باره كې كله چې ګاهک سرهٔ او سپين زر اخستلو دپاره راځي نو هغه ته ويلې شي چې په دې حساب سره به ئې اخلې او كله چې ئې واپس كوي نو دوه ماسې فی توله به كټ كولې شي او ارزان نرخ به ادا كولې شي، آيا دا د شريعت په رڼا كې جائز دي؟ مهرباني كولو سره د دې سوال جواب راكړئ؟ بينواتوجروا

المستفتي: نامعلوم ... ۱۹۸۸ء/۲/۷

---

(۱) وفي الهندية: فلو اكره علي بيع او شراء او اقرار او اجارة بقتل او ضرب شديد او حبس مديد خير بين ان يمضي البيع او يفسخ.
(فتاوي عالمگيرية ۵:۳۵ كتاب الاكراه، الباب الاول في تفسيره شرعا)

(۲) (ردالمحتار ۵:۹۱،۸۹ كتاب الاكراه)

(۳) (فتاوي عالمگيرية ۵:۳۵ كتاب الاكراه ،الباب الاول في تفسيره شرعا)

**الجواب:** د واپسئ والا خبره ناجائز ده.(۱) خو د اخستلو د خبرې د ختمولو نه پس دا د واپسئ والا خبره ضرري نه ده. **وهوالموفق**

## په دروغ ویلو سره حاصل شوې مال د حکومت د نرخ نه په زیات نرخ باندې د خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د سیمنټ فیکټرئ ملازمانو ته پوره سروس کې په طور دخپل حق اویا ټنه یا کم او زیات سیمنټ د سروس د عهدې په لحاظ په رعایتی قیمت باندې ملاویږی ملازم په دې خپله منظور شوې کوټه کې څه سیمنټ مثلا لس ټنه د کور د جوړولو په بهانه درخواست سره د فرضی ځمکی منظور کړی بیا دا د مارکیټ د ریټ مطابق په اضافي باندې خرڅوی آیا شرعا داسې کول جائز دی یا ناجائز؟ **بینواتوجروا**

**المستفتي:** اهالیان ایم سی ایل ایبټ آباد....... ۱۲، جمادی الثانی ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** دروغ ویل ناجائز دی (۲) خو په دروغ ویلو سره حاصل شوې مبیع مملوک دې.(۳) او د حکومت د نرخ نه په زیات نرخ باندې خرڅول صرف

---

(۱) وفي الهداية: وكل شرط لا يقتضيه العقد وفيه منفعة لاحد المتعاقدين او للمعقود عليه وهو من اهل الاستحقاق يفسده. (هداية ۳:۵۹ باب البيع الفاسد)

(۲) قال ابن عابدين: ان كل مقصود محمود يمكن التوصل اليه بالصدق والكذب جميعا فالكذب فيه حرام.
(ردالمحتار ۵:۳۰۳ قبيل كتاب احياء الموات)

(۳) قال العلامة ابن حجر العسقلاني: (قوله باب ما يكره من الخداع في البيع) كانه اشار بهذه الترجمة الي ان الخداع في البيع مكروه ولكنه لا يفسخ البيع.
(فتح الباري ۴:۳۳۷ باب ما يكره من الخداع في البيع)

وقال العلامة العيني: (باب ما يكره من الخداع في البيع) اي هذا باب في بيان كراهة الخداع في البيع ولكن الخداع لا يفسخ به البيع ... الاول مذهب الحنفية والشافعية علي ان الغبن غير لازم فلا خيار للمغبون سواء قل الغبن او كثر وهو الاصح.
(عمدة القاري ۱۱:۲۳۳ باب مايكره من الخداع في البيع)

قانوني جرم دی (۱) وهوالموفق

## د بیع نه پس په مبیع کښې د نقصان راتلو په صورت کښې د قیمت کمولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چې اته ورونه دی چې په هغې کښې دوه بالغ او باقی نابالغ دی د هغوی د سیوانو یو باغ دې او په خپل وخت باندې مثلا پنځوس زره روپئ باندې د هغوی مشر ورور په یو ټیکیدار باندې خرڅ کړو. کله چې د سیوانو دپخیدو نه پس وشوکولې شو نو ټیکیدار اویل چې ما څه نقصان اوچت کړې دې مهربانی وکړئ ماته دې څه پیسې د اصل رقم نه کم کړې شی اوس چونکې د دې باغ په مالکانو کښې بعض نابالغ دی نو آیا مشر ورور د اصل قیمت نه څه پیسې پریښودلې شی یا نه؟ د علاقې معمول هم دا دې چې د ټیکیدار په درخواست باندې څه نه څه پریږدی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالستار ساکن کوئټه بلوچستان علاقه زیارت

**الجواب:** که ټیکیدار د سیوانو شوکولو نه مخکې مطالبه کړې وی نو مناسب دا ده چې بیع سابق کالعدم کړی. لکونه باطلا وفاسدا (۲) اوپه کم ثمن باندې د نوی سر نه بیع وکړی او که بیع سابق صحیح وی، وهونظیر

---

۱) قال العلامة برهان الدين المرغيناني: فاذا فعل ذلک وتعدي رجل عن ذلک وباع باكثر منه اجازه القاضي. (هداية ۴۷۲: ۴ كتاب الكراهية، فصل في البيع)

وفي الهندية: فان سعر فباع الخباز باكثر مما سعر جاز بيعه.

(الفتاوي العالمگيرية ۲۱۴: ۳ فصل في الاحتكار)

۲) في شرح المجلة: وشرط تركها علي الشجر والرضا به يفسد البيع وعليه الفتوي كما في النهاية. (شرح المجلة ۹۴: ۲ المادة: ۲۰۶)

العنقاء...نو وصی وغیره د عیب د وجې نه په ثمن کې کمی کولې شی نه د نورو عوارض د وجې نه، **هذا ماخوذ من الشامی فی باب الماذون.**(۱)

**وهوالموفق**

## د میلو د تیلو خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زه یو دکاندار یم، او خلق په بازار کې د میلو تیل راوړی او مونږ دکانداران دهغوی نه دا تیل اخلو او بیا ئې په خلقو باندې خرڅوو او دا تیل ریح (باد) او د دردونو دپاره دوائی ده نو د دې شرعی صورت څۀ دې او د دې تیلو اخستل او خرڅول جائز دی یا ناجائز؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** شیخ محمد خیر دا کخآنه کروړه تحصیل الهوری شانگله پار ..... ۱۹۷۶ء/۵/۱۳

**الجواب:** د دې خرڅول ناجائز دی.(۲) او اخستل ئې جائز دی او استعمال ئې هم جائز دی کله چې د هغې نه په تُندئ سره جوړیدل یقیني وی.(۳) **هذا**

---

(۱) في الدرالمختار : ويحط من الثمن بعيب قدر ما يحط التجار . وتحته في الشامية (قوله بعيب) فلا يحط بدونه اذ هو تبرع محض منح.

(ردالمحتار ۱۱۴،۱۱۳ :۵ كتاب الماذون)

(۲) قال العلامة الحصكفي : ونجيز بيع الدهن المتنجس والانتفاع به في غير الاكل بخلاف الودک (درمختار) وقال ابن عابدين : (قوله بخلاف الودک) اي دهن الميتة لانه جزوٴها فلا يكون مالا ابن ملک اي فلا يجوز بيعه اتفاقا وكذا الانتفاع به.

(شامي ۱۲۸: ۴ باب البيع الفاسد)

(۳) قال العلامة ابن عابدين : (قوله اختلف في التداوي بالمحرم) ففي النهاية عن الذخيرة يجوز ان علم فيه شفاء ولم يعلم دواء آخر... وافاد سيدي عبد الغني انه لايظهر الاختلاف في كلامهم لاتفاقهم علي الجواز للضرورة ...ولذا قال والدي في شرح الدرر ان قوله لا للتداوي محمول علي المظنون والا فجوازه باليقيني اتفاق ......[بقيه بر صفحه آئنده...

حسب ما تقتضیه القواعد لم اجده صریحا نعم الطلی اهون من الاکل والشرب.
وهوالموفق

## د بیع العربان حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چې د بیعانه ورکولو نه پس که سړې ئې واپس اخستل غواړی نو آیا هغه ته حق حاصل دې؟ بینواتوجروا

**المستفتی:** یونیورسل سټور جنرل مرچنټس اینډ پروویژن سټور
اسراج کوره بازار اسلام آباد

**الجواب:** شرعا ستاسو دپاره د دې بیعانه واپسی ضروری ده.

لحدیث رواه مالك وابوداؤد وابن ماجة عن عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده قال نهی رسول الله ﷺ عن بیع العربان (مشکوٰة ۲۴۰)(۱) وفی اللمعات: وهو ان یشتری السلعة ویعطی البائع درهما اواقل اواکثر علی انه ان تم البیع حسب من الثمن والالکان للبائع(۲). وهوالموفق

---

...بقیه ازحاشیه گذشته]

لکن قد علمت ان قول الاطباء لا یحصل به العلم والظاهر ان التجربة یحصل بها غلبة الظن دون الیقین الا ان یریدوا بالعلم غلبة الظن وهو شائع في کلامهم.
(شامي ۱۵۴:۱ قبیل فصل في البئر)

۱) (مشکوٰة المصابیح ۲۴۸ باب المنهي عنها من البیوع، الفصل الثاني)

۲) (حاشیة المشکوٰة عن اللمعات نمبر ۲۴۸: ۶ تحت هذا الحدیث)

وفي المرقاة: وهو ان یشتري السلعة ویدفع الي صاحبها شیئا علي انه ان امضي البیع حسب وان لم یمض البیع کان لصاحب السلعة ولم یرتجعه المشتري.
(مرقاة المفاتیح علي مشکوٰة المصابیح ۸۰: ۶ باب المنهي عنها من البیوع)

قال الشیخ السهارنفوري: قلت ویرد العربان اذا ترک العقد علي کل حال بالاتفاق.
(بذل المجهود في حل ابي داؤد ۲۸۷: ۴ باب في العربان)

## د پنشن د اخستلو او خرخولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په حکومت کې د یو سړی عمر دوه شپیتهٔ کاله مقرر کولې شی هغه ته پنشن ورکولې شی چې د هغه پنشن څلور سوه وی نو هغه دوه سوه روپئ خرڅولې شی په دې لحاظ سره چې دچا عمر زیات وی هغه ته پیسې کمې ملاویږی او د چا عمر چې کم وی هغه ته زیاتې پیسې ملاویږی دا طریقه د شریعت په رڼا کې جائز ده یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: صوبیدار عبدالسلام گوجرانواله کینټ

**الجواب:** پنشن په حقیقت کې عطاء ده او دا بیع او شراء صوری بیع او شراء ده، په حقیقت کې دا ورکړه یا نزول عن الحق دې، پس د هر تقدیر په بناء باندې دا خرڅول جائز دی.(۱) وهوالموفق

## د بیع الوفاء تحقیق او په هغې کې زکاة په چا باندې دې؟

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې د بیع الوفاء (بیع صحیحې) تحقیق ولیکئ؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالغفار دیروی ........ (دورهٔ حدیث)

**الجواب:** ذکروافی بیع الوفاء تسعة اقوال والصحیح انه رهن کمافی ردالمحتار ۴:۲۴۶ عن جواهر الفتاوی وهورهن وحکمه الرهن وهو الصحیح اه، وفیه ایضاً عن الخیریة والذی علیه الاکثرانه رهن لایفترق عن الرهن فی حکم من الاحکام الخ(۲)

---

۱) قال العلامة الحصکفي: وعلي هذا لا یجوز الاعتیاض عن الوظائف ... فیفتي بجواز النزول عن الوظائف بمال.

(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۴:۱۵،۱۶ مطلب في النزول عن الوظائف بمال)

۲) (ردالمحتار ۴:۲۷۴ قبیل کتاب الکفالة)

قلت والاعتبار فی العقود للمعانی دون الالفاظ(۱) والمعنی هناك معنی الرهن وقلت ایضاً ان الثمن فی بیع الوفاء یکون دیناً علی البائع فیکون الزکوٰة واجبة علی المشتری کما فی ردالمحتار ۲: ۷ ینبغی لزومها علی المشتری فقط علی القول الذی علیه العمل الآن من ان بیع الوفاء منزل منزلة الرهن وعلیه فیکون الثمن دیناً علی البائع تأمل (۲). وهوالموفق

## د بیع العینه حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ماسره یو عربی ډرائیور ګاډې چلوی یوه ورځ د هغه د خولې نه دا خبره ووتله چې کله څوک د چا نه مالی امداد طلب کړی نو نقد مال قرض نه ورکوی مثلاً زید د بکر نه لس زره روپۍ قرضه وغوښتله بکر اویل چې ټهیک ده، بکر د دکاندار نه د لسو زرو روپو کپړه اخستلو سره هغه ته حواله کړه او زید ته ئې وویل چې ته به د یو کال تیریدلو نه پس ماته پنځلس زره روپۍ راکوئ. نو زید راضي کیدو سره کپړه اوچته کړه، کله چې ما دا خبره واوریدله نو زما په زړه کې د سود آواز راغلو ما وویل چې ماته پوره علم نشته هغه وویل چې په ټولو عربو کې دا لین دین عام دې او دا حرام نه دې، نو آیا دا حرام ده که حلال؟

**بینوا توجروا**

المستفتی: حضرت الله المذنب المقیم السعودیة العربیة ......۹/رمضان المبارك

**الجواب:** دا معامله بیع العینه ده چې په هغې کې د قرض ورکولو نه اعراض

---

۱) وفي شرح المجلة: العبرة في العقود للمقاصد والمعاني لا للالفاظ والمباني ولذا یجري حکم الرهن في بیع الوفاء.
(شرح المجلة ۱: ۱۶ المادة: ۳)

۲) ردالمحتار ۲: ۶ مطلب في زکاة ثمن المبیع وفاء)

دي او مکروه تنزیهی ده، او د امام ابویوسف رحمه الله په نزد دا سړي فی الجملة ماجور دي. (رد المحتار ٥/٢٧٣) (١) وهوالموفق

## د مجنون د اخستلو او خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دي مسئلې په باره کې چې د لیونی د بیع او شراء جواز لري او کنه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: نور الحق (دیر) ٣٠/جمادی الثانی ١٣٩٨ء

**الجواب:** د لیونی اخستل او خرڅول او هبه نامنظور او کالعدم ده. (٢) والمسئلة من الموضحات فلاحاجة الی نقل العبارة...وهوالموفق

---

١) قال العلامة ابن عابدين : (قوله في بيع العينة) اختلف المشائخ في تفسير العينة التي وردالنهي عنها قال بعضهم تفسير ها ان يأتي المحتاج الي آخر ويستقرضه عشرة دراهم ولا يرغب المقرض في الاقراض طمعاً في فضل لا يناله بالقرض فيقول لا اقرضک ولکن ابيعک هذا الثوب ان شئت باثني عشر درهما وقيمته في السوق عشرة ليبيعه في السوق بعشرة فيرضي به المستقرض فيبيعه كذلک فيحصل لرب الثوب درهمان وللمشتري قرض عشرة... عن ابي يوسف العينة جائزة مأجور من عمل بها... قال في الفتح ولا كراهة فيه الا خلاف الاولي لما فيه من الاعراض عن مبرة القرض.

(ردالمحتار ٤:٢٧٢ مطلب في بيع العينة)

٢) قال العلامة الحصكفي : كما بطل بيع صبي لا يعقل ومجنون.

(الدر المختار علي هامش ردالمحتار ٤:١١٧ باب البيع الفاسد)

وفي الهندية : ولا يجوز تصرف المجنون المغلوب اصلا.

(الفتاوي العالمگيرية ٥:٥٤ كتاب الحجر)

## د ناخوښه څيز بغير د دهوکې نه د خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په دکان کې پنځوس تهانه کپړه ده، په هغې کې اته څلويښت تهانه زر زر خرڅيږي او دوه تهانه د خلقو نه خوښيږي اوس چې يو ګاهک راغلو نو ما دوه تهانه مخامخ وغورځول چې دا واخلئ مونږ به ئې خرڅوو او په ټولو تهانونو کې هيڅ نقص نشته صرف ددې رنګ د خلقو خوښ نه دې. هغه واخستلو نو آيا صحيح دې يا نه؟ بينواتوجروا

المستفتی: نامعلوم......

**الجواب:** چې د عيب نه خالي وي (صرف په رغبت کې کمې دې) نو دا دهوکه نه ده، فقط.([1]) وهوالموفق

## د ضبط شوې ځمکې د اخستلو او خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې يو سړې قتل کولو سره وتختيدلو، حکومت د هغه ځمکه ضبط کړه. دا ضبط شوې ځمکه يو بل سړي واخستل او بل چا سره ئې د هغې تبادله هم وکړه. دا بيع او تبادله جائز ده يا نه؟ بينواتوجروا

المستفتی: حبيب غلام بنوں........۲۹ مارچ ۱۹۷۶ء

**الجواب:** تعزير بالمال منسوخ دې، كما في الدرالمختار لا بأخذ المال في

---

[1] قال العلامة وهبة الزحيلي: فالشروط العامة هي التي يجب ان تتحقق في كل انواع البيع لتعتبر صحيحة شرعا وهي اجمالا ان يخلو عقد البيع من العيوب الستة وهي الجهالة، والاكراه، والتوقيت، والغرر، والضرر، والشروط المفسدة.
(الفقه الاسلامي وادلته ۵:۳۳۴۵،۳۳۴۶ شروط صحة البيع)

المذهب هامش ردالمحتار ۳/۲٤٦ (۱) پس د دې ضبط شوې څمکې اخستل او خرڅول د دې مالک د رضا نه بغير ناجائز او کالعدم دې کما في رد المحتار ٤/۱۳٦ (۲) لهذا دا بيع او تبادله به نامنظور وی. وهوالموفق

## د کافر نه د شرابو او د خنزير د پيسو اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې يو سړی يو مارکيټ کميشن باندې واخلي. او په هغې کې دهوبی، درزی، نائی وغيره کار کوی، او صرف په يو دکان کې چينی باشنده. د خنزير غوښه خرڅوی دا تيکيدار کله چې هغه منع کوی نو افسر هم ناراضه کيږی او په کاروبار باندې هم ډير بد اثر پريوزی، د دې نه علاوه هغه دکاندار کله چې د خنزير غوښه خرڅوی نو څه پيسې هغه تيکيدار ته هم ورکوی لهذا دا نقدې پيسې دې تيکيدار له اخستل په شريعت کې څنګه دی؟ بينواتوجروا

المستفتی: مولانادوست محمد جلوزئی نوشهره.....۲۸/نومبر ۱۹۷۲ء

**الجواب:** که دکاندار د خنزير غوښه په کفارو باندې خرڅوی نو دا بيع صحيح او نافذ ده او د دې دکاندار نه په پيسو اخستلو کې في نفسه هيڅ باک نشته او که په مسلمانانو باندې ئې خرڅوی نو دا بيع باطل ده.

---

(۱) قال العلامة الحصکفي: (لا باخذ المال في المذهب)... وفي المجتبي انه کان في ابتداء الاسلام ثم نسخ.
(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۱۹٦،۱۹٥:۳ مطلب في التعزير بالمال)

(۲) قال العلامة الحصکفي: قال في الفتح ان التراضي ليس جزء مفهوم البيع الشرعي بل شرط ثبوت حکمه شرعا اه.
(ردالمحتار ٤:٤ مطلب في بيع المکره والموقوف)

وقال العلامة ابن عابدين: وليس للامام ان يخرج شيئا من يد احد الا بحق ثابت معروف. (ردالمحتار ۳:۲۸۱ مطلب القول لذي اليد ان الارض ملکه وان کانت خراجية)

والدلیل علی الاول ان الخمر والخنزیر مال متقوم عندهم[1] فتکون مبادلة المال بالمال والدلیل علی الثانی ما فی الدرالمختار: وبطل بیع مال غیر متقوم ای غیر مباح الانتفاع به ابن کمال فلیحفظ کخمر وخنزیر ومیتة انتهی[2] قلت وکذاله الشراء لانه شراء ما لیس بمال متقوم،

او دا پیسې د هغه بائع سره امانت دي خو نورو مالونو سره خلط کولو د وجې نه بائع د دې مالک جوړ شو او په بائع باندې زمان لازم شو او د ضمان د راتلو نه پس په دې مال کې د بائع دپاره مالکانه تصرفات جائز دی

صرح به فی ایداع ردالمحتار[3] قلت اما الاذن والاباحة معروفان من المشتری فلاحرج فی التصرف. وهوالموفق

## د بنکو د کرلو او د تجارت حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د بنګو کرل جائز دی یا ناجائز؟ او د هغې تجارت حلال دې یا حرام؟ بینواتوجروا

المستفتی: صوبیدار اختر خان، قوم مشق میله
تبلیغی مرکز ضلع کوهاټ... ٤ رمضان ۱٤۰۹ھ

---

۱) قال العلامة المرغيناني : وجه الفرق ان الخمر مال وكذا الخنزير مال عند اهل الذمة. (الهداية ٤٩ : ٣ باب البيع الفاسد)

۲) (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ١١٦،١١٥ : ٤ باب البيع الفاسد)

۳) قال العلامة الحصكفي : (وكذا لو خلطها المودع) بجنسها او بغيره (بماله) او مال آخر .ابن كمال (بغيراذن) المالك (بحيث لا تتميز ضمنها) لا ستهلاكه بالخلط . و قال ابن عابدين : (قوله لاستهلاكه) واذا ضمنها ملكها ولا تباح له قبل اداء الضمان ولا سبيل للمالك عليها عند ابي حنيفة رحمه الله. (ردالمحتار ٥٥٤ : ٤ كتاب الايداع)

**الجواب:** د بنګو کرل د انګورو د کرلو په شان خپله جائز دی خو د چرسو جوړولو په اراده ناجائز دی څنګه چې د انګورو کرل د شرابو په اراده باندې ناجائز دی، **لکونه تعاونا علی المعصیة کما اشار الیه فی شرح التنویر.** (۱) خو دا ګناه په نسبت د شوکې وغیره کمه ده. **وهوالموفق**

## د یو څیز په پوخ سیر باندې اخستلو سره په کلو باندې د خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې دلته سوداګر حضرات مثلا یو جنس په شپیته روپئ پوخ سیر باندې اخلی او هم هغه جنس په شپیتهٔ روپئ کلو باندې خرڅوی او حال دا چې کلو دیارلس نیمې چټاکئ وی. آیا د هغوی دا عمل صحیح دې؟**بینوا توجروا**

المستفتی: عبدالشکور مین بازار کوهاټ...... ۹/شوال ۱۴۰۴ھ

**الجواب:** چونکې په بیع او شراء کې دهوکه ورکول نشته لهذا دا رویه جائز ده. (۲) **وهوالموفق**

---

۱ ) قال العلامة الحصکفي: (و) جاز (بیع عصیر) عنب (ممن) یعلم انه (یتخذه خمرا) لان المعصیة لا تقوم بعینه بل بعد تغیره وقیل یکره لاعانته علي المعصیة ونقل المصنف عن السراج والمشکلات ان قوله ممن اي من کافر اما بیعه من المسلم فیکره ومثله في الجوهرة والباقاني وغیرهما زاد القهستاني معزیا للخانیة انه یکره بالاتفاق... (و)جاز تعمیر کنیسة و (حمل خمر ذمي) بنفسه او دابته (باجر) لا عصرها لقیام المعصیة بعینه .

و قال ابن عابدین: ولعل المراد هنا عصر العنب علي قصد الخمریة فان عین الفعل معصیة بهذا القصد. (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲۷۶،۲۷۷: ۵ فصل في البیع ، کتاب الکراهیة)

۲ ) قال العلامة وهبة الزحیلي: فالشروط العامة هي التي یجب ان تتحقق في کل انواع البیع لتعتبر صحیحة شرعا وهي اجمالا ان یخلو عقد البیع من العیوب الستة وهي الجهالة، والاکراه، والتوقیت، والغرر، والضرر، والشروط المفسدة.

(الفقه الاسلامي وادلته ۳۳۴۵،۳۳۴۶: ۵ شروط صحة البیع)... [بقیه برصفحه آئنده...

## د مجبورئ دوجې نه د زيات قيمت والا څيزپه کم قيمت باندې خرڅول

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې يو څيز په بازار کې په يوه روپۍ شل سيره ملاويږی او د قرض په صورت کې اتلس سيره ملاويږی دغه شان يو څيز نقد په سل روپۍ خرڅيږی او د قرض په صورت کې په شپږ شلې روپۍ، نو آيا په دې کې څه کراهت شته؟ **بينواتوجروا**

**المستفتي: نامعلوم......**

**الجواب:** په دې دواړو مسئلو کې څه اختلاف نشته يو مجبور سړې کله چې د څه مجبورئ د وجې نه زيات قيمت والا څيز ارزان خرڅ کړی نو د هغې اخستل مکروه دی (۱) او کله چې قرض (غير نقد) باندې خرڅ کړی او په قيمت کې زيادت وکړی نو اخستل او خرڅول ئې بغير د کراهت نه جائز دی (۲) **وهوالموفق**

---

...بقيه ازحاشيه گذشته]

وقال العلامة المرغيناني: ويجوز بيع الطعام والحبوب مكايلة ومجازفة... ويجوز باناء بعينه لا يعرف مقداره وبوزن حجر بعينه لا يعرف مقداره لان الجهالة لا تفضي الي المنازعة.

(هداية ۲۲،۲۱:۳ كتاب البيوع)

۱ ) قال المحدث علي القاري: (قال نهي رسول الله ﷺ عن بيع المضطر)... والثاني ان يضطر الي البيع لدين ركبه او مؤنة ترهقه فيبيع ما في يديه بالوكس للضرورة وهذا سبيله في حق الدين والمروأة ان لا يبايع علي هذا الوجه ولكن يعار ويقرض الي الميسرة او يشتري الي الميسرة او يشتري السلعة بقيمتها فان عقد البيع مع الضرورة علي هذا الوجه صح مع كراهة اهل العلم له.

(مرقاة المفاتيح شرح مشكوٰة المصابيح ۸۰:۶ باب المنهي عنها من البيوع)

۲ ) قال العلامة المرغيناني: لان للاجل شبها بالمبيع الايري انه يزاد في الثمن لاجل الاجل. (هداية ۷۴:۳ باب المرابحة والتولية)

## د مجبور سړي نه د زیات قیمت والا څیز په کم قیمت اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی سره څه مال دې د خرڅولو دپاره او هغه ئې فورا خرڅول غواړی ځکه چې هغه سره د خوراک او د وخت د ګزارې دپاره څه نشته، د هغه نه دا مال په ډیر کم قیمت باندې اخستلې شی دغه شان د دې سړی ضروریات پوره کیږی نو د دې مجبور سړی نه مال په کم قیمت باندې اخستل جائز دی یا نه دی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** ازطرف ټول اینډ مشینری کمپنی لاهور........۶ | اکتوبر ۱۹۸۹ء

**الجواب:** داسې سړی له قرض ورکول پکار دی او هغه سره امداد کول پکار دی دهغه نه یو څیز په کم قیمت باندې اخستل د فتوی په طور جائز دی خو د تقوی مخالف دی.(۱) **وهوالموفق**

## د حکومت د یو سړی ځمکه جبرا د اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ۱: یو سړی د خپل ذاتی کور د جوړولو او د هغې نه علاوه د تجارت په غرض د پولټری فارم د پرانستلو دپاره پنځه کاله مخکې د ځمکې یو حصه څلور کناله په بیع قطعی اخستلې وی، د بیع قطعی د انتقال فیس هم حکومت وصول کړې وی چې د هغې ثبوت د سرکاری مالک جائیداد سره موجود وی، او د هغې د منلو نه موجوده حکومت انکار کوی.

---

(۱) قال العلامة القاري: (نهي رسول الله ﷺ عن بيع المضطر)... والثاني ان يضطر الي البيع لدين ركبه او مؤنة ترهقه فيبيع ما في يديه بالوكس للضرورة وهذا سبيله في حق الدين والمروأة ان لا يبايع علي هذا الوجه ولكن يعار ويقرض الي الميسرة او يشتري الي الميسرة او يشتري السلعة بقيمتها فان عقد البيع مع الضرورة علي هذا الوجه صح مع كراهة اهل العلم له.

(مرقاة المفاتيح شرح مشكوة المصابيح ۶:۸۰ باب المنهي عنها من البيوع)

۲: موجوده حکومت د ځمکې د مالک د مرضئ خلاف، چې په یو قیمت باندې هم خپل جائیداد خرڅول نه غواړي، بغیر د څه خبر ورکولو نه انګریزی قانون ایکټ مجریه ۱۸۹۴ء د لاندې جبرا قبضه کولو سره په هغې باندې تعمیر شروع کړو. دغه شان د یو نیم کال نه د ځمکې مالک ته نقصان ورسیدلو. ۳: موجوده حکومت د نرخ لسمه حصه جبرا ورکوی.

۴: د دې جائیداد په خوا کې د جائیداد خرڅول د عوامو په مینځ کې په موجوده بازاری قیمت باندې شوې وی، او د دې جائیداد د موجوده بازاری قیمت په حکومتی کاغذاتو کې ثبوت انتقال بیع قطعی موجود وی چې د هغې د منلو دپاره د حکومت کاریګر تیار نه وی آیا دا جائز دې؟

مهربانی وکړئ د فقه حنفی په رڼا کې جواب راکړئ. **بینوا توجروا**

**المستفتی**: ډاکټر فضل معبود محله شیخان اکوړه خټک پشاور... ۱٤۰۵ھ/۱۹۸۶ء/۱۵/٦

**الجواب**: چونکې د حکومت حکم اکراه دی په دې وجه دا بیع بیع المکره ده او د زوال اکراه په وخت دا بائع یا د هغه وارثان دا ځمکه واپس کولې شی، کما فی اکراه شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ۵: ۱۱۲ امر السلطان اکراه وان لم یتوعده(۱) وفیه ایضا ص ۱۱۰ فلو اکره... حتی باع او اشتری... فسخ ما عقد ولا یبطل حق الفسخ بموت احدهما الخ(۲). وهو الموفق

## د مملوکه اوبو د اخستلو او خرڅولو حکم

**سوال**: څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې: ۱ ما اوریدلې دی چې د اوبو اخستل او خرڅول ممنوع دی او نن صبا خلق د ټیوب ویل اوبه خرڅوی، آیا دا جائز دي او که ناجائز؟

---

۱ ) (الدر المختار علي هامش ردالمحتار ۵: ۹۱ کتاب الاکراه)

۲ ) (الدر المختار علي هامش ردالمحتار ۵: ۸۹، ۹۰ کتاب الاکراه)

۲: زمونږ په علاقه کې حکومت ټیوب ویل لګولي دي او مالیه نه اخلي لهذا په دې کې به د عشر څه حکم وي او که حکومت آبیانه وصولول شروع کړي نو بیا به څه حکم وي؟ بینواتوجروا

المستفتي: نامعلوم.......

**الجواب:** ۱: چونکې د ټیوب ویل اوبه په پائپ او ټینکۍ کې د داخلیدو نه جمع کیږي لهذا د هغې اخستل او خرڅول ګناه نه ده. (شامی باب الشراب) (۱)

۲: په پیسو باندې اخستلې شوې اوبو باندې د اوبه شوې ځمکې په فصل کې نیم عشر واجب وي او کله چې مفت وي نو عشر به واجب وي (شامی باب العشر) (۲) وهوالموفق

## خرڅ کړې شوې څیزد مشتري نه دوباره په کم قیمت باندې داخستلوحکم

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې بائع په مشتري باندې په څوارلس زره روپۍ باندې مبیع په قرض خرڅ کړو، بیا مشتري دا مبیع په دولس زره روپۍ نقدو باندې د بائع په لاس باندې خرڅ کړو آیا دا جائز ده یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتي: محمد دراز، دار العلوم حقانیه، ۱۹۷۸ء/۱۰/۱۰

**الجواب:** په صورت مسئوله کې دا بیع فاسد ده، کمافی شرح التنویر ۱۱۴/۱، ۱۱۵ ــ کمافی شرح التنویر ۱: ۱۱۴، ۱۱۵ وفسد شراء ما باع بنفسه اوبوکیله من

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: (قوله لم يحرز باناء) الاولي في اناء فلو احرزه في جرة او جب او حوض مسجد من نحاس او صفر او جص وانقطع جريان الماء فانه يملكه. (ردالمحتار ۵:۳۱۱ فصل الشرب)

۲) قال العلامة الشامي: نعم لو كان محرزا باناء فانه يملك فلو اشتري ماء بالقرب او في خوض ينبغي ان يقال بنصف العشر لان كلفته ربما تزيد علي السقي بغرب او دالية. (ردالمحتار ۲:۵۵ باب العشر)

الذی اشتراه ولوحکماکوارثه بالاقل من قدر الثمن الاول قبل نقد کل الثمن الاول (۱). وهوالموفق

## د ملاوټ (خلط) کړې شوو څیزونو د خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې درې قسم وريژې وی :نمبر ۱ : سیله کرنل قیمت نهه سوه (۹۰۰) روپۍ بورۍ

نمبر ۲: سیله اری قیمت اته سوه (۸۰۰) روپۍ بورۍ

نمبر ۳: سیله شېړ سوه (۲۰۰) روپۍ بورۍ، دا درې واړه بورۍ مکس کولو سره په اته نیم سوه روپۍ بورۍ خرڅول څه حکم لری؟ او د دې دواړه قسم وريژو یوځای کول څنګه دی؟ حال دا چې دا لږې ارزانې پریوځی او خلق د دې اخستل خوښوی.

هم دغه شان د کینیا چای ګریډ نمبر ۱ د هغې قیمت اتیا روپۍ دې، ګریډ نمبر ۲ په اویا روپۍ کلو او ګریډ نمبر ۳ په شپیتۀ روپۍ کلو دی، دا ټولې دوه سوه او شل شوې، اوس چې دا ټولې یوځای کړې شی نو اویا روپۍ کلو پریوځی د دې پنځه اویا روپۍ کلو خرڅول څنګه دی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتي:** حافظ محمد لور صاحب، اندرون لکی ګیټ بنوں ښهر. ۱۹۸۷ء/۱۲/۲

**الجواب:** ملاوټ (خلط) بذات خود حرام نه دې بلکې د دهوکې د ورکولو د وجې نه حرام دې. (۲) پس که تاسو اخستونکی ته د یو قسم نوم نه اخلئ او

---

۱ ) (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۴:۱۲۸ قبیل مطلب الدراهم والدنانیر جنس واحد في مسائل )

۲ ) وفي المشکوٰة: وعن ابي هریرةؓ ان رسول الله ﷺ مر علي صبرة طعام فادخل یده فیها فنالت اصابعه بللا فقال ما هذا یا صاحب الطعام؟ قال اصابته السماء یا رسول الله ! قال افلا جعلته فوق الطعام حتي یراه الناس من غش فلیس مني... عن علي قال نهي رسول الله ﷺ عن بیع الغرر. (مشکوٰة المصابیح ۱:۲۴۸ باب المنهي عنها من البیوع)

خرڅوئ شي نو دا شرعا ناجائز نه ده (بلکه جواز لري). (۱)، (۲) وهوالموفق

## د نقصان د پوره کولو دپاره سامان په زيات قيمت باندي خرڅول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام ددې مسئلې په باره کې چې ددرآمدی تجارت په سلسله کې پاکستانی مصنوعات د نورو ملکونو د مصنوعاتو نه ډير ګران دی په دې وجه په زياته خرچه باندې يا په څه کم مال باندې برآمد کولې شی مثلا که خرچه پرې سل روپئ وی نو بيرونی ملکونو ته ئې په نوی يا پنځه نوی او په بعض حالاتو کې په اتيا روپو باندې هم خرڅولې شی. دغه شان سوداګرته نقصان کيږي، ددې نقصان د پوره کولو دپاره سوداګر هم هغه مال د پاکستانی صارفينو په لاس باندې په ډير زيات قيمت باندې خرڅوی کله خود سلو روپو د خرچې مال د دوه سوو يا درې سوو روپو پورې لاړ شی دغه شان صارفينو ته د پاکستان جوړ شوی څيزونه د بين الاقوامی قيمتونو نه دوه يا درې چنده پورې ګران ملاويږی د دې څه حکم دې؟ بينواتوجروا

المستفتی: منجانب ټول اينډ مشينری کمپنی لاهور.... ۱٦ اکتوبر ۱۹۸۹ء

**الجواب:** کله چې طرفين يعنی اخستلو او خرڅولو والا راضی وی نو په دې کې هيڅ باک نشته. (۳) ګناه په دروغو او دهوکه کې ده. (۴) وهوالموفق

---

(۱) وفي شرح المجلة: اذا كان المبيع حاضرا في مجلس البيع تكفي الاشارة الي عينه لان الاشارة ابلغ اسباب التعريف وجهالة قدره ووصفه بعد ذلک لا يفضي الي المنازعة فلا يمنع الجواز... مثلا لو قال البائع للمشتري بعتک هذا الحيوان وقال المشتري اشتريته وهو يراه صح البيع قال في البحر لان المشار اليه مبيعا كان او ثمنا لا يحتاج الي معرفة قدره ووصفه. (شرح المجلة ۲:۹۰ المادة ۲۰۲ الفصل الاول في حق شروط المبيع واوصافه)

(۲) چې دکان په ملاوټ نه کولو سره مشهور نه وی ....(مفتی سيف الله حقانی)

(۳) قال العلامة ابن عابدين: بل التراضي شرط لثبوت حكمه شرعا وهو الملک. (ردالمحتار ۷:۴ كتاب البيع)

(۴) عن ابي هريرة رضي الله عنه قال نهي رسول الله ﷺ عن بيع الحصاة وعن بيع الغرر رواه مسلم. (مشكوة المصابيح ۲۴۷:۱ باب المنهي عنها من البيوع)

## د کیسټ د کاروبار حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د کیسټ اخستلو، خرڅولو کاروبار څنګه دې؟ جائز دې یا ناجائز؟ آیا په دې باندې زکاة شته یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** عجب خان آفریدی خیبر بازار پشاور....۲۵ مارچ ۱۹۸۸ء

**الجواب:** که دا کیسټ په سرود او ګانو باندې مشتمل وی نو د نورو بیکاره آلاتو په شان د دې اخستل او خرڅول مکروه تحریمی دی. (عالمگیری) (۱) او کومه ګټه چې د دې نه حاصله شی هغه مال مملوکه دې امانت نه دې لهذا د زکوة نه خلاصې نشته. کبیع الافیون وغیره. (۲) وهوالموفق

---

(۱) وفي الهندية: ويجوز بيع البربط والطبل والمزمار والدف والنرد واشباه ذلک في قول ابي حنيفة رحمه الله وعندهما لا يجوز بيع هذه الاشياء قبل الكسر ذکر المسئلة في اجارات الاصل من غير تفصيل وذکر في السير الكبير تفصيلا علي قولهما فقال ان باعها ممن لم يستعملها ولا يبيع هذا المشتري ممن يستعملها فلا بأس ببيعها قبل الكسر فان باعها ممن يستعملها او يبيعها هذا المشتري ممن يستعملها لا يجوز بيعها قبل الكسر ... والفتويٰ علي قولهما.

(الفتاويٰ العالمگيرية ۳:۱۱۶ الفصل الخامس في بيع المحرم الصيد وفي بيع المحرمات)

(ومثله في الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۵:۱۴۹ قبيل مطلب في ضمان الساعي من كتاب الغصب)

(۲) قال العلامة ابن عابدين: (قوله وصح بيع غير الخمر) اي عنده خلافا لهما في البيع والضمان لكن الفتويٰ علي قوله في البيع وعلي قولهما في الضمان... ثم ان البيع وان صح لكنه يكره كما في الغاية.

(ردالمحتار ۵:۳۲۳ كتاب الاشربة)

## د ژوندی حیوان د څرمنې خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید د قربانۍ د شریکانو نه د قربانۍ څرمن تقریبا د پنځه دیرشو روپو په عوض واخستله او حال دا چې څرمن ئې هم د مذبوح نه نه وه کوزه کړې، د قربانۍ د شریکانو نه یو سړې د وکیل په حیثیت شریک وو خو موکل وکیل ته نه خو د څرمنې د خرڅولو اجازت ورکړې وو او نه ئې د خرڅولو نه مخکې منع کړې وو، ټول بائعان د بازار د نرخ نه ناواقف وو او مشتری (د څرمنې سوداګر) خبر وو د خبردلو نه پس په دویمه ورځ خرڅونکو پیسې واپس کولو سره څرمن واپس غوښتل خو مشتری انکاری وو، اوس فریقین په شرعی فیصله باندې رضامند دی، مهربانی وکړئ د شرعی فیصلې نه پس مو د دلائلو نه هم خبر کړئ؟ بله دا چې زمونږ په عرف کې څرمن وزنی څیز دې او په صورت مذکوره کې مشتری بائعانو سره د اټکل په طور باندې مبینه عقد کړې دې او بائعان د وجې د لا علمۍ نه د دهوکې ښکار شوي دی. **بینواتوجروا**

**المستفتی:** فضل الرحمن آف هزاره.... ١٤ فروری ١٩٧٣ء

**الجواب:** چونکې دا بیع فاسد ده، لهذا بائعین دا فسخ او کالعدم کولې شی، **فی الدرالمختار (وصوف علی ظهر غنم) وجوزه الثانی ومالك وفی السراج لو سلم الصوف واللبن بعد العقد لم ینقلب صحیحا وكذا كل ما اتصاله خلقی كجلد حیوان** (١) بله دا چې په ظاهر کې معلومیږی چې سوداګر هغوی نه دهوکه کولو سره په غبن فاحش کې اخته کړې دی، او په دې صورت کې هم رد او واپسی جائز ده. **كما فی الفتح اما فی مغبون غرکون له حق الرد** (هامش الرد ١٥٩/٤) (٢) **وهوالموفق**

---

١) (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ٤: ١٢١ باب البیع الفاسد)

٢) (ردالمحتار ٤: ١٧٨ مطلب في الكلام علي الرد بالغبن الفاحش)

## د پیسو د نه ادا کولو په صورت کې د بائع مبیع لره د کم، زیات یا برابر قیمت باندې د واپس کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید په عمرو باندې اوښ خرڅ کړو او د پیسو د ادا کولو دپاره ئې یوه میاشت نیټه مقرر کړه د یوې میاشتې تیریدلو نه پس بائع د مشتری نه د قرض مطالبه وکړه نو مشتری وویل چې اوس ماسره پیسې نشته آیا د بائع دپاره دا جائز دی چې هغه د مشتری نه اوښ په زیات قیمت باندې واپس کړی یا دریم سړی د هغې قیمت مقرر کړی بیا ئې په هغې باندې واپس واخلی یا ئې د مخکې قیمت نه په کم قیمت باندې بائع په خپله مرضۍ باندې واپس واخلی یا به بائع د مشتری د ثمن ادا کولو دپاره انتظار کوی. واضحه دې وی چې مشتری به جبرا دا اوښ خرڅوی، د شریعت په رڼا کې څه حکم لري؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: محمد زرین شاه حقانی

**الجواب:** دا بائع دا اوښ په ثمن سابق یا زائد باندې واپس اخستلې شی خو په کم ثمن باندې ئې نه شی اخستلې.

كما في الدرالمختار: وفسد شراء ما باع بنفسه اوبوكيله من الذي اشتراه ولوحكما كوارثه بالاقل من قدر الثمن الاول قبل نقد كل الثمن الاول (هامش ردالمحتار۴:۱۱۴)(۱) وبمعناه في الهداية۳:۵۷)(۲)

بله دا چې د مفتی به قول په بناء باندې دا جائز ده چې دا بائع دې اوښ لره خرڅولو سره خپل قیمت حاصل کړی که دا مشتری د مطل یا د نه ورکولو اراده لري، وهومسئلة الظفر فليراجع الى ردالمحتار۵/۳۷۳. (۳) وهوالموفق

---

۱) (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۴:۱۲۸ باب البيع الفاسد)

۲) قال العلامة المرغيناني: ومن اشتري جارية بالف درهم حالة او نسيئة فقبضها ثم باعها من البائع بخمس مائة قبل ان ينقد الثمن لايجوز البيع الثاني (هداية ۳:۵۷ باب البيع الفاسد)

۳) قال العلامة ابن عابدين: (قوله يعني بلا امره) لان للدائن ان يأخذ بيده اذا ظفر بجنس حقه بغير رضا المدين فكان للقاضي ان يعينه زيلعي. (ردالمحتار ۵:۱۰۵ كتاب الحجر)

## د محاقله (د ولاړو غنمو فصل په صفا غنمو باندې د خرڅولو) حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې اکثر خلق په بل پټې کې د غنمو ولاړ فصل د تیارې غلې په بدل کې اخلی، بوس وغیره په هغې کې شامل وی آیا دا محاقله ده یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: نور الحق

**الجواب:** که مبیع او ثمن متحد وی نو دا معامله محاقله ده. (۱) (فتفکر... مفتی سیف الله حقانی) وهوالموفق

## د شفیع په بائع باندې خرڅول ممنوع نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی یوه ځمکه خرڅه کړه د هغه ورور په هغه باندې د شفعې دعوه وکړه خو مشتری انکار وکړو آخر بائع او مشتری شفیع ته د ځمکې په ورکولو باندې متفق شو پس قاضی صاحب د ګواهانو په حضور کې د شفیع دپاره فیصله وکړه. فیصله نامه بائع ځان سره وساتله او څو کلونه پس (بائع) بیا دا ځمکه په یو سړی باندې خرڅه کړه او دعوی ئې وکړه چې دا ځمکه زما ده اوس د شریعت په رڼا کې دا ځمکه د چا ملکیت دې؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: تاجبر خان دیر..... ۲٤/دسمبر ۱۹۸۳ء

---

(۱) وفي المسلم: عن جابر بن عبد الله رضي الله عنه ان رسول الله ﷺ نهي عن المحاقلة والمزابنة والمخابرة... والمحاقلة ان يباع الحقل بكيل من الطعام معلوم.
(الصحيح لمسلم ۲:۱۱ باب النهي عن المحاقلة والمزابنة)
وقال العلامة الكاساني: وعلي هذا تخرج المزابنة والمحاقلة انهما لا يجوزان... والمحاقلة بيع الحب في السنبل بمثل كيله من الحنطة خرصا لا يدري ايهما اكثر.
(بدائع الصنائع ۴۱۹:۴ حكم المزابنة)

**الجواب:** د دې دعوې د عدم سماعت هیڅ وجه نشته. (۱) د شفیع په بائع باندې خرڅول ممنوع امر نه دې. (۲) وهوالموفق

## په سامان باندې د قبضې کولو نه بغیر وړاندې خرڅول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی په لندن کې مال واخستلو او مال هم هلته دې د مال د مالک سره نه کاغذات شته او نه رسید یا ورسره کاغذات او رسید شته خو مال موجود نه دې نو په داسې صورتونو کې مالک، مال لره په پاکستان کې خرڅولې شي یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی خائسته خان پشاور ....... ۱۳/جمادی الاول ۱۳۹۵ھ

**الجواب:** که دې سړی (مشتری) په دې مال باندې اصالة یا وکالة هیڅ قسم قبضه نه وی کړې نو د هغه دپاره په بل چا باندې خرڅول ناجائز دی اگر چې رسید یا کاغذات ورسره وی. (ماخوذ از هدایة ۷٤/۳) (۳) وهوالموفق

---

(۱) وفي الهندية: "وأما شروط صحتها فمنها عقل المدعي والمدعیٰ عليه ...ومنها حضرة الخصم ...ومنها أن يكون المدعیٰ به شيئاً معلوماً ...ومنها مجلس القضاء ...ومنهاعدم التناقض في الدعوىٰ ...ومنها أن يكون المدعي يحتمل الثبوت.

(فتاویٰ هندية ۳،۲: ۴کتاب الدعویٰ ،الباب الأول)

(۲) وأيضاً فيها :اذا كانت الدارفي يدالبائع وقضیٰ القاضي للشفيع بالشفعة فطلب الشفيع من البائع الأقالة فأقاله البائع فالاقالة جائزة ......ويجعل في حق المشتري كأنّ البائع اشتریٰ الدار من الشفيع. (فتاویٰ هنديه۱۹۸: ۵كتاب الشفعة،الباب السابع عشر في المتفرقات)

(۳) وقال العلامة المرغيناني رحمه الله تعالیٰ: ومن اشتریٰ شيئاًمماينقل ويحوّل لم يجز له بيعه حتیٰ يقبضه لأنه ﷺنهي عن بيع مالم يقبض ولأن فيه غررانفساخ العقدعلیٰ اعتبار الهلاک.

(الهداية ۷۴: ۳باب المرابحة والتولية)

## د مهاجر په جعلی راشن کارډ سره د بل مهاجر دپاره راشن اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې بعض مهاجرین زیات شناختی کارډونه جوړوی په هغې سره د بل سړی دپاره غله اخستل جائز دی یا نه دی؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: (مفتی) محمد سردار (شیخ الحدیث) دار العلوم عربیه ټل ... ۱۹ صفر ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** دروغ ویل او دهوکه ورکول ناجائز دی.(۱) خو په منظور شوې راشن کارډ سره راشن حاصلول ناجائز نه دی. **وهوالموفق**

## د راشن کارډ د اخستلو او خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د مهاجرین نه د هغوی راشن کارډ نور مهاجرو یا ملکی اوسیدونکو له اخستل جائز دی یا ناجائز؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: (مفتی) محمد سردار (شیخ الحدیث) دار العلوم عربیه ټل ... ۱۹ صفر ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** راشن کارډ په حقیقت کې د استحقاق نوم دې، نو د کومو علماء کرامو په نزد چې په نزول عن الحق باندې عوض اخستل جائز دی، د هغوی

---

۱) عن سفیان بن اسدالحضرمي رحمه الله قال سمعت رسول الله ﷺ یقول کبرت خیانةأن تحدث اخاک حدیثا هولک به مصدق وانت به کاذب رواه ابوداود.
(مشکوٰة المصابیح ۴۱۳ باب حفظ اللسان والغیبة والشتم)

وقال الامام البخاري تعلیقا: قال النبي ﷺ الخدیعة في النار.
(الصحیح البخاري ۲۸۷: ۱ باب النجش)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله "کل مقصودمحمود یمکن التوصل الیه بالصدق والکذب جمیعا فالکذب فیه حرام".
(ردالمحتار ۵:۳۰۳ من فروع کتاب الحظروالاباحة)

په نزد دا اخستل او خرڅول هم جائز دي. (۱) کله چې د نورو موانعو نه خالي وي. وهوالموفق

## د ځمکې په بيع کې د ونو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زيد د عمر نه ځمکه واخستله او پنځه حصې ئې ترې د باندې هم واخستلې چې په هغې کې ډيرې ونې لګيدلې دي خو د بيع په وخت د ونو تعين ونکړې شو اوس زيد د ونو دعوی کوي او عمر انکار کوي چې د ونو تعين نه دې شوې، شرعا د دې څه حکم دې؟ بينواتوجروا

المستفتي: جمعه خان مهتمم دارالعلوم کوهستان ۱۴ جمادی الثانی ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** که د ونو استثناء د عقد په وخت کې نه وي شوې نو دا ونې به د هغه مشتري مملوک شماريږي. كمافي شرح المجلة۱۱۶: وفي بيع العرصة تدخل الأشجار المغروسة على أن تستقر لأن جميع هذه المذكورات لاتفصل عن المبيع فتدخل في البيع بدون ذكرولا تصريح ولافرق فيما اذاكانت الأشجار مثمرة أولا صغيرة أوكبيرة الخ. (۲) وهوالموفق

---

۱ ) قال العلامة الحصكفي رحمه الله: وفي الاشباه لا يجوز الاعتياض عن الحقوق المجردة كحق الشفعة... فيفتي بجواز النزول عن الوظائف بمال. (درمختار)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله: واستدل بعضهم للجواز بنزول سيدنا الحسن بن سيدنا علي رضي الله عنهما عن الخلافة لمعاوية علي عوض وهو ظاهر أيضا وهذا أولي مماقدمناه في الوقف عن الخيرية.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۴:۱۵ مطلب في النزول عن الوظائف بمال)

۲ ) (شرح المجلة لسليم رستم باز ۱۱۶ المادة ۲۳۲)

وفي الهندية: ثم ان محمد رحمه الله ذكرأن الشجر يدخل في بيع الأرضين من غير ذكر ولم يفصل بين المثمرة وغير المثمرة ولابين الصغيرة والكبيرة والأصح أن الكل يدخل من غير ذكر.

(فتاوي هندية ۳:۳۳ الفصل الثاني في ما يدخل في بيع الأراضي والكروم)

## د غیر مملوکه غرونو ونې د پرې کولو نه مخکې خرڅول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې د غر ونې د تقسیم نه مخکې په خپلو کلی والو باندې خرڅوی نو آیا دا پیسې جائز دی یا ناجائز؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد ادریس

**الجواب:** د غر ونې د چا ملکیت هم نه وی، لهذا د هغوی تقسیم یا اخستل او خرڅول صحیح نه دی یعنی کله چې د ریبلو نه مخکې وی.

كما يشير اليه عبارة الهندية ١:١٩٧: وما يجمع من ثمار الأشجار التى ليست بمملوكة كأشجار الجبال (١) واعلم أنها ليست داخلة فى الكلاء(٢) كما لا يخفى، نعم الشركة فيها متحققة. وهو الموفق

## د ټیوب ویل اوبه د فصل د معین حصې په عوض کې خرڅول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د پنجاب مالدار خلق د علاقې د آبادئ دپاره ټیوب ویل لګوی او د هغې اوبه د پیدوار د معینې حصې په عوض کې خرڅوی، نو دا جائز ده یا ناجائز؟ بینوا توجروا

---

١) (فتاوي عالمگيريه ١٨٦:١ الباب السادس في زكاة الزرع والثمار)

ويدل علي عدم جوازبيعه ما في دررالحكام: لكل أحد احتطاب الأشجار النابتة من نفسها في الجبال المباحة وليس لأحد منع الآخرمن ذلك ......اذاأخذ أحد بلا اذن الحطب الذي احتطبه أخر من الجبال المباحة وتركه فيها ليأخذه بعد ذلك فيكون غاصباً.....لأن الحطب أصبح ملكاًلمحتطبه.

(دررالحكام ٢٨١،٢٧٩ المادة ١٢٥٨،١٢٥٥)

٢) قال العلامة الشامي رحمه الله تعالي: بخلاف الأشجار، لأن الكلاء ما لا ساق له والشجرله ساق فلا تدخل حتي يجوز بيعها اذانبتت في أرضه لكونها ملكه.

(ردالمحتار ١٢٣:٤ قبيل مطلب صاحب البئرلا يملك الماء)

المستفتي: منظور احمد دار الافتاء دار العلوم قاسم العلوم ملتان. ۳ اپریل ۱۹۹۰ء

**الجواب:** دا معامله ناجائز ده كه دي نه بيع وويل شي يا اجاره. په دې چې دا ثمن يا اجرة نا معلوم دي او نه حالا موجود دي، او دا په (فتاوى) هنديه (عالمكيرى) كې ليكلې شوې دى چې دا جهالت او عدم تحقق مفسدات دى (۱) وهوالموفق؛

## د ذخيره كولو حكم

**سوال:** څه فرمائى علماء كرام د دې مسئلې په باره كې چې غله اخستلو سره وروستو هغه په ګران قيمت باندې خرڅول څه حكم لرى؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوى محمد محسن عباسه

**الجواب:** كه هغه سړى غله د بلې علاقې (ښهر) نه واخستله نو احتكار نه دې كنه نو احتكار دې. وتمام البحث فى رد المحتار ۳۵۲/۵ (۲) وهوالموفق

---

۱) وفي الهنديه :وأما شرائط الصحة...ومنها أن يكون المبيع معلوماً والثمن معلوماًعلماً يمنع من المنازعة فبيع المجهول جهالة تفضي اليهاغير صحيح.

(فتاوي هنديه ۳: ۳كتاب البيوع ،الباب الأول في تعريف البيع الخ)

وأيضاً فيها :وأما شرائط الصحة ...ومنها أن تكون الأجرة معلومة.

(فتاوي هنديه ۴۴۱: ۴كتاب الاجارة،الباب الأول)

۲) وقال العلامة الحصكفي رحمة الله تعالي "ولا يكون محتكرا بحبس غلة أرضه بلا خلاف و مجلوبه من بلد آخر .(درمختار) ،و قال العلامةابن عابدين "(قوله ولا يكون محتكراً الخ) و الظاهر أن المراد أنه لا يأ ثم إثم المحتكرو إن أثم بانتظار الغلاء أوالقحط لنية السوء للمسلمين (قوله و مجلوبه من بلد آخر) لأن حق العامة إنما يتعلق بما جمع في المصر و جلب إلي فنا ئها ، هداية ، قال القهستاني و يستحب أن يبيعه فإنه لا يخلو عن كراهة.

(ردّ المحتار : ۵: ۲۸۳ كتاب الحظروالاباحة ، فصل في ال

## ټیکه په کمیشن باندې خرڅول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د حکومت قاعده ده چې کوم څیز خپله نه شی کولې نو ټیکیدار ته ئې په ټیکه باندې ورکړی کوم ته چې ټینډر وائی او حکومت د هغې نرخ خپله مقرر کوی چې په فلانی نرخ باندې به مال درکوو. اوس چې دا ټیکه په کوم نوم باندې وی هغه مثلا زید په عمر باندې په طور د کمیشن خرڅه کړی په دې طریقه باندې چې زید عمر ته وائی چې ټیکه ته چلوه، او د منافع په پیسو کې به زما یوه آنه یا دوه آنې وی، دا یوه آنه یا دوه آنې کومې چې زید د عمر نه اخلی د شریعت په رڼا کې دا پیسې اخستل څنګه دی؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی:** مولوی حبیب الرحمن امام مسجد حانان ......۱۳ رمضان المبارک ۱۳۸۸ھ

**الجواب:** زید چې د عمر نه کوم مال اخلی هغه رشوت او حرام دې.(۱) او د ټیکې اکثر صورت بذات خود هم حرام وی، **لکونها بیعا فاسدا.(۲) او اجارة فاسدة(۳) والتفصیل سیکتب عند تفصیل الصور. فقط**

---

(۱) قال العلامة ابن عابدین: وفي المصباح الرشوة بالکسر ما یعطیه الشخص الحاکم وغیره لیحکم له او یحمله علي مایرید... وفي القنیة الرشوة یجب ردها ولا تملک وفیها دفع للقاضي او لغیره سحتا لاصلاح المهم فاصلح ثم ندم یرد ما دفع الیه.
(ردالمحتار ۳۳۸،۳۳۷: ۴ مطلب في الکلام علي الرشوة والهدیة)

(۲) قال العلامة ابن عابدین: باب البیع الفاسد... انه معصیة یجب رفعها، وسیأتي في باب الربا ان کل عقد فاسد فهو ربا یعني اذا کان فساده بالشرط الفاسد.
(ردالمحتار ۱۱۱: ۴ باب البیع الفاسد)

(۳) قال العلامة ابن عابدین: لان اجر المثل في الاجارة الفاسدة طیب وان کان الکسب حراما. (ردالمحتار ۳۱: ۵ باب الاجارة الفاسدة)

# باب خیار العیب

## داطلاع علی العیب نه پس د مالکانه تصرف په صورت کې د خیار عیب حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې آیا د اطلاع علی العیب نه پس د مشتری په مبیع کې تصرف یا د هغې خرڅول دا رضا بالعیب ده یا نه؟

۲: مبیع په بائع باندې واپس کولې شی یا د هغه نه تاوان اخستلې شی یا نه؟

۳: دا رضا بالعیب، کله چې د دواړو څیزونو نه ثابته شی، قسم د بائع نه ساقط کوی یا نه؟ اګر چې د عیب دعوی د یو کال نه پس هم وی بله دا چې مبیع ئې هم په لاس کې نشته هغه ئې خرڅه کړې ده، پورته درې سوالونه معروضی سوالات دی. بینواتوجروا

المستفتی: مولوی محمد شریف پینګ ........ توپي ضلع مردان

**الجواب:** د اطلاع علی العیب نه پس مبیعې لره خرڅول یا نور مالکانه تصرف کول مانع عن الرجوع دی یعنی نه مشتری مبیعه واپس کولې شی او نه رجوع بالنقصان کولې شی.

صرح به جمیع ارباب الفتاوی(۱) قال فی شرح المجلة ۱۸۵ بعد اطلاع المشتری

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: وفي الكفاية كل تصرف يسقط خيار العيب اذا وجده في ملكه بعد العلم بالعيب فلا رد ولا ارش لانه كالرضا به.

(ردالمحتار ۴:۹۲ مطلب فيما لو اكل بعض الطعام)

وفي الهندية: الاصل ان المشتري متي تصرف في المشتري بعد العلم بالعيب تصرف الملاک بطل حقه في الرد.

(فتاوي عالمگيرية ۳:۷۵ الفصل الثالث فيما يمنع الرد بالعيب وما لا يمنع)

على العيب فى المبيع اذا تصرف فيه تصرف المالك سقط خياره مثلاً لو عرض المشترى المبيع للبيع بعد اطلاعه على عيب الخ(۱)

پس نه د مشترى دعوىٰ صحيح ده او نه اقامة بينه او نه حلف د بائع صحيح دي. وهوالموفق

...

۱) (شرح المجلة ۲:۳۰۷، ۳۰۸، المادة : ۳۴۴،بعد اطلاع المشتري علي عيب)

# باب الاقالة

## په ویزه کې د لګولې شوې شرطونو په نه پوره کولو باندې د عقد د فسخ کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې بنده حاجی دلیل خان د ورارهٔ کلیم خان دپاره د حاجی میر صاحب خان نه یو ویزه په دې شرط واخستله چې مسمی کلیم خان به مخصوص عربی د کور مالک د خپل کور په کار باندې لګوی، یعنی خاص مزدور به ئې ساتی. او زر ریاله به ورته سره د خوراک نه ورکوی، او د ویزې قیمت کوم چې اته دیرش زره روپئ دې هغه به زه ادا کوم، حاجی میر صاحب خان شرطونه قبلولو سره ویزه حواله کړه او مونږ ذکر شوې پیسې ورکړې او هغه مو د عربی د کور د خدمت دپاره حواله کړو. عربی حیله جوړولو سره د هغه نه اتهٔ میاشتې کار واخستلو او مزدوری ئې ورله ډیره کمه ولګوله. یعنی دوه نیم سوه ریاله ئې د ټولو میاشتو ورکړل. کلیم خان د مجبورئ نه د مزدورئ په لټون کې ووتلو څکه چې شرطونه پوره نه شو، ما میر صاحب خان ته خبر ورکړو نو هغوی ټیلیفون کولو سره دا فیصله وکړه چې که په مقرر شوې مزدورئ باندې هغه نه وی لګولې شوې نو زه به ویزه سره د باقی تنخواه ګانو په پاکستان کې درکړم آیا دا دعوی شرعا دائر کول جائز دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: حاجی دلیل خان ....... ۲۳ جمادی الثانی ۱۴۰۷ هـ

**الجواب:** چونکې دا بیع د دې اشتراط د وجې نه بیع فاسد ده. [۱] او په بیع

---

۱ ﴾ قال العلامة المرغيناني: وكل شرط لا يقتضيه العقد وفيه منفعة لاحد المتعاقدين او للمعقود عليه وهو من اهل الاستحقاق يفسده.

(هداية ۳:۵۹ باب البيع الفاسد)

فاسد کې د مبیع د هلاکت د وجې نه عقد فسخ کول ناممکن شی خو د مشتری په ذمه قیمت واجبیږی نه ثمن. کما فی شرح التنویر علی هامش رد المحتار ۱۲۵/٤ والافبقیمته یعنی ان بعدهلاکه اوتعذرردہ.(۱) وهوالموفق

**وضاحت:** دا جواب به هله وی چې مبیعه وغیره د ورارۀ د استعمال د وجې نه ختم شوې وی. (مفتی سیف الله حقانی)

## په مقرر شوې بیع باندې بغیر د معتبر اقالې نه انحراف جائز نه دي

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په یو کور کې څو وارثان شریک دی په هغوی کې یو د مړی ښځه ده، د مړی ښځې خپله څلورمه حصه، کومه چې به هغه ته په کور کې ملاویده، دځه سامان په عوض کې ئې مونږ ته راکړه ددې معاملې په باره کې زمونږ دوه ګواهان هم موجود دی. اوس هغه زنانه هغه کور دوباره خرڅول غواړی نو دا معامله د زنانه دپاره جائز ده یا نه ده؟ بینواتوجروا

المستفتي: امیر حسین ډیره اسماعیل خان

**الجواب:** د دې زنانه دپاره د دې بیع نه واپس کیدل جائز نه دی، قال الله تعالی ﴿ یا ایها الذین امنوا اوفوا بالعقود ﴾(۲) وقالوا ان الاقالة لا تصح الا بالرضاء(۳) وهوالموفق

---

۱ ﴾(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۱٤٠: ٤باب البیع الفاسد)

۲ ﴾(سورة المائدة آیت: ۱)

۳ ﴾وفي الهندیة: وشرط صحة الاقالة رضا المتقائلین.

(هندیة ۱۵۷: ۳مطلب شروط صحة الاقالة)

وقال العلامة الحصکفي: ومن شرائطها... رضا المتعاقدین.

(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۱٦۲: ۳باب الاقالة)

# باب بيع المرابحة والتولية

## په بيع مرابحة کې په خيانت ثابتيدلو باندې مالي جرمانه اخستل او بيع فسخ کول

**سوال:** څه فرمائي علماء كرام د دې مسئلې په باره کې چې په پنجاب کې غوا، ميښه خرڅولو کې د بائع او مشتري ترمينځه يو قانون دې هغه دا چې مشتري د بائع نه غوا وغيره اخلي، بائع وائي چې ما په پنځه زره روپۍ باندې دا ميښه اخستلې ده او زه دوه سوه روپۍ منافع غواړم. اوس كه بائع رشتينې دې نو ډيره ښه ده، كنه نو د دروغو په صورت کې بيا دا مشتري د دې بائع نه د دې علاقې د قانون مطابق د دوه سوه روپۍ منافع د هرې روپۍ په عوض کې يولس روپۍ اخستلې شي،اوس مشتري كه په ګواهانو سره د دې سړي (بائع) دروغ ثابت كړي نو آيا مشتري د دې بائع نه دا حساب اخستلې شي يا نه؟ بينواتوجروا

المستفتي: عبدالمتين تهي کوهاٹ..... ۱۹ صفر ۱۴۰۲هـ

**الجواب:** دا بيع بذات خود جائز ده دې ته بيع مرابحه وائي، (هداية) (۱) وشامي (۲) وهندية) (۳) په دې کې خيانت حرام دې خو د ثبوت خيانت په تقدير

---

۱) قال العلامة المرغيناني: المرابحة نقل ما ملكه بالعقد الاول بالثمن الاول مع زيادة ربح. (الهداية ۳:۷۰ باب المرابحة والتولية)

۲) قال العلامة الحصكفي: المرابحة شرعا بيع ما ملكه من العروض ولو بهبة او ارث او وصية او غصب فانه اذا ثمنه بها قام عليه وبفضل.
(الدرالمختار ۴:۱۷۱ كتاب البيوع، باب المرابحة والتولية)

۳) وفي الهندية: المرابحة بيع بمثل الثمن الاول وزيادة ربح.
(فتاوي عالمگيرية ۳:۱۶۰ الباب الرابع عشر في المرابحة والتولية)

باندې جرمانه اخستل د تعزیر بالمال کیدو د وجې نه حرامه ده، کما فی شرح التنویر ۳/۲۴۶ (۱) خو دا بائع بیع فسخ کولې شی، کما فی الهندیة ۳/۷۱ (۲) وغیرهما. وهوالموفق

## د ایجنټ په ویزې باندې زیاتې پیسې اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې حکومت کوم ایجنټان مقرر کړی دی او خلق بهر ملکونو ته لیږی هغه ایجنټانو ته د حکومت د طرف نه مبلغ دوه زره روپۍ مقرر دی او ویزې د بهر ملکونو نه مفت راځی ځکه چې کمپنو ته د مزدورانو وغیره ضرورت وی خو ایجنټ د دوه زره روپو په ځای د حکومت نه په غلا باندې دیارلس زره روپۍ اخلی، ضرورت مند د مجبورۍ د وجې نه دا ویزې اخلی ځکه چې بیا ئې هغوی ورکوی نه، نو آیا د دوه زرو روپو نه زیاتې اخستل د هغوی دپاره جائز دی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: سمیع الله تور ډهیر مدرس پرائمری سکول

**الجواب:** که د حکومت د طرف نه په زیاتی رقم وصولولو باندې پابندی نه وی نو په دې کې هیڅ باک نشته (او جواز لری). (۳) وهوالموفق

## په مرابحه کې گز او میټر له بیانول ضروری دی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د کپړې یو

---

۱) قال العلامة الحصكفي: ويكون به وبالحبس... لا باخذ مال في المذهب.
(الدرالمختار ۳:۱۹۵ باب التعزير، مطلب في التعزير باخذ المال)

۲) وفي الهداية: فان اطلع المشتري علي خيانة في المرابحة فهو بالخيار عند ابي حنيفة رحمه الله ان شاء اخذه بجميع الثمن وان شاء تركه.
(الهداية ۳:۷۱ باب المرابحة والتولية)

۳) او په ظاهره پابندي موجوده ده لهذا حرج لازم دي (مفتی سیف الله حقانی)

دکاندار دې هغه ته بعض مال د ګزونو په حساب سره ملاویږي او بعض کپړه د میټر په حساب سره، یو ګاهک د دکاندار نه د کپړې اخستلو په غرض راغلو، دکاندار ته وائی چې یوه روپۍ ګته مانه واخله، دکاندار د اخستلو بل ښودلو سره کپړه ورکوی خو ګاهک دکاندار ته د ګز او میټر فرق نه ښائی آیا دا به جائز وی که خیانت به وی؟ بینواتوجرو

المستفتی: فضل احد بټ خیله ملاکنډ..... ۲۷ شعبان ۱٤٠۲ھ

**الجواب:** په بیع مرابحه کې دا اقدام خیانت دې او حرام دې، قال صاحب الهداية: ولهذا كان مبناهما على الامانة والاحتراز عن الخيانة ۳/۷۳ (۱) وهوالموفق

## د قرض د وجې نه په ثمن کې زیادت او د ډاټسن او ټوپک په قیمت کې د زکاة حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ۱: د یو ډاټسن نقدی قیمت درې لاکه روپۍ دې او که په قسطونو روپۍ ورکول وی نو بیا څلور لاکه روپۍ دې آیا دا اخستل او خرڅول جائز دی او که سود دې؟
۲: د یو ټوپک قیمت نقدی پنځلس زره روپۍ دې آیا په قرض ئې په شل زره روپۍ باندې خرڅول صحیح دی؟ بله دا چې په ډاټسن او ټوپک باندې به زکاة فرض وی؟ بینواتوجروا

المستفتی: قاری مغل حسین ګورنمنټ هائی سکول اشکر کوټ جنوبی وزیرستان ۱۹۹۰ء/۲/۱۰

**الجواب:** ۱: په قرض باندې د خرڅولو د وجې نه په ثمن کې زیادت کول جائز دی. (مجموعة الفتاوی) (۲) او دا مشتری (اخستونکې) د کال تیریدلو نه

---

۱) (هداية ۳:۷۱ باب المرابحة والتولية)

وقال العلامة ابن عابدين: لانها مبنية علي الامانة والاحتراز عن شبهة الخيانة. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٤:۱۷۷ باب المرابحة والتولية)

۲) قال العلامة عبد الحي اللكهنوي: د اجل (نیتې) په وجه د ثمن زیاتوالي بېشکه صحیح دې ددې ثبوت د هدایه د کتاب المرابحه د عبارت نه... [بقیه بر صفحه آئنده...

پس د زکاة د مالونو نه قرض لرې کولو سره به د باقی مالونو نه زکاة ورکوی

**نوټ:** د داتهسن او د توپک په قیمت کې زکاة فرض نه دې. (۱)، (۲) **وهوالموفق**

## په تولیه کې د اصل قیمت زیات بیانولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ما یو څیز په سل روپئ باندې واخستلو او گاهک ته مې یو سل او دیرش روپئ یادې کړې او دیرش روپئ منافع ده آیا دا جائز ده؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** حبیب الرحمن پیښور بهر دبگری

**الجواب:** دا کار خیانت دې، حرام دې او واجب الرد دې. (۳) **وهوالموفق**

---

**...بقیه ازحاشیه گذشته]**

ډیر ښه معلومیږی په هدایه کې دی:

**الا تري انه يزاد في الثمن لاجل الاجل**، آیا تا ته دا معلومه نه ده چه د مودې په وجه په ثمن کې زیاتوالې کیږی او همدغه شان عبارتونه په نورو ډیرو کتابونو کې هم موجود دی
(مجموعة الفتاوي ۱۲۴: ۲ کتاب البيع)

۱ ﴾ قال العلامة المرغيناني: وليس في دورالسكني وثياب البدن واثاث المنازل ودواب الركوب وعبيد الخدمة وسلاح الاستعمال زكوة لانها مشغولة بالحاجة الاصلية وليست بنامية ايضا.
(هداية ۱۸۶: ۱ كتاب الزكاة)

۲ ﴾ خو چې د تجارت د پاره نه وی. (مفتی سیف الله حقانی)

۳ ﴾ وقال العلامة الحصكفي: (وله الحط) قدر الخيانة (في التولية).
(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۱۷۴: ۴ باب المرابحة والتولية)

وفي الهندية: وان خان في التولية حطها من الثمن وهذا عند ابي حنيفة رحمه الله. (فتاوي عالمگيرية ۱۶۲: ۳ الباب الرابع عشر في المرابحة والتولية)

## د قرض د وجې نه په ثمن کې زیادت کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د قرض سودا د وجې نه د پیسو اضافه جائز ده یا ناجائز؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** اکبر حسین ماسٹر کلی او دا کخانه کوزه بانډه ضلع سوات... ۲٤/۳/۱۹۷٦ء

**الجواب:** د نیتې د وجې نه (یعنی په قرض سودا کښ) په ثمن کښې اضافه جائز ده (۱) خو که بائع د مشتری د ضرورت نه فائده اوچتولو سره په ثمن کې زیاته اضافه وکړی نو دا به ظلم وی. قال الله تعالیٰ: **والله لا یحب الظالمین ....** (۲) خو په بیع کله چې مشتری راضی شو نو په هر قیمت باندې به جائز وی. (۳) **وهوالموفق**

**المجیب:** عبدالحلیم کلاچوی خادم الافتاء حقانیه

**الجواب:** صحیح مسطور فی مجموعة الفتاوی (٤) محمد فرید عفی عنه

---

۱ ) قال العلامة ابن نجیم: لان للاجل شبها بالمبیع الا تری انه یزاد فی الثمن لاجل الاجل. (البحر الرئق ۱۱٤:٦ باب المرابحة والتولیة)

وقال العلامة ابن عابدین: لان للاجل شبها بالمبیع الا تری انه یزاد فی الثمن لاجله. (ردالمحتار ۱۷۷:٤ باب المرابحة والتولیة)

۲ ) (سورة آل عمران آیت: ۱٤۰)

۳ ) وفي الهندية: اما تعريفه فمبادلة المال بالمال بالتراضي.

(فتاوي عالمكيرية ۲:۳ الباب الاول في تعريف البيع)

وقال العلامة ابن عابدين: بل التراضي شرط لثبوت حكمه شرعا وهو الملك.

(ردالمحتار ۷:٤ كتاب البيوع)

٤ ) قال العلامة اللكهنوي:

د اجل (نیتې) په وجه د ثمن زیاتوالې بېشکه صحیح دې ددې ثبوت د هدایه د کتاب المرابحه د عبارت نه ډېر ښه معلومیږی په هدایه کې دی ... [بقیه برصفحه آئنده...

## خپل مال په ګټه باندې خرڅول سود نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې اکثر دکانداران د کابل نه د تجارت مال راوړي او په زرو روپو کې شپیتهٔ روپئ منافع اخلي نو آیا دا سود دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: میان محمد رحمن معلم دینیات هائی سکول سخاکوټ ملاکنډ ایجنسی...۹ اکتوبر ۱۹۷۲ء

**الجواب:** په ظاهره کښې پدې کې هیڅ سود نشته. بلکې خپل مال په ګټه باندې خرڅوی او په دې کې هیڅ باک نشته (۱)، (۲) **وهوالموفق**

---

...بقیه ازحاشیه گذشته]

الا تري انه يزاد في الثمن لاجل الاجل ،

آیا تا نه دا معلومه نه ده چه د مودې په وجه په ثمن کې زیاتوالې کیږي او همدغه شان عبارتونه په نورو ډیرو کتابونو کې هم موجود دي.

(مجموعة الفتاوي ۱۲۴:۲ کتاب البيع)

(۱) وفي الهندية : المرابحة بمثل الثمن الاول وزيادة ربح ... والكل جائز.

(فتاوي هندية ۳:۱۶۰ الباب الرابع عشر في المرابحة والتولية)

وقال العلامة الحصكفي : (المرابحة) شرعا (بيع ماملكه) من العروض (بما قام عليه وبفضل) مؤنة وان لم تكن من جنسه كأجر قصار ونحوه ثم باعه مرابحة علي تلك القيمة جاز.

(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۴:۱۷۰،۱۷۱ باب المرابحة والتولية)

(۲) لان الفقهاء يطلقون العبارة ويقولون : البيع مبادلة المال بالمال بالتراضي.

(مفتي سيف الله حقاني)

بسم الله الرحمن الرحیم

# فتاوی دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاوی فریدیه

دوم جلد

# باب الصرف والسلم

.........

بسم الله الرحمن الرحیم

فتاوی دیوبند پاکستان

المعروف به

فتاوی فریدیه

# باب الصرف والسلم

عن ابی سعید الخدری رضی الله عنه قال:
لا تبیعوا الذهب بالذهب الا مثلاً بمثل.
(الحدیث)

وقال رسول الله صلی الله علیه وسلم
من اسلف فی شئ فلیسلف فی کیل معلوم
ووزن معلوم الی اجل معلوم
(الحدیث)

........

# باب الصرف والسلم

## د سلم شرطونه

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د بیع سلم شرطونه څه دی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** شیخ محمد میر سوات...... ۸ دسمبر ۱۹۷۴ء

**الجواب:** د سلم شرطونه دا دی : بیان جنس، نوع، صفت، قدر، اجل، راس المال، مکان ایفاء، قبض راس المال الخ.....(۱) **وهوالموفق**

## قرض ورکولو سره د فصل په موسم کې په کم نرخ باندې غنم اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د موجوده غنمو قیمت فی من خلویښت روپئ دې نو یو سړی بل ته دوه سوه روپئ ورکړې او وېې ویل چې د راتلونکې ګرمئ په موسم کې به ماته یو مَن په شل روپئ قیمت باندې ددې دوه سوه روپو غنم راکوې، آیادا طریقه جائزده؟**بینواتوجروا**

**المستفتی:** لعل محمد.....۲۳ جون ۱۹۷۶ء

---

(۱) قال العلامة المرغيناني : ولا يصح السلم عند ابي حنيفة رحمه الله الا بسبع شرائط جنس معلوم... ونوع معلوم... وصفة معلومة... ومقدار معلوم... واجل معلوم... ومعرفة مقدار رأس المال... وتسمية المكان الذي يوفيه فيه اذا كان له حمل ومؤنة... ولا يصح السلم حتي يقبض رأس المال قبل ان يفارقه فيه. (هداية ۹۵،۹۶ : ۳باب السلم)

وفي الخلاصة : وفي شرح الشافي السلم عقد جائز بشرائط منها بيان الجنس وبيان النوع وبيان الصفة وبيان القدر واعلام رأس المال وتسليمه قبل الافتراق بالابدان. (خلاصة الفتاوي مختصراً ۲ : ۳ كتاب البيوع ، الفصل الاول في السلم)

**الجواب:** که د سلم شرطونه موجود وی مثلا د غنمو قسم او د حواله کولو ځای او تاریخ ئې معین کړې وی نو دا معامله جائز ده کنه نو ناجائز ده. وصرح به فی جمیع کتب الفقه.(۱) فلاحاجة الی نقل العبارات. وهوالموفق

## وکیل یا شریک باندې حواله ورکولو سره

## د پاکستانی نوټ د افغانی کرنسۍ سره بدلول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ د صراف سره کاروبار دې، زه د صراف سره لس زره روپۍ (کالدارې) جمع کوم، کله چې کابل ته ځم نو د صراف نه افغانۍ پیسې اخلم، سل روپۍ افغانۍ په لسو روپو (کالدارو) باندې کیږی نو لس زره روپۍ (کالدارې) یو لاک روپۍ وی، مونږ ته صراف درې لاکه روپۍ راکوی نو تاسو ته معلومه شوه چې صراف مونږ ته درې زره روپۍ قرض راکړې خو د بازار نرخ نقدې سل روپۍ افغانۍ لس روپۍ پاکستانۍ دی یعنی د قرض د وجې نه ئې لس روپۍ او یو انه یا دوه انو باندې راکړې، اوس مهربانی وکړئ او فتوی راکړئ چې دا سود دې یا نه؟ ځکه چې جنس جدا دې اوپه دې هم خبرشئ چې مونږه افغانی روپۍ نه شو وړلې او صراف حواله راکوی یعنی وړه شان پرچه ولیکی چې فلانی سړی ته دومره رقم ورکړه؟ بینواتوجروا

**المستفتی:** حاجی فضل رحیم باړه... ۳ مئی ۱۹۷۵ء

---

(۱) قال العلامة المرغيناني: ولا يصح السلم عند ابي حنيفة رحمه الله تعالي الا بسبع شرائط جنس معلوم ...ونوع معلوم...وصفة معلومة... ومقدارمعلوم ... واجل معلوم... ومعرفة مقدار رأس المال... تسمية المكان الذي يوفيه فيه اذا كان له حمل ومؤنة... ولا يصح السلم حتي يقبض رأس المال قبل ان يفارقه فيه. (هداية ۹۶،۹۵: ۳باب السلم)

وفي الخلاصة: وفي شرح الشافي السلم عقد جائز بشرائط منها بيان الجنس وبيان النوع وبيان الصفة وبيان القدر واعلام رأس المال وتسليمه قبل الافتراق بالابدان.

(خلاصة الفتاوي مختصراً ۲: ۳ کتاب البيوع، الفصل الاول في السلم)

**الجواب:** واضحه دي وي چې دا معامله سفتجه نه ده، **لعدم الاقراض والاستقراض وخوف الطريق**، بلكې دا اول ذكر شوې سرې خپل وكيل يا شريک ته د كابلي نوټ د وركولو متعلق امر يا اجازت كوي نو دا معامله به عرفا بيع صرف وي.(۱) پس كه د بدلون فيصله د اول ذكر شوې سړي سره شوې وي نو د بيع الكالي بالكالي په وجه به ناجائز وي (۲) اوكه د بدلون فيصله د شريك او وكيل سره كيږي نود كومو علماء كرامو په نزد چې نوټ په ثمن عرفي كې داخل دې نو د اجل د جهالة د وجې نه به فاسد وي (۳) او كوم علماء كرام چې نوټ ته سند حواله وائي د هغوی په نزد به مطلقا ناجائز وي.(۴) **وخيرالاموراوساطها...وهوالموفق**

## دمختلفو ملكونو د نوټونو تبادله اوبيع كې په قرض باندې څه باک نشته

**سوال:** څه فرمائي علماء كرام د دې مسئلې په باره كې چې په بيروني ملكونو كې زيد مثلا عمر ته لس زره رياله وركړه خو زيد د هغې په بدل كې ديرش زره روپۍ وركوي او عمر هغه ته په پاكستان كې د پيسو د ادا كولو

---

۱) قال العلامة المرغيناني: الصرف هو البيع اذا كان كل واحد من عوضيه من جنس الاثمان. (الهداية ۳:۱۰۴ كتاب الصرف)

۲) في المشكوٰة: عن ابن عمر ان النبي ﷺ نهي عن بيع الكالي بالكالي.
(مشكواة المصابيح ۲۴۸ باب المنهي عنها من البيوع، الفصل الثاني)

۳) وقال العلامة المرغيناني: والبيع الي النيروز والمهرجان وصوم النصاري وفطر اليهود اذا لم يعرف المتبايعان ذلک فاسد لجهالة الاجل وهي مفضية الي المنازعة في البيع.
(الهداية ۳:۶۱ كتاب البيوع، باب بيع الفاسد)

۴) في الهندية: وان وجد القدر والجنس حرم الفضل والنساء وان وجد احدهما وعدم الآخر حل الفضل وحرم النساء.
(هندية ۳:۱۱۷ الفصل السادس في تفسير الربا واحكامه)

دپاره یو پرچه ورکوی په کومې پرچې چې په پاکستان کې بنودلو باندې رقم وصولیږي. آیا دا پرچه د اصل روپئ قائم مقام کیدې شي یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: نامعلوم.....**

**الجواب:** دا معامله حواله ده، یعنی د بدلون د وجې نه په عمر باندې دیرش زره روپئ پاکستانی لازم شوې او هغه په حواله کې یو پاکستانی سړي ورکړو او په دې کې هیڅ باک نشته (۱) **لکون النوت ثمناً عرفیاً کالفلوس فلا یحرم النساء فیه(۲) وهوالموفق**

## د بیع سلم نه علاوه په بله بیع کې د مبیع موجل کیدل جائز نه دی

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو غریب او ضرورت مند زمیندار د یو سړي نه پیسې اخلي او د هغې په بدل کې د فصل تیاریدلو نه مخکې دا سودا مقرر کوی چې ګړه به مثلاً په اویا روپئ من اخلم، کله چې فصل تیار شي هغه وخت د ګړې نرخ یو سل لس یا یو سل پنځوس روپئ من وی او هغه سړي ګړه ورکوی او خپله قرضه پوره کوی، آیا دا جائز ده؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: حاجی عبدالرحمن پهتان پهار پور دی آئی خان... ۸ مئی ۱۹۸۴ء**

---

(۱) وفي حاشية شرح الوقاية: واما النوت هو القرطاس الرائجة تحكما فيها مكتوب ثمنه اي عشرة اوعشرون او الف فهومهلک في الروبية علي الصحيح لا نسبة له بالذهب فلا يجوز بيعه بالروبية الا متساويا بما كتب فيه لكن التقابض لا يشترط والتقابض مختصة بالذهب والفضة وهو ليس من هذا. (تكملة عمدة الرعاية علي شرح الوقاية ۳:۸۷ كتاب الصرف)

وفي الهندية: وان عدما حل الفضل والنساء كذا في الكافي.

(فتاوي هندية ۳:۱۱۷ الفصل السادس في تفسير الربا واحكامه)

(۲) د یو ملک په کرنسئ (روپو) کې په خپل مینځ کې بیعه کې صرف تفاضل جائز دی او د مختلفو کرنسو (نوټونو) په مینځ کښې د بیعې په صورت کې فضل او نساء (زیاتوالي او قرض) دواړه قابل د اعتراض نه دی. البته په دواړو صورتونو کې د بیع د صحت دپاره په مجلس د بیع کې د احد البدلین قبضه ضروری ده. (مفتی سیف الله حقانی)

**الجواب:** وعده بهر حال جائز ده او سوا د بیع سلم نه د مبیع موجل کیدل ناجائز دی. فلیراجع الی شرح المجلة ۹۸، المادة ۲۰۵ (۱). (۲) وهوالموفق

## مسلم فیه چې منقطع شي نه پیدا کیږي نو رب المال ته به د فسخ او انتظار اختیار حاصل وي

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید او عمرو عقد سلم وکړو وروستو مسلم الیه په مسلم فیه باندې قدرت بیا نه موندلو نو دا عقد به څنګه وي؟ بینواتوجروا

المستفتي: یکم جمادي الثاني ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** که مسلم فیه منقطع او ورک شي نو رب المال ته اختیار دې چې انتظار وکړي یا عقد فسخ کړي، کما في شرح التنویر، ولوانقطع بعد الاستحقاق خیر رب السلم بین انتظار وجوده والفسخ واخذ راس ماله (هامش رد المحتار ۲۰۵/۴) (۳) وهوالموفق

---

۱) في شرح المجلة: ومن بیع المعدوم علي ما في الدرالمختار بیع ما سیملکه قبل ملکه له الا بطریق السلم. (شرح المجلة ۹۲:۲، المادة: ۲۰۵ بیع المعدوم باطل)

وقال العلامة ابن نجیم: فلم ینعقد بیع مالیس بمملوک له وان ملکه بعده الا السلم. (البحر الرائق ۲۶۰:۵ کتاب البیع)

۲) د سوال مطابق په دې صورت کې د ربوا شبه موجوده ده لهذا ددې اجازت نه شي ورکولې (مفتی سیف الله حقانی)

۳) (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۲۲۸:۴ باب السلم)

وفي الهندیة: واذا لم یقبض حتي فات المسلم فیه وصار مثله غیر موجود لا یبطل السلم عند علمائنا الثلاثة ولکن رب السلم بالخیار ان شاء انتظر الي وقت وجود مثله فیاخذ منه وان شاء لم ینتظر ولم یصبر الي ذلک الوقت واخذ رأس ماله.

(فتاوي عالمگیریة ۱۸۲،۱۸۱:۳ الفصل الثاني في بیان ما یجوز السلم فیه ومالایجوز)

## بیع سلم د فقیر او مالدار دواړو دپاره جائز ده

**سوال:** چه مي فرمائید علماء دین درین مسئله که آں غني که حاجت ندارد به بیع سلم، پس این غني بیع سلم مطابق شروط مذکوره في الفقه کند پس این بیع سلم برائي این غني رواست وجائز است یا ناجائز؟ بینواتوجروا

المستفتي: محمد حسن

**الجواب:** بیع سلم د اغنیاء او فقیرانو دواړو دپاره جائز ده.(۱) ځکه چې څنګه سفر قائم مقام د مشقت دې هم دغه شان نیته قائم مقام د احتیاج او افلاس دې، نو څنګه چې هغه مسافر، چې په هغه باندې په سفر کې مشقت نه وی، قصر کولې شی، هم دغه شان هغه غنی کوم چې نیته وکړی، سلم هم کولې شی.

یدل علیه ما فی تکملة فتح القدیر ۵:۳۳ ولما کان جوازه للحاجة وهی باطنة انیط بأمر ظاهر کما هو المستمر فی القواعد الشرع کالسفر للمشقة ونحوه وهو ذکر الاجل فلم یلتفت بعد ذلك الی کون المبیع معدوما من عند المسلم الیه حقیقة او موجودا قادرا هو علیه فقول المصنف ولو کان قادرا علی السلم لم یوجد المرخص معناه لولم یذکر الاجل، والله تعالی اعلم(۲). وهوالموفق

---

(۱) قال العلامة العیني: وانعقد الاجماع علي جوازه باعتبار الحاجة والضرورة فانه یحتاج الیه الفقیر والغني لان الفقیر ربما لا یکون عنده عین مال یبیعها وینفق علي نفسه فیحتاج الي اخذ السلم والغني یحتاج الي ان ینفق علي نفسه وعیاله فیحتاج الي استرباح.

(البنایة علي هدایة ۱۱ باب السلم)

(۲) (فتح القدیر ۶:۲۱۸ باب السلم)

بسم الله الرحمٰن الرّحیم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاویٰ فریدیه

دوهم جلد

# کتاب الربوا

بسم الله الرحمن الرحيم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاویٰ فریدیه

# کتاب الربوا

قال الله تبارك وتعالىٰ:

وَاَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبٰوا ط

(سورة البقرة)

.........

# كتاب الرّبا ومسائل البنك

## سود گناه نه گڼل او د سود خور د جنازې مونځ او د نکاح وغيره حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې يو مسلمان په سود روپۍ ورکوی د هغې گټه گناه نه گڼی، او د هغې گټه خرچ کول ثواب او خير گڼی بلکې د خپل ځان دپاره ئې د معاش ذريعه گرزولو سره په هغې باندې فخر کوی، ددې سړی حکم به څه وی؟ د نکاح وغيره په باره کې ئې څه حکم دې؟ دې سړی ته که په دې حالاتو کې بغير د توبې نه مرگ راغلو نو د هغه د جنازې څه حکم دې؟ **بينواتوجروا**

**المستفتى:** مولوى كريم الله مقام نارنجى صوابى مردان

**الجواب:** که مستحل نه وی نو فاسق دې او که مستحل وی نو کافر دې او نکاح ئې فاسده شوې ده، فى شرح العقائد : **واستحلال المعصية صغيرة كانت او كبيرة كفر اذا ثبت كونها معصية بدليل قطعى الخ۱۲۰(۱) وبمعناه فى** رد المحتار (۲) او د داسې خلقو سره ترک موالاة ضروری دې. **وهوالموفق**

## بغير د ضرورت نه په بينک کې د پېسو جمع کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په دې زمانه کې زما صرف په بينک باندې اعتماد دې په دې وجه باندې مې بعضې رقم په

---

۱) (شرح العقائد ۱۲۰)

۲) قال العلامة ابن عابدين : اذا اعتقد الحرام حلالا فان كان حرمته لعينه وقد ثبت بدليل قطعي يكفر والا فلا بان تكون حرمته لغيره او ثبت بدليل ظني وبعضهم لم يفرق بين الحرام لعينه ولغيره وقال من استحل حراما قد علم في دين النبي ﷺ تحريمه كنكاح المحارم فكافر. (ردالمحتار ۲:۲۹ مطلب استحلال المعصية القطعية كفر)

بینک کې ایښې دې چې د ضرورت په وخت ئې په آسانۍ سره استعمال کې راولم:

الف: اوس زما د پاره په بینک کې رقم کیښودل کوم حده پورې جائز دی؟

ب: په دې باندې منافع (سود) راځی د هغې اخستل جائز دی یا نه؟ که بینک والو ته ئې پرېږدم نو غوره ده یعنی بغیر د سود نه به زما رقم په بینک کې وی او صرف د اصلی رقم حساب کتاب وکړم. **بینوا توجروا**

**المستفتی**: شمس الرحمن مقام دهو بیان یار حسین .... ۱۷ ستمبر ۱۹۹۶ء

**الجواب**: بغیر د ضرورت نه په بینک کې پیسې جمع کول د **تعاون علی المعصیت** د وجې نه حرام دی (۱) او د جمع کولو د جرم کولو نه پس د هغه سړی د پاره سودی رقم اخستل او په مساکینو باندې بغیر د ثواب د نیت نه تقسیمول د **اهون البلیتین** کیدو د وجې نه غوره دی په نسبت د نه اخستلو (۲) **وهو الموفق**

## د قرض او د بینک په منافع کې فرق نشته

**سوال**: څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې (۱) زما یو دوست د سود تعریف دا کوي چې که یو غریب سړې د یو مالدار نه څه پیسې

---

۱) قال الله تبارک وتعالي: ولا تعاونو علي الاثم والعدوان.
(سورة المائدة، آیت: ۲)

وقال العلامة القاري: (وکاتبه وشاهد یه) قال النووي فیه تصریح بتحریم کتابة المترابیین والشهادة علیهما وبتحریم الاعانة علي الباطل.
(مرقاة المفاتیح شرح مشکوٰة المصابیح ۵۹: ۲ باب الربا)

۲) قال العلامة الحصکفي: والضابط من ابتلي ببلیتین فان تساویا خیر وان اختلفا اختار الاخف. (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۳۰۴،۳۰۳: ۱ قبیل بحث النیة)

وفي شرح المجلة: یختار اهون الشرین.
(شرح المجلة ۷۰: ۱، المادة: ۲۹)

قرض واخلی او هغه امیر سړی ئې په دې شرط باندې ورکوی چې زه به دومره رقم (چه څنګه هغه مقرر کړی) د دې رقم نه علاوه اخلم، نو دې ته سود وائی. مطلب دا دې چې مالدار سړی د غریب د مجبورئ نه ناجائزه فائده اوچته کړې ده.(۲) کوم رقم چې مونږ خلق په بینک وغیره کې جمع کوو او بینک مونږ ته منافع یا سود یعنی د هغې نه زیاتی رقم (مقرر شده) راکوی چونکې بینک خپله مالداره وی او په خپله خوشحالئ سره منافع یعنی سود ورکوی او هغه غریب نه وی بلکې زمونږ په پیسو باندې ګټه کولو سره مونږ ته راکوی، هغه د سود په الفاظو کې نه راځی بلکې هغې ته منافع وائی حال دا چې زما رائې دا ده چې هغه هم سود دې څکه چې مقرر شوې دې، زر جواب راکولو سره مو مستفید کړئ. بینوا توجروا

**المستفتی:** محمد سلیم اعوان نوښار .... ۱۳ اکتوبر ۱۹۷۸ء

**الجواب:** دا دواړه صورتونه یعنی د قرض د وجې نه زیادت اخستل او د بینک منافع په سود کې داخل دی، للاصل المشهور: **کل قرض جر نفعاً فهو ربا** ...(۱) وروی مرفوعاً ایضاً (۲) وهوالموفق

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: (كل قرض جر نفعا حرام) اي اذا كان مشروطا.
(ردالمحتار ۴: ۱۹۴ مطلب كل قرض جر نفعا حرام)

۲) عن علي رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ كل قرض جر منفعة فهو ربا، رواه الحارث بن ابي اسامة واسناده ساقط وله شاهد ضعيف عن فضالة بن عبيد عند البيهقي وآخر موقوف عن عبد الله بن سلام عند البخاري.
(بلوغ المرام من ادلة الاحكام ۲۸۲ رقم حديث: ۸۱۲)

وفي المنهاج: والآن في بيوت الربا البنک، شاع الربا الحكمي وهو الانتفاع بالقرض. قال النبي ﷺ كل قرض جر نفعا فهو ربا اخرجه الحارث بن ابي اسامة عن علي امير المؤمنين وله شواهد كثيرة روي ابن ماجة عن انس مرفوعا بمعناه وروي عن ابي بن كعب وابن عباس وابن مسعود وفضالة بن عبيد وغيرهم موقوفا.
(منهاج السنن شرح جامع السنن ۵: ۲۴ باب ماجاء في الصرف)

## د انسانانو، د کورونو، دکانونو، ګاډو او د ګودامونو د بیمه کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په پاکستان کې مروجه بیمه کمپنۍ چې انسانان، ګاډي، کورونه او ګودامونه بیمه کوی نو آیا دا جائز دی یا ناجائز؟ بینواتوجروا

المستفتي: فضل الله اخيل

**الجواب:** بیمه کول په ګناه باندې کومك او د ملکیت په شرط باندې د معلق کولو د وجې نه حرام دی، قال الله تبارك تعالى: ولا تعاونوا على الاثم والعدوان....[1] والتعليق المذكورهوالمسيرفافهم.[2] وهوالموفق

## د ژوند د بیمه کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په حکومتي سطح باندې د ژوند بیمه کول کوم چې د استیټ لائف په نوم باندې نامدار دې یعنی استیټ لائف انشورنس کارپوریشن آف پاکستان، چې حکومت یا فرد واحد یا بوې اداري ته کوم چې د حکومت وی یا نه وی او یا نیم حکومتی کیدو سره د افرادو نه څه پیسې سالانه، شپږ میاشتې پس، درې میاشتې پس یا د میاشتې په قسطونو کې یا د افرادو د ضروریاتو د وجې نه وصولوی، ترڅو پورې چې، دا فرد یا افراد ژوندی وی نو باقاعدګۍ سره د

---

[1] (سورة المائدة، آیت: ۲)

[2] وفي حاشية شرح الوقاية :فبطل الكفالة التي اخترعها اليور بين ويسمونها (بيمه) تفسيرها يأخذون المال من رجل قدرا معينا ويشرطون عليه ان مالک او نفسک او دارک اومر کبک البحري ان هلک في حادثة كذا وكذا فانا ضامن باداء القيمة ان كان مالا وباداء قدر معين ان كان نفسا ومثل ذلک من الشروط الواهية والامان بما لا يد عليها لهم فهو باطل وما حصل منه او لا وآخرا فهو باطل لا صحة لها.

(تکملة عمدة الرعاية علي شرح الوقاية ۹۸:۳ کتاب الکفالة)

قسطونو په صورت کې هغه پيسې جمع کوي خو که الله پاک مه کړه هغه فرد يا افرادو کې څوک بيمې والا طبعي يا حادثاتي مرګ باندې مړ شي نو د بيمې هغه پيسې د هغه وارث يا د هغه وارثانو ته چې د هغې تعين دبيمې ژوند د بيمې په کاغذونو کې کوم چې د دې بيمه دار يا د دې بيمه دارانو د طرف نه مقرر کړې شوې وي، ادا کولې شي، دا قسطونه د يوې خاص مودې دپاره وي که ژوند په بيمه کې شامل فرد يا افراد ژوندي پاتې شي، نو هغه ته يا هغوي ته هغه پيسې، چې د کوم دپاره بيمه کړې شوې وي د دې مودې په اختتام باندې ملاويږي او که د اختتام نه مخکې په مقرر موده کې هغه بيمه دار وفات شي نو وارثانو ته ملاويږي دا کتاب هم ددې په باره کې درليږم مهرباني وکړئ شرعي حکم بيان کړئ؟ **بينواتوجروا**

المستفتي: خليل الرحمن انور صوابي.... ۲ مارچ ۱۹۸۵ء

**الجواب:** بيمه حرام ده.(۱) دا سود خورو خلقو د انساني خيرخواهئ په صورت کې د مال د حاصلولو نوې دام ايښې دې، دا خلق د خپل جيب نه هيڅ

---

۱) وفي حاشية شرح الوقاية: فبطل الكفالة التي اخترعها اليور بين ويسمونها (بيمه) تفسيرها ياخذون المال من رجل قدرا معينا ويشترطون عليه ان مالک او نفسک او دارک او مرکبک البحري ان هلک في حادثة كذا وكذا فانا ضامن باداء القيمة ان كان مالا وباداء قدر معين ان كان نفسا ومثل ذلک من الشروط الواهية والامان بما لا يد عليها لهم فهو باطل وما حصل منه او لا وآخر فهو باطل لا صحة لها.
(تكملة عمدة الرعاية علي شرح الوقاية ۳:۹۸ حاشيه نمبر ۱، كتاب الكفالة)

وقال الدكتوروهبة الزحيلي: اما التامين التجاري او التامين ذوالقسط الثابت فهو غير جائز شرعا وهو رأي اكثر فقهاء العصر وهو ما قرر المؤتمر العالمي الاولي للاقتصاد الاسلامي في مكة المكرمة عام (۱۳۹۶ه/۱۹۷۶ء) وسبب عدم الجواز يكاد ينحصر في امرين هما الغرر والربا... الي ان قال بعد الورقتين والخلاصة يشتمل التامين ذي القسط الثابت علي خمسة اسباب تجعله حراما: الربا، الغرر، الغبن، القمار، الجهالة.
(الفقه الاسلامي وادلته ۵:۳۴۲۳،۳۴۲۸ موقف الفقه الاسلامي من التامين)

هم ورکول نه غواړی بلکې د بیمه دارو په مالونو باندې سودی معاملات کولوسره کمپنی هم چلوی اوبیمه داران هم باقاعده خوشحاله ساتی. وهوالموفق

## سودی رقم د سودی قرضې په بدل کې د ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ۱: آیا د سود پیسې د بینک نه واخستلې شی او که په بینک کې پرېښودلې شی؟ که واخستلې شی نو په کوم ځای کې خرڅ کړې شی؟

۲: که د یو بینک نه پیسې په سود باندې اخستلې شوې وی او په بل بینک کې د دې مقروض رقم ډیپازټ (بندي) وی نو آیا د مقروض سودی رقم، د دې رقم د سود کوم چې په بل بینک کې ډیپازټ (بندي) دې کې مجره (حساب) کیدې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: الحاج محمد عمر ..... ۵ مئی ۱۹۷۶م

**الجواب:** واضحه دې وی چې بغیر د ضرورت شرعی نه په بینک کې پیسې جمع کول د ګناه په کار باندې د مدد د وجې نه حرام دی. (۱) خو د جمع کولو (که د ضرورت د وجې نه وی او که بغیر د ضرورت نه وی) دې سودی رقم لره اخستل او په مسکینانو او طالبانو باندې بغیر د قصد د ثواب نه خرچ کول ښه او اهون دی په نسبت د نه اخستلو. (۲) بله دا چې د سودی پیسو د وصولولو نه مخکې د سودی قرضې په سود کې مجره (حساب) کول د تولو نه غوره دی. وهوالموفق

---

۱) قال الله تعالي: ولا تعاونوا علي الاثم والعدوان. (سورة المائدة آیت: ۲)

وقال العلامة القاري: (وكاتبه وشاهديه) قال النووي فيه تصريح بتحريم كتابة المترابيين والشهادة عليهما وبتحريم الاعانة علي الباطل.

(مرقاة المفاتيح شرح مشكواة المصابيح ۶:۵۹ باب الربا)

۲) وقال العلامة الحصكفي: والضابط ان من ابتلي ببليتين فان تساويا خير وان اختلفا اختار الاخف. (الدر المختار علي هامش ردالمحتار ۱:۳۰۳،۳۰۴ قبيل بحث النية)

وفي شرح المجلة: يختار اهون الشرين. (شرح المجلة ۱:۷۰، المادة: ۲۹)

## د بینک د موجوده نظام شراکت حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې بغیر د سود نه د بینکارئ نفع اخستل حلال دی او که حرام؟ څکه چې د فرورئ نه مې اووۀ زره روپئ بغیر د سود په بینکارئ کې دی او اوس زه په پریشانئ کښې یم چې د بینک نه کومه نفع حاصل شوې ده هغه واخلم او که نه؟ د پیسو تقریبا یو نیم کال کیدو والا دې. **بینواتوجروا**

**المستفتی:** حاجی سید زمان شمالی وزیرستان..... یکم جمادی الاول ۱۴۰۴ھ

**الجواب:** دا موجوده نظام شرکت په ظاهر کې قابل اعتراض نه دې د دې نه حاصله شوې گټه حلاله ده. (۱)، (۲) **وهوالموفق**

## د زرگر د ایرې د خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د زرگر په دکان کې یوه کنده ده مونږ په هغې کې دننه مابنام دکان صفا کولو سره گندگی وغیره اچوو درې څلور میاشتې پس یو ماهر راځی هغه د دې کندې نه یو موټې اوچتولو سره بیع کوی چې مثلا کنده په پنځه زره روپئ باندې، نو بیا مونږ د طاقت مطابق څه سرۀ زر هم ورکوو. بیا هغه دې لره صفا کوی او رقم ادا کوی، کله هغه ته نفع ملاویږی او کله نقصان، مهربانی وکړئ د دې سوال جواب مونږ ته ولیکئ. **بینواتوجروا**

**المستفتی:** نامعلوم......... ۷ فروری ۱۹۸۸ء

---

۱) قال العلامة المرغيناني: الشركة جائزة لانه ﷺ بعث والناس يتعاملون بها فقر رهم عليه. (هداية ۲:۶۲۴ كتاب الشركة)

۲) د بینك ذمه دارانو ته بار بار د مراجعت نه ماته دا معلومه شوې ده چې د بینك د شرکت معامله د سودی معاملې په شان ده، لهذا ددې د منافعو نه خپل ځان بچ کول پکاردی. (مفتی سیف الله حقانی)

**الجواب:** کله چې دا قیمت سرهٔ زر نه وی، روپئ وی نو بیا ناجائز نه دی (بلکې جواز لري). (۱) وهوالموفق

## ایجنټ ته پیشگي رقم ورکول او په وخت د ضرورت کې بینک کې اکاؤنټ پرانستل

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ایجنټ ته پیشگي پیسې ورکول دغه شان په بینک کې اکاؤنټ خلاصول څنګه دی؟ بینواتوجروا

المستفتي: مفتي مختار الدين کربوغه شريف ... ۳۰ جمادي الثاني ۱۳۹۰هـ

**الجواب:** ایجنټ ته ټول یا بعض رقم په طور د پیشگي ورکول یا د ضرورت د وجې نه په بینک کې اکاؤنټ خلاصولو کې رخصت دې، ممنوع نه دی. (۲). (۳) وهوالموفق

---

(۱) وفي الهندية: لو اشتري تراب ذهب بذهب او تراب فضة بفضة لا يجوز الا اذا علم ان ما فيه مثل ما يعطي ... ولو اشتراه بثوب او بعرض من العروض فالشراء جائز ولا يراعي فيه شرائط الصرف. (فتاوي عالمگيرية ۳: ۲۲۶، ۲۲۷، الفصل الرابع في الصرف المعادن وتراب الصواغين)

(۲) قال العلامة ابن عابدين: ولو اعطاه الدراهم وجعل ياخذ منه كل يوم خمسة امناء ولم يقل في الابتداء اشتريت منک يجوز وهذا حلال وان كان نيته وقت الدفع الشراء لانه بمجرد النية لا ينعقد البيع وانما ينعقد البيع الآن بالتعاطي والآن المبيع معلوم فينعقد البيع صحيحا. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۴: ۱۴ قبيل مطلب في بيع الاستجرار)

قال العلامة ابن نجيم: الضرورات تبيح المحظورات.

(شرح الاشباه والنظائر ۱: ۲۷۵ القاعدة الخامسة الضرر يزال)

وقال العلامة الجصاص: (حرمت عليكم الميتة) الي آخر ما ذكرتم ثم خص من ذلک حال الضرورة وابان انها غير داخلة في التحريم وذلک عام في الصيد في حال الاحرام وفي جميع المحرمات.

(احكام القرآن للجصاص ۱: ۳۱۲ قبيل مطلب اسم الطيبات يطلق علي الحلال وعلي المستلذ)

(۳) خود پیشگئ په وجه د قیمت د کمولو گنجائش نشته (امداد) او منافع په خپله د استعمالولو هم گنجائش نشته (مفتی سیف الله حقانی)

## د بینک د جوړولو دپاره ځمکه ورکول او د هغې کرایه وصولول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په دې ملک کې د بینک دپاره ځمکه ورکول او د حکومت نه د هغې کرایه وصولول څنګه دی؟ په شریعت کې د دې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

**المستفتی:** حافظ پادشاه ګل.......۸ فروری ۱۹۷۵ء

**الجواب:** چونکې د بینک کرایه خالص د سودی پیسو نه ورکولې شی لهذا د هغې اخستل او ورکول به حرام وی. لان حکم الربوا هو الفسخ او التصدق بلا قصد الثواب.(۱) او که بالفرض د نور مال نه دا کرایه ورکړې شی نو بیا هم حرامه ده.

لانه نظیر عصر العنب علی قصد الخمرية وهو غير جائز كما فی ردالمحتار ۳۴۵:۵(۲) فكذلك بناء البيت على قصد الربوا وايضا هذا ايجاد في البلاد التي ظهر فيها شعائر الاسلام فيكون حراما كما يدل عليه ما في الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۳۴۶:۵ فليراجع(۳). وهو الموفق

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: لان سبيل الكسب الخبيث التصدق اذا تعذر الرد علي صاحبه. (ردالمحتار ۲۷۳:۵ فصل في البيع، كتاب الحظر والاباحة)

۲) قال العلامة ابن عابدين: (قوله لا عصرها لقيام المعصية بعينه)... ولعل المراد هنا عصر العنب علي قصد الخمرية فان عين الفعل معصية بهذا القصد.
(ردالمحتار ۲۷۷:۴ فصل في البيع، كتاب الحظر والاباحة)

۳) قال العلامة الحصكفي: (و) جاز (اجارة بيت بسواد الكوفة) اي قراها (لابغيرها علي الاصح) واما الامصار وقري غير الكوفة فلا يمكنون لظهور شعار الاسلام فيها.
(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۲۷۷،۲۷۸:۵ فصل في البيع، كتاب الحظر والاباحة)

## بغیر د ضرورت نه په سودی معاملاتو کې پریوتل حرام دی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سوداګر د میل (کارخانې) نه مال اخستل غواړی خو میل (کارخانې) والا هغه ته وائی چې مونږ به په تا باندې هغه وخت اعتماد کوو (یعنی قرض مال به درکوو) کله چې تاسو د یو بینک ضمانت (ګارنټی) مونږ ته راکړئ، سوداګر کله چې د بینک سره رابطه وکړه نو د بینک والو جواب ورکړو چې د څومره روپو د ضمانت تاسو ته ضرورت وی نو په هغې کې ۱/۴ حصه نقدی مونږ سره جمع کړئ، د باقی دپاره د خپل جائیداد سرټیفیکیټ جوړولو سره مونږ ته حواله کړه چې د دیوالیه یا د نقصان په صورت کې مونږ ستاسو د جائیداد نه د خپل ضمانت پیسې وصول کړې نو د دې نه پس به مونږ ستاسو دپاره د ملز ضمانت (ګارنټی) درکوو او د دې ضمانت (ګارنټی) د مالیت په تناسب سره هر کال ستاسو نه د ضمانت په عوض کې کمېشن هم اخلو داسې ضمانت ورکولو سره د ملز نه مال اخستل او خرڅول جائز دی یا نه؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی:** نامعلوم...۶ جون ۱۹۷۶ء

**الجواب:** بغیر د ضرورت شرعی نه په سودی معاملاتو کې پریوتل حرام دی، د داسې معاملاتو نه ځان ساتل ضروری دی. (۱) حلال کول پکار دی اګر که لږه وی. (۲) **وهوالموفق**

---

(۱) وفي المرقاة: (عن جابر قال لعن رسول الله ﷺ آكل الربا ومؤكله)... قال الخطابي: سوّي رسول الله ﷺ بين آكل الربا ومؤكله اذ كل لا يتوصل الي اكله الا بمعاونته ومشاركته فهما شريكان في الاثم... والضرورة لا تلحقه بوجه في ان يؤكله الربا لانه قد يجد السبيل الي ان يتوصل الي حاجته بوجه من وجوه المعاملة والمبايعة ونحوها... (وكاتبه وشاهديه وقال هم سواء).

(مرقاة المفاتيح شرح مشكواة المصابيح ۶:۵۹ باب الربا)

(۲) عن ابي هريرة رضي الله تعالي عنه قال: قال رسول الله ﷺ... [بقيه بر صفحه آئنده...

## په جي پي فنډ باندې اضافه سود نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې جي پي فنډ کوم چې گورنمنټ (حکومت) لازما کټ کوی په هغې باندې چې کوم سودی (منافع) راځی د هغې اخستل او په خپل ذاتی کاروبار کې استعمالول څنگه دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: شمس الرحمن مقام دهو بیان یار حسین......۲۹ شعبان ۱۴۰۶ھ

**الجواب:** چونکې جي پي فنډ د قبض کولو نه مخکې کټ کولې شی لهذا په دې باندې په سود د بینک والو طرف ته منسوب وی نه د ملازم طرف نه (۱) لهذا د ملازم دپاره به دا منافع ورکړه شمارلې کیږی، د دې اخستل او ذاتی کاروبار کې استعمالول جائز دی. (۲) وهوالموفق

## په بینکونو کې د موجوده نفع او نقصان کهاته مضاربت نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې نن صبا په بینکونو کې د شراکت په نوم باندې چې کومې کهاتې لیکلې شوې دی هغې ته د مضاربت نوم ورکولې شی او خلق په دې نوم باندې پیسې جمع کوی نو آیا د مضاربت دا صورت جائز دی یا ناجائز؟ بینواتوجروا

المستفتی: عمر علی تحصیل صوابی ضلع مردان......۲۴ محرم ۱۴۰۳ھ

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] ان الله طیب لا یقبل الا طیبا وان الله امرالمؤمنین بما امر به المرسلین فقال یا یها الرسل کلوا من الطیبات واعملوا صالحا، وقال تعالی: یا یها الذین امنوا کلوا من طیبات ما رزقنکم. (مشکوة المصابیح ۲۴۱:۱ باب الکسب وطلب الحلال)

۱ ﴾ قال العلامة الحصکفي: هو شرعا (فضل خال عن عوض بمعیار شرعي) وهو الکیل والوزن (مشروط) ذلک الفضل (لا حد المتعاقدین) اي بائع او مشتر (في المعاوضة). (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۴: ۱۹۷،۱۹۶ باب الربا)

۲ ﴾ قال الشیخ المفتي محمد شفیع: په زبردستئ سره په پرائیویډنټ فنډ باندې چې کوم د سود په نوم سره رقم ملاویږی هغه شرعاً سود نه دې بلکه د اجرت (تنخواه) یوه برخه ده. (پرا یویډنټ فنډ باندې د زکواة او د سود مسئله ۴)

**الجواب:** که په دې معامله کې د شرکت شرطونه موجود وی نو دا معامله جائز ده.(١) او د مضاربت شرطونه په دې معامله کې موجود نه دی په دې وجه دا معامله مضاربت نه دې. **وهوالموفق**

## سودی پیسې اخستل په نسبت د نه اخستلو غوره دی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی په بینک کې پیسې جمع کړی دی او که دا سړې سود نه اخلی نو بینک والا به سود اخلی او په خپل کار به ئې راولی او که رب المال دا سود واخلی او په غریبانانو ئې تقسیم کړی نو د دې حدیث ﴿ لعن رسول الله ﷺ اکل الربآ ومؤکله الخ ﴾ کوم چې په مشکاة ص۲۴۳ باندې لیکلې دې، د لاندې راځی تاسو تفصیلی جواب راکړئ. **بینواتوجروا**

المستفتی: نامعلوم

**الجواب:** د دې سړی دپاره سودی رقم اخستل او په فقیرانو او طالبانو کې بغیر د قصد د ثواب نه تقسیمول په نسبت د نه اخستلو غوره دی. **لاصل المشهوروهوان من ابتلی بین البلیتین فلیتخراهونهما.(٢)**

---

١ ﴾ قال العلامة المرغيناني : الشركة جائزة لانه ﷺ بعث والناس يتعاملون بها فقررهم عليه... الضرب الثاني شركة العقود وركنها الايجاب والقبول وهو ان يقول احدهما شاركتک في كذا وكذا ويقول قبلت وشرطه ان يكون التصرف المعقود عليه عقد الشركة قابلا للوكالة ليكون ما يستفاد بالتصرف مشتركا بينهما فيتحقق حكمه المطلوب منه. (هداية ٢:٦٢٤ كتاب الشركة)

وفي الهندية ؛ وشرط جواز هذه الشركات كون المعقود عليه عقد الشركة قابلا للوكالة وان يكون الربح معلوم القدر... وان يكون الربح جزأ شائعا في الجملة لا معينا. (فتاوي عالمگيرية ٢:٣٠٢ الباب الاول في بيان انواع الشركة واركانها وشرائطها)

٢ ﴾ وقال العلامة الحصكفي ؛ والضابط ان من ابتلي ببليتين فان تساويا خير وان اختلفا اختار الاخف. (الدرالمختار ١:٣٠٣،٣٠٤ قبيل بحث النية)

وفی شرح المجلة ۲۲ م: ۲۹ یختار اهون الشرین (۱) او د دې مسکین وغیره دپاره د دې اخستل بغیر د کراهت نه جائز دی. لانه لما لم یمکن الایصال الی المالك ولم یجز الاکل لتقریر المعصیة جاز التصدق للضرورة لان رسول الله ﷺ نهی عن اضاعة المال (۲) وفی شرح الاشباه والنظائر ۱۱۶ وینبغی ان یستثنی الاخذ بالربا للمحتاج فانه لا یحرم کما صرح به المصنف فی البحر ویحرم علی الدافع الاعطاء بالربا (۳). وهو الموفق

## د زرعی بینکونو نه د قرضې اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د زرعی بینکونو نه د قرضې اخستلو په باره کې د شریعت څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: سید حسن........ ٤ اپریل ۱۹۷٦ء

**الجواب:** سودی قرضه اخستل حرام دی که د هر چا نه وی. (۴) وهو الموفق

---

۱) (شرح المجلة ۱:۷۰، المادة:۲۹)

۲) عن المغیرة بن شعبة رضي الله عنه قال: قال النبي ﷺ ان الله حرم علیکم عقوق الامهات... وکره لکم قیل وقال وکثرة السوال واضاعة المال.

(الصحیح البخاري ۱:۳۲۴ باب ماینهي عن اضاعة المال، کتاب في الاستقراض)

۳) شرح الاشباه والنظائر للحموي ۱:۴۴۹ القاعدة الرابعة عشرة ماحرم اخذه حرم اعطاؤه)

٤) قال العلامة ابن عابدین: (قوله کل قرض جر نفعا حرام) اي اذا کان مشروطا.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۴:۱۹۴ مطلب کل قرض جر نفعا حرام)

وفي المنهاج: والآن في بیوت الربا البنک، شاع الربا الحکمي وهو الانتفاع بالقرض، قال النبي ﷺ کل قرض جر نفعا فهو ربا اخرجه الحارث بن ابي اسامة عن علي امیر المؤمنین وله شواهد کثیرة روي ابن ماجة عن انس مرفوعا بمعناه وروي عن ابي بن کعب وابن عباس وابن مسعود وفضالة بن عبید وغیرهم موقوفا.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ۵:۲۴ باب ماجاء في الصرف)

## د بینک د ملازمت حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په بینک کې ملازمت کول څنګه دی؟ او دا معاونت په سود کې داخل دې یا نه دې؟ که داخل وی نو دا نوکری حرامه ده که حلاله؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم ...... ۹ جنوری ۱۹۷۵ء

**الجواب:** چونکې په دې ملازمت کې اعانت علی المعصیت موجود دې.(۱) لهذا دا ملازمت حرام دې.

قال الله تعالی: ولا تعاونوا علی الاثم والعدوان(۲)، وعن جابر رضی الله عنه قال لعن رسول الله ﷺ آکل الربا ومؤکله وکاتبه وشاهدیه وقال هم سواء رواه مسلم (مشکوٰة ۲۴۳ باب الربوا) (۳)

خو د عوامو دپاره مناسب دی چې اول د جائز ملازمت کوشش وکړی او د دې نه پس دې د دې ناجائز ملازمت نه استعفا ورکړی. لئلا یقع فی اشد حرمة. وهو الموفق

## د ډاکخانې په ذریعه د سود حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې حکومت پاکستان یو سکیم راویستلې وو چې یو سړې په ډاکخانه کې روپۍ که هر څومره مقدار کې جمع کړی هغه نه به په ۷۲ء کې ډبل کولو سره ورکولې

(۱) قال العلامة القاري: (وکاتبه وشاهدیه) قال النووي فیه تصریح بتحریم کتابة المترابیین والشهادة علیهما وبتحریم الاعانة علي الباطل.
(مرقاة المفاتیح شرح مشکوٰة المصابیح ۶:۵۹ باب الربا)

(۲) (سورة المائدة آیت: ۲)

(۳) (مشکوٰة المصابیح ۱:۲۴۴ باب الربا)

شی، بیا مثلا زید هغه پیسې جمع کړې، اوس ۱۹۷۲ء راتلونکې دې نو دبل پیسې واخستلې شی یانه؟که واخستلې شی نوهغه په خپل کارکې خرچ کول پکاردی یا نه؟ که نه شی خرچ کولې نو باید چېرته خرچ کړې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: غلام الله پنو عاقل ضلع سکهر ....۲۲ ستمبر ۱۹۷۵ء

**الجواب:** دا زیاتی رقم اخستل حرام دی.(۱) او سود خوری ده خو د دې اخستل او په فقیرانو او طالبانو باندې بغیر د ثواب د نیت نه تقسیمول اهون او افضل دی په نسبت د نه اخستلو. (۲) وهوالموفق

## سودی پیسو سره څه وکړې شی؟

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې که د یو کس پیسې په بینک کې جمع وی نو په دې باندې چې کوم سود حکومت ورکوی نو د هغه سرې دپاره څه حکم دې. آیا دا سود د بینک نه واخلی او په فلاحی کارونو کې ئې خرچ کولې شی او که د بینک والو سره ئې پریږدی؟ ځکه چې بعض علماء کرام وائی چې هغه سود د بینک والا نه نۀ دی اخستل پکار او هم په بینک کې دې پریږدی، او بعض علماء وائی چې د بینک نه اخستل ضروری دی خو د عام مسلمانانو په فوائدو کښې خرچ کول ضروری دی؟ بینواتوجروا

**الجواب:** واضحه دې وی چې دا سودی پیسې اخستل هم گناه ده او اهل

---

۱ ﴾ قال العلامة ابن عابدين : (قوله كل قرض جر نفعا حرام) اي اذا كان مشروطا. (ردالمحتار ۴:۱۹۴ مطلب كل قرض جر نفعا حرام)

۲ ﴾ قال العلامة الحصكفي : والضابط ان من ابتلي ببليتين فان تساويا خير وان اختلفا اختار الاخف. (الدرالمختار ۱:۳۰۳،۳۰۴ قبيل بحث النية)

وفي شرح المجلة : يختار اهون الشرين.

(شرح المجلة ۱:۷۰، المادة: ۲۹)

بینک سره پرېښودل ئې هم ګناه ده،

اما الاول فظاهر لانه آكل الربا(۱) واما الثاني فلانه ايتاء المال لا على وجه التصدق وحكم المال الحرام التصدق اذا لم يعلم اربابه كما صرحوا به(۲)

نو د پرېښودلو په نسبت ئې اخستل او بغیر د ثواب د نیت نه په غریبانانو باندې خرچ کول اهون البليتين دی.

لما قالوا من ابتلى بين البليتين فان تساويا خيروان اختلفا اختار الاخف، (شرح التنوير على هامش ردالمحتار ۱:۳۸۳)(۳). وهوالموفق

## په سود کې هر قسم معاونت حرام دی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې:

۱: د بینک د ملازم تنخواه حرامه ده.

---

۱) قال الله تعالىٰ: واحل الله البيع وحرم الربوا.
(سورة البقرة آيت: ۲۷۵)

وعن جابر رضي الله عنه قال: لعن رسول الله ﷺ آكل الربا ومؤكله وكاتبه وشاهديه وقال هم سواء رواه مسلم.
(مشكوة المصابيح ۲۴۴:۱ باب الربا)

۲) قال العلامة ابن عابدين: والحاصل انه ان علم ارباب الاموال وجب رده عليهم والا فان علم عين الحرام لا يحل له ويتصدق به بنية صاحبه وان كان مالا مختلطا مجتمعا من الحرام ولا يعلم اربابه ولا شيئا منه بعينه حل له حكما والاحسن ديانة التنزه عنه.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱۴۶:۴ مطلب فيمن ورث مالا حراما)

۳) (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۳۰۳:۱، ۳۰۴ قبيل بحث النية)

وفي شرح المجلة: يختار اهون الشرين.
(شرح المجلة ۷۰:۱، المادة: ۲۹)

۲: که تاسو د سوه نه قلار نه شوئ نو د الله پاک او د رسول ﷺ جنگ ته تیار شئ.۳: سود کونکي داسي دي لکه بدکار.

۴: سود کولو والا، لیکلو والا او شاهدی ورکونکي ټول په ګناه کي سره برابر دی، که واقعی د دي خبرو دائره اختیار یا دارو مدار د هغه په ملازم باندي دي یعنی هغه هم په دي لویه ګناه کي برابر شریکیدلي شی، چونکي په دي خبره باندي هر مسلمان پوهیږی چي سود حرام دي خو د بینک ملازم خپله سود نه خوری، خو دا خبره ده چي سود وغیره لیکل غواړی، که واقعی د هغه تنخواه په سود کي شاملیدو سره حرام وی نو ماته دي په تفصیل سره وویل شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: ولی عهد تحصیل بټګرام ضلع هزاره

**الجواب:** جناب عالی! په سود کي هر قسم معاونت حرام دي.(۱) لهذا تاسو د بل ملازمت دپاره کوشش وکړئ او کله چي بل ملازمت ملاؤ شی نو د دي نه استعفی ورکړئ. وهوالموفق

## په امانت باندي د سود راتلو په صورت کي د مالک د طرف نه د هغي مطالبه کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دي مسئلي په باره کي چي د زید پیسي د بکر سره وي، بکر هغه پیسي په بینک کي په سیونګ کهاته کي جمع کړي، چي په هغي باندي پنځه زره روپئ سود راغلو، زید چي کله ملک ته واپس

---

(۱) قال الله تعالیٰ: ولا تعاونوا علي الاثم والعدوان.
(سورة المائدة آیت: ۲)
وقال العلامة القاري: (وكاتبه وشاهديه) قال النووي فيه تصريح بتحريم كتابة المترابيين والشهادة عليهما وبتحريم الاعانة علي الباطل.
(مرقاة المفاتيح شرح مشكوٰة المصابيح ۶:۵۹ باب الربا)

راغلو نو بکر هغه ته اصل پیسې ورکړې او سود ئې خپل ځان سره وساتلو او سوچ ئې وکړو چې دا پیسې زما د وجې نه راغلې دی نو هغه ته ئې ولې ورکړم؟ او په غریبانانو ئې تقسم کړې، اوس زید د دې سودی پیسو مطالبه کولې شی یا نه؟

المستفتی: عزت خان ګورسک ګلې سوات......۲۰ مارچ ۱۹۸۵ء

**الجواب:** دا سودی رقم به بکر په مسکینانو باندې تقسیموی.(۱) زید ته سوا د خپل رقم نه په نور رقم باندې حق نشته. والله اعلم بالصواب

## بینکونو سره د لین دین نه کولو په شرط باندې د نفع او نقصان د ادارو سره د کاروبار کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یوه اداره داسې کاروبار کوی چې په هغې کې د ګټې او تاوان دواړو احتمال دې نو په هغې کې پیسې جمع کولو سره د هغې ګټه اخستل جائز دی یا نه دی؟ او دا ادراه د بینکونو سره هم لین دین کوی که د پیسو د جمع کولو په وخت هغه سړی د دې ادارې سره دا شرط کیږدی چې زما پیسې بینکونو سره په لین دین باندې مه استعمالوئ او یا دا چې کله ماته منافع راکوئ نو دهغه منافع نه ئې مه راکوئ کوم چې د بینک د لین دین نه حاصل شوې وی یعنی په کوم کې چې د سود شبهه وی نو بیا دا منافع اخستل جائز دی یا نه؟ مهربانی وکړئ د دې مسئلې په باره کې په تفصیل سره بیان وکړئ. جزاك الله خیرا

المستفتی: غلام قادر عفی عنه نرګس بنګله مردان......۶ رجب ۱۳۹۳ء

---

(۱) قال العلامة ابن عابدين: والحاصل انه ان علم ارباب الاموال وجب رده عليهم والا فان علم عين الحرام لا يحل له ويتصدق به بنية صاحبه.
(ردالمحتار ۴:۱۴۶ مطلب فيمن ورث مالا حراما)

**الجواب:** غوره دا ده چې په داسې اداره کې پیسې جمع نه کړې شی څکه چې دا خلق د دې شرطونو پابندی نه کوی.(۱) خو که د دې شرطونو د منلو نه پس پیسې جمع کړې شی نو هیڅ باک نشته، خو یاد ساتئ که تاسو د پیسو د ورکولو په وخت د منافع تعین وکړو مثلا سالانه پنځه فیصده نو دا به ناجائز وی. (۲) ولن یصلح العطاء ما افسده الدهر. وهو الموفق

## د سودی رقم مصرف

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی په حبیب بینک کې یا نورو بینکونو کې پیسې جمع کړی دی، د دې پیسو سود غریب مسلمان یا محتاج وغیره په خپل استعمال کې راوستلې شی یا نه؟ یا مالک د سود پیسې بینک ته پرېږدی نو څه حکم لري؟ بینوا توجروا

المستفتی: ماستر فضل رحیم .... ۱۲ فروری ۱۹۷۴ء

**الجواب:** بغیر د ضرورت شرعی نه په بینک کې پیسې جمع کول حرام دی اگر چې بغیر د سود نه وی، لکونه تعاونا علی المعصیة(۳) او د جمع کولو نه

---

۱) وفي المشکوٰة: وعن النعمان بن بشير قال: قال رسول الله ﷺ الحلال بين والحرام بين وبينهما مشتبهات لا يعلمهن كثير من الناس فمن اتقي الشبهات استبرأ لدينه وعرضه ومن وقع في الشبهات وقع في الحرام. (مشکوٰة المصابيح ۱:۲۴۱ باب الكسب وطلب الحلال)

۲) وفي الهندية: وشرط جواز هذه الشركات... وان يكون الربح معلوم القدر... وان يكون الربح جزأ شائعا في الجملة لا معينا.

(فتاوي عالمگيريه ۲:۳۰۲ الباب الاول في بيان انواع الشركة واركانها وشرائطها)

۳) قال الله تعالیٰ: ولا تعاونوا علي الاثم والعدوان. (سورة المائدة آیت: ۲)

وقال العلامة القاري: (وكاتبه وشاهديه) قال النووي فيه تصريح بتحريم كتابة المترابيين والشهادة عليهما وبتحريم الاعانة علي الباطل.

(مرقاة المفاتيح شرح مشکوٰة المصابيح ۶:۵۹ باب الربا)

پس د دې زياتي پيسو اخستل او په مساکينو باندې بغير د ثواب د نيت نه صدقه کول اهون البليتين دي.(۱) فقط والسلام وهوالموفق

## د تعاونی پیسو اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د تعاونی پیسې اخستل جائز دی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: فضل محمود مردان

**الجواب:** په تعاونی پیسو کې د څه مودې نه پس د سود ورکولو شرط وی لهذا دا هم په سود کې داخل دی.(۲) وهوالموفق

## د بینک تعمیر، چوکیداری او چپړاسی جوړیدلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د سړی دپاره د بینک تعمیر، د هغې څوکیداری یا د مزدوری وغیره کار کول صَحیح دی یا نه ؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولوی تاج محمد..........٤مئ ۱۹۹٦ء

---

(۱) قال العلامة الحصكفي :والضابط ان من ابتلي ببليتين فان تساويا خير وان اختلفا اختار الاخف. (الدرالمختار ۳۰۳،۳۰۴ :۱ قبيل بحث النية)

وفي شرح المجلة : يختار اهون الشرين. (شرح المجلة ۱:۷۰، المادة: ۲۹)

(۲) وقال العلامة ابن عابدين : (قوله كل قرض جر نفعا حرام).

(ردالمحتار ۱۹۴ :۴ مطلب كل قرض جر نفعا حرام)

وفي المنهاج قال النبي ﷺ كل قرض جر نفعا فهو ربا اخرجه الحارث بن ابي اسامة عن علي امير المؤمنين وله شواهد كثيرة.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ۲۴ :۵ باب ماجاء في الصرف)

**الجواب:** د تعاون علی المعصیت د وجې نه به دا ټول امور مکروه تحریمی وی. (۱) وهوالموفق

## په نوټونو باندې سرهٔ او سپین زر اخستل بیع صرف نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې دلته د سرو زرو سوداګر سرهٔ زر خلکو ته په قرض باندې ورکوی نن صبا په جاری نوټونو باندې د قرض څه حکم دې؟ په مبسوط کې یو عبارت راځی چې ګوتمه یا بغیر د غمی والا ګوتمه د څه معین مقدار پیسو په بدله کې واخلی په داسې حال کې چې پیسې دهغه سره موجودې نه وی نو هغې ته به صحیح ویلې شی، اګر چې د بیلتون نه مخکښې دواړه قابض شوې وی یا نه. په دې وجه دا په حقیقت کې بیع صرف نه ده لهذا په دې عبارت کې لیکلې شوې پیسو او موجوده کرنسئ کې څه فرق شته دې یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: حاجی در محمد ابو ظهبی......۱۴۰۱ھ

**الجواب:** نوټ نه سرهٔ زر دی او نه سپین زر بلکې د فلوس په شان ثمن عرفی دې او یا وثیقه نامه ده. (۲) پس بهر حال په نوټ باندې سرهٔ یا سپین زر اخستل بیع صرف ګڼل د منلو قابل نه دی. وهوالموفق

---

۱ ﴾ قال الله تعالیٰ: ولا تعاونوا علي الاثم والعدوان.
(سورة المائدة آیت: ۲)
وقال العلامة القاري: (وكاتبه وشاهديه) قال النووي فيه تصريح بتحريم كتابة المترابيين والشهادة عليهما وبتحريم الاعانة علي الباطل.
(مرقاة المفاتيح شرح مشكوٰة المصابيح ۶:۵۹ باب الربا)

۲ ﴾ وفي المنهاج: اختلف الاكابر في حقيقة النوت قال بعضهم انه قبالة الحوالة وليس بثمن... وقال بعضهم هو ثمن رائج لانه يتوسل به الي حصول الاجناس مثل الدراهم المغلوبة الفضة والفلوس وكذا لا يقصد به عند الاخذ والاعطاء... [بقیه بر صفحه آئنده...

## د پاکستانئ کرنسئ د هم جنس او مختلف الجنس کرنسو سره د بدلون په صورت کې د کمی زیاتی حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ۱: د مختلفو ملکونو کرنسی نوټ بدلولو په وخت کمیشن کټ کولې شی آیا دا کمیشن اخستل جائز دی یا نه؟ او آیا دا د سود په شمیر کې راځی یا نه؟ ۲: یو سړی د چا نه د پنځو روپو نوټ اخستلو سره د هغې په بدل کې څلور نیمې روپۍ ماتې پیسې ورکړې، آیا دا په سود کې راځی او که نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** مولانا سردار علی شاه کاکا صاحب لوهار... ۵۶ / ۸ / ۱۲

**الجواب:** ۱: په دې معامله کې سود نشته. (۱) ۲: چونکې نوټ نه ثمن عرفی دې نه سرۀ زر دی او نه سپین زر لهذا په دې کې د بدلون په وخت کمې زیاتې کول سود نه دې. (۲) **وهوالموفق**

## د بینک د سودی کاروبار نه د بچ کیدو حیله کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام ددې مسئلې په باره کې چې ۱: د بهر ملکونو نه کله چې مال په بیع اخستلې کیږی نو په هغې کې دا ممکن نه ده چې لاس

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] الا ما يقصد عند اخذ الدراهم الرائجة والفلوس واعطاء ها ولا يخطر ببال احد ما يقصد من الحوالة والقبالة فافهم... قلت ويؤيد كونه اثمانا رائجة ان المتعارف ان من أقترض عددا من النوت لا يؤدي المقرض الا هذا العدد وان تفاوت الدراهم في قدرالفضة.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ۳:۱۲۷ باب ماجاء في زكوة الذهب والورق)

(۱) قال العلامة الحصكفي: (وان عدما حلا) كهروي بمرويين لعدم العلة.

(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۴:۱۹۹ باب الربا)

(۲) وفي الهندية: وان وجد احدهما وعدم الاخر حل الفضل وحرم النساء.

(فتاوي عالمگيريه ۳:۱۱۷ الفصل السادس في تفسير الربا واحكامه)

په لاس سودا وشي او مال اخستلو سره پيسې ادا کړې شي په دې وجه بينک په مينځ کې خامخا راځي، يو طرف ته بينک د اخستونکي ضمانت ورکوي چې د هغه پيسې به ادا کيږي او دويم طرف ته خرڅونکي ته ضمانت ورکوي چې هغه ته به د مال ټولې پيسې ملاويږي، د دې طريقه دا وي چې اخستونکې بينک ته د پوره رقم ۳۰ فيصده نقد اداکوي او بينک د اخستونکي نه په جهاز باندې د مال راوړلو رسيد يا بلټي اخستلو سره پوره رقم ادا کړي د دې جهاز بلټي د اخستونکي نه بقايا رقم اخستلو سره ورکوي، خو په دې بقايا رقم باندې د اخستونکي نه د دې ټولې مودې سود وصول کړي او دا سود لازمي ورکول دي او ددې نه خلاصې نشته ټول برآمد کونکي تاجران دا عمل کوي. بيا دا مال په پرچون باندې تقسيم کونکو تاجرانو باندې خرڅولې شي د دې څه حکم دې؟ بينواتوجروا

المستفتي: ټول اينډ کمپني لاهور...... ۱۶ اکتوبر ۱۹۸۶ء

**الجواب:** د دې نه د خلاصې دوه طريقې دي اول دا چې اخستونکې ټول رقم (قيمت) په يو ځل وليږي او داخل ئې کړي او دويم دا چې د بينک مالکان دا سامان واخلي او بيا يې په زيات قيمت باندې خرڅ کړي په دې کې به دواړه طرفونه د سود نه محفوظ وي. وهوالموفق

## نوټ لره په تفاضل سره د اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې هل يجوز التفاضل في اقسام النوت في بيع الصرف وكان مختلفة الضرب؟ بينواتوجروا

المستفتي: مولوي نور محمد مهاجر...... ۱۳ محرم الحرام ۱۴۱۱ھ بمطابق ۵ اگست ۸۰ء

**الجواب:** نعم يجوز(۱) فانها في الحكم عروض التجارة، او په حکم د سرو زرو.

---

۱) وفي الهندية: وان وجد احدهما وعدم الآخر حل الفضل وحر[illegible]
(فتاوی عالمگيريه ۱۱۷:۳ [illegible] السادس في تفسير الربا واحك[illegible]

او سپینو زرو کښې نه دي ، وليس فيها القدر بل هي من العدديات واذا كانت مختلفة الضرب فالجنس ايضاً مفقود.(۱) وهوالموفق

## د سلو روپو نوټ په يو سل پنځه روپۍ باندې د ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د بينک والا نوی نوټونه مثلاً د سلو روپو نوټونه په يو سل پنځه روپۍ باندې ورکوی او بيا هم دا په بازار کې سهرو والا د يو سل لسو روپو په بدل کې خرڅوی (يعنی دا د سلو روپو نوې نوټونه) نو د دې د بينک نه اخستل او باقی شقوق (يعنی د سهرو والو دا د سهرو په شکل کې خرڅول) څهٔ حکم لری؟ **بينواتوجروا**

**المستفتي:** بصير احمد کمره ٦ دار العلوم حقانيه ....١٤ جمادی الثانی ١٤٠٩هـ

**الجواب:** نوټ د فلوس په شان مال تجارت يا ثمن رائجه دې نه ذهب دې او نه فضة، په دې کې د طرفين په رضامندئ باندې کمې زياتې کول ناجائز نه دی (بلکې جواز لري).(۲) وهوالموفق

## پاکستانئ او افغانئ کرنسی متحد الجنس دی که مختلف الجنس؟

## د کرنسئ په قرض باندې د ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ۱: د پاکستانئ او افغانئ کرنسئ جنس يو دې او که مختلف؟

---

(۱) وقال العلامة الحصكفي : (وان عدما حلا) كهروي بمرويين لعدم العلة.
(الدر المختار ١٩٩ : ٤ باب الربا)

(۲) وفي الهندية : وان وجد احدهما وعدم الآخر حل الفضل وحرم النساء.
(فتاوي عالمگيريه ١١٧ : ٣ الفصل السادس في تفسير الربا واحكامه)

وقال العلامة ابن عابدين : بل التراضي شرط لثبوت حكمه شرعا وهو الملك.
(ردالمحتار ٧ : ٤ كتاب البيوع)

۲: د افغانی کرنسئ سینکړه په پنځویشت روپئ ده، هم دا کرنسی په قرض باندې ورکولې شو یا نه؟

۳: نقد پنځویشت روپئ باندې سینکړه ورکول او قرض په شپږ ویشت روپئ باندې سینکړه جائز ده که نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: حاجی رسول گل لنډی کوتل... ۱۹ جولائی ۱۹۷۹ء

**الجواب:** ۱: که دا کرنسی د سرو سپینو زرو قباله وی نو په ظاهره کې افغانی او پاکستانی کرنسی متحد الجنس ده او که کرنسی د ثمن مروج نوم وی نو معامله برعکس ده.

۲: چونکې کرنسی د مثلیاتو نه ده لهذا دې لره په قرض باندې ورکولو کې څه باک نشته.(۱)

۳: د دلائلو په رڼا کې کرنسی په ثمن عرفی کې داخله ده قباله نه ده، پس د تاجیل د وجې نه زیادت معاف دې. نظیره فی الجلبی.(۲) وهوالموفق

## د کرنسئ په هر صورت کې بدلول جائز دی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په نوټ باندې نفع اخستل جائز دی یا نه؟ مثلا په بدلیدونکو پیسو کې سل روپئ د پاکستانی نوټ په مقابله کې سل روپئ د سعودی عرب والا نوټ ورکولې شی، واپس راوړلو سره دلته د سلو نوټ په شپږ شلې روپئ باندې خرڅ کړی آیا دا شرعا جواز لري؟ بینواتوجروا

المستفتی: ضلع بنوں تحصیل لکی مقام و ڈاکخانه شهباز خیل فاضل خان دریخالخیل

---

۱) قال العلامة الحصكفي: (وصح) القرض (في مثلي) هو كل ما يضمن بالمثل عند الاستهلاک (لا في غيره) من القيميات كحيوان وحطب.

(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۴:۱۹۱ فصل في القرض)

۲) قال العلامة اللكهنوي: حاشية چلبي کې دی: يجوز ان يقدر الثمن في المبيع بالمؤجل اكثر مما في المعجل بحيث تقابل كثرة المؤجل تعجيل القليل.

(حاشيه چلبي بحواله مجموعة الفتاوي ۲:۱۲۳،۱۲۴ كتاب البيع)

**الجواب:** که نوټ ثمن عرفی ومثلي شی نو په دې معامله کې هیڅ باک نشته، لعدم کونه مکیلا ولا موزونا.(۱) او که د حواله وثیقه او رسید ومثلي شی نو په وثیقو کې تبادله مطلقا جائز ده، لما مر.(۲) او که په دې وثیقو کې عدم تماثل د دې وجې نه ناجائز ومثلي شی چې دا قائم مقام د فضة وغیره وی، کوم چې په حکومت باندې قرض وی نو دا به لازمه شی چې د مساوات په صورت کې هم تبادله ناجائز شی، لانه بیع الکالی بالکالی وهوغیرجائز.(۳) والراجح عنداکثرالاکابرهوالثانی وعند شیخی الراجح هوالاول. وهوالموفق

## امریکائی، ایرانی یا افغانی کرنسی د پاکستانی کرنسئ په بدل کې په قرض خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ما د یو سړی نه امریکائی ډالر یا ایرانی کرنسی یا افغانی کرنسی واخستله د پاکستانی کرنسئ په بدله کښ، اوس به زه هغه سړی ته څلور، پنځه یا لس ورځې پس پاکستانئ پیسې ورکوم آیا دا معامله د قرض په صورت کې صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی عبدالرشید کلاتهـ مرچنټس ترنج روډ چمن بلوچستان ۲۱ رجب ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** دا ډالر وغیره ثمن خلقی نه دې ثمن عرفی دې او دا عددی غیر متقارب دی، نه چې موزونی یا مکیلی، او د دوی ذات د پاکستانی نوټونو

---

۱) وفي الهندية: وان وجد احدهما وعدم الآخر حل الفضل وحرم النساء وان عدما حل الفضل والنساء.

(فتاوی عالمگیریه ۳:۱۱۷ الفصل السادس في تفسير الربا واحكامه)

۲) لما مر اي لعدم كونه مكيلا ولا موزونا.

۳) عن ابن عمر رضي الله عنه ان النبي ﷺ نهي عن بيع الكالي بالكالي رواه الدارالقطني.
(مشكواة المصابيح ۱:۲۴۸ باب المنهي عنها من البيوع)

نه مغایر دي، كما في الثوب الهروي والمروي(۱) پس د قواعدو په رڼا کې دا معامله جائز ده. (۲) وهوالموفق

## د کارخانې د مشینرۍ د اخستلو متعلق د یو سوال جواب

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام ددې مسئلې په باره کې چې یو سړې کارخانه لګول غواړی نو د هغې دپاره مشینری د بهرملك نه راغوښتل غواړی خو د مروجه قوانینو د لاندې هغه مشینری په سودی قرضه کې دلته راوړلې شی. که یو سړې د سود نه د بچ کیدو په خاطر نقد رقم ادا کولو سره مشینری امپورټ کول غواړی نو په قانون کې د دې نه د خلاصی ګنجائش نشته. نو د مشینرۍ نه پس که څوک دا غواړی چې فورا یا د مقرر میعاد نه په کمه موده کې د قرض نه ځان خلاص کړی چې کم از کم سود ورکړی نو دا هم ممکنه نه ده بلکې په قسطونو کې ادا کول ضروری وی اوس که په دې حالاتو کې چا کارخانه خلاصه کړه نو هغه کارخانه او د هغې ګټه به حلاله وی که حرامه؟ د هغې په ګټه باندې زکاة او حج فرض کیږی یا نه؟ که هغه حرامه وی نو د دې تطهیر به په څه شکل وی؟ که د تطهیر ئې څه شکل نه وی نو شرعا به د دې کارخانو څه مصرف وی په داسې حال کې چې د هغې مالیت په اربونو او کربونو روپۍ وی؟ بینواتوجروا

المستفتی: شمس الحق مسجد خضراء کراچی .... ۱۷ جولائی ۷۵

---

۱) قال العلامة الحصكفي: (وان عدما حلا) كهروي بمرويين لعدم العلة.

وقال العلامة ابن عابدين: (قوله كهروي بمرويين) الاولي ان يزيد نسيئة كما عبر في البحر ليكون مثالا لحل الفضل والنساء بسبب فقد القدر والجنس فان الثوب الهروي والثوب المروي بسكون الراء جنسان ... وليسا بمكيل ولا موزون.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۱۹۹: ۴ باب الربا)

۲) وفي الهندية: وان عدما حل الفضل والنساء.

(فتاوي عالمگیریه ۱۱۷: ۳ الفصل السادس في تفسير الربا واحكامه)

**الجواب:** په ظاهر کې دا معلومیږي چې حکومت دا مشینري په هغه سړي باندې خرڅوي او دا مجموعي رقم یعنی اصل سره د سود نه د هغه سړي دپاره ثمن شمارلې شي، لهذا د دې کارخانې د حاصلاتو د غیر طیب احتمال ختمیږي. **هذا ما عندي ولعل عند غيري احسن منه. وهو الموفق**

## په بینک کې پیسې کیښودل او په حالت اضطرار کې د سود حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ۱: په بینک کې رقم جمع کول جائز دی یا نه؟ ۲: د لبنان مفتی ویلې دی چې سود بالاتفاق حرام دې خو د اضطرار په حالت کې حرام نه دې، حلال کیدې شی؟ دا خبره تر کومه حده پورې صحیح ده؟ **بینوا توجروا**

**المستفتي: تاج محمد مردان**

**الجواب:** د قرض د وجې نه چې کومه منافع حاصل شی هغه سود او ربا ده، په قرآن کریم کې د سود په اړه کوم آیتونه راغلی دی د هغې شان نزول هم دا وو چې هغه خلقو به د قرض د وجې نه منافع دپاسه د منافع اخستله. **فليراجع الى التفاسير**[1] بلکه دا چې په حدیث شریف کې هم راغلی دی چې **(کل**

---

۱ **)** في التفسير المظهري: قال السدي نزلت في العباس وخالد بن الوليد وكانا شريكين في الجاهلية يسلفان في الربوا الي بني عمرو بن عمير ناس في ثقيف فجاء الاسلام ولهما اموال عظيم في الربوا فانزل الله تعالى هذه الآية. (التفسير المظهري ۱:۴۱۰، آیت: ۲۷۸)

وقال العلامة الرازي: في سبب نزول الآية روايات فالاولى انها خطاب لاهل مكة كانوا يرابون فلما اسلموا عند فتح مكة امرهم الله تعالى ان يأخذوا رؤس اموالهم دون الزيادة، والثانية، قال مقاتل ان الآية نزلت في اربعة اخوة من ثقيف، مسعود، وعبد ياليل وحبيب وربيعة، بنو عمرو بن عمير الثقفي كانوا يداينون بني المغيرة فلما ظهر النبي ﷺ علي الطائف اسلم الاخوة ثم طالبوا برباهم بني المغيرة فانزل الله تعالى هذه الآية.
(التفسير الكبير ۷:۱۰۶، آیت: ۲۷۸)

قرض جر نفعاً فهو ربا) رواه الحارث فی مسنده(۱)

بله دا چې دا مضمون د نورو روایاتو نه کوم چې په ابن ماجه او تاریخ بخاری کې لیکلې شوې دی واضح طور معلومیږی، فلیراجع الی المشکاة کتاب البیوع فی الربا.(۲)

او هم دا خبره د امام ابوحنیفه رحمه الله نه روایت ده، کما فی الهندیة ۲۶۴/۳. قال محمد فی کتاب الصرف ان اباحنیفة کان یکره کل قرض جر منفعة.(۳)

او په موجوده دور کې د بینکونو په ذریعه دا سود کولې شی،

لهذا دا ربا ناجائز ده لهذا واضحه دې وی چې د ګناه په کار کې تعاون کول حرام دی.

---

۱) قال العلامة اشرف علي التهانوي: وقال ﷺ كل قرض جر منفعة فهو ربا وهو حديث حسن لغيره صرح به العزيزي في شرح الجامع الصغير للسيوطي ۳:۷۸۴.
(امداد الفتاوي ۲:۲۱۵ كشف الدجي عن وجه الربوا)

وفي المنهاج: قال النبي ﷺ كل قرض جر نفعا فهو رباً اخرجه الحارث بن ابي اسامة عن علي امير المؤمنين وله شواهد كثيرة.
(منهاج السنن شرح جامع السنن ۵:۲۴ باب ماجاء في الصرف)

۲) وفي المشكوٰة: عن انس رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ اذا اقرض احد كم قرضا فاهدي اليه او حمله علي الدابة فلا يركبها ولا يقبلها الا ان يكون جري بينه وبينه قبل ذلك رواه ابن ماجة والبيهقي في شعب الايمان وعنه وعن النبي ﷺ قال اذا اقرض الرجل الرجل فلا يأخذ هدية رواه البخاري في تاريخه هكذا في المنتقي.
(مشكوٰة المصابيح ۲۴۶ باب الربوا، كتاب البيوع)

۳) (فتاويٰ عالمگيرية ۳:۲۵۲ الباب التاسع عشر في القرض والاستقراض)

قال الله تعالی: ولا تعاونوا علی الاثم والعدوان (۱) پس بغیر د سود نه پیسې کیښودل (په بینک کښ) هم حرام دی ځکه چې اصل بینک په هغې سره سودی معاملات کوی، واضحه دې وی چې د ضرورت او اضطرار په وخت حرام مباح کیږی، کما فی قوله: الاما اضطررتم (۲)

پس کوم سړې چې د مال حفاظت نه شی کولې او د هغې د ضائع کیدو یقین او ظن غالب ورسره وی نو هغه بغیر د سود نه داخلولې شی که په بینک کې د امانت انتظام نه وی. وهوالموفق

**په اسټیټ لائف انشورنس کمپنۍ کې په منافع باندې د رقم جمع کولو حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په اسټیټ لائف انشورنس کمپنۍ کې خپل رقم په منافع سره جمع کول او خپل ځان د څو کلونو دپاره انشور کول جائز دی یا ناجائز؟

المستفتي: فضل حلیم مدرس هائی سکول بګرا.. ۳ مارچ ۱۹۷۶ء

**الجواب:** چونکې کمپنی په دې سره سودی کاروبار کوی لهذا دا معامله د تعاون علی المعصیة دوجې نه حرام ده (۳) لهذا کومې پیسې چې د یو ملازم د تنخواه نه د قبض نه مخکې جبری طور کټ کولې شی او هغې سره د کمپنۍ د طرف نه څه رقم ادا کولې شی نو په دې کې هیڅ باک نشته. (۴) وهوالموفق

---

۱) (سورة المائدة آیت: ۲)

۲) (سورة الانعام آیت: ۱۲۰)

۳) قال الله تبارک وتعالیٰ: ولا تعاونوا علي الاثم والعدوان. (سورة المائدة آیت: ۲)

وقال العلامة القاري: (کاتبه وشاهدیه) قال النووي فیه تصریح بتحریم کتابة المترابیین والشهادة علیهما وبتحریم الاعانة علي الباطل.

(مرقاة المفاتیح شرح مشکوٰة المصابیح ۶:۵۹ باب الربا)

۴) قال الشیخ المفتي محمد شفیع: په زبردستۍ سره په پرائیویډنټ فنډ باندې چې کوم د سود په نوم سره رقم ملاویږی هغه شرعاً سود نه دی بلکه د اجرت (تنخواه) یوه برخه ده. (پرا یویډنټ فنډ باندې د زکواة اود سود مسئله ۴)

## د بیبک د ملازمینو نه سوا د نورو خلقو

## تنخواه گانې د بیبک نه اخستل صحیح دی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زما لږ شان رقم په بینک کې دې ما بینک والو ته ویلې دی چې که تاسو ماته سود راکول غواړئ نو زه ئې نه اخلم، ډیره موده پس ماته یو عالم دوست وویل چې تاسو په غلطئ باندئ یئ نن صبا د ټولې دنیا مالیاتی نظام دبینک نه دې ستاسو تنخواه هم د بینک نه راځی هر بینک د خلقو په پیسو باندې کار کوی او په هغې باندې ډیره گټه کوی او مال والو ته مناسب حصه د هغې نه ورکوی دا سود نه دې، تاسو منافع اخلئ، اوس زه حیران یم د خپلې تسلئ دپاره ستاسو د علم نه فائده اوچتول غواړم؟ بینواتوجروا

المستفتی: سمندر خان سمندر پشاور... ۱۶ جولائی ۱۹۷۶ء

**الجواب:** واضحه دې وی چې د قرض د وجې نه چې کومه منافع حاصل شی هغه سود وی، للاصل المشهور کل قرض جر نفعاً فهو رباً (۱) قلت هو لفظ الحدیث ایضاً.(۲) بلکه دا چې په قرآن کریم کې د حرمت ربا متعلق د آیت

---

(۱) قال العلامة ابن عابدین: (قوله کل قرض جر نفعا حرام) اي اذا کان مشروطا.
(ردالمحتار ۱۹۴:۴ مطلب کل قرض جر نفعا حرام)

(۲) عن علي رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ کل قرض جر منفعة فهو ربا رواه الحارث بن ابي اسامة واسناده ساقط وله شاهد ضعیف عن فضالة بن عبید عند البیهقي وآخر موقوف عن عبد الله بن سلام عند البخاري.
(بلوغ المرام من ادلة الاحکام ۲۸۲ رقم حدیث: ۸۱۲)

وقال العلامة اشرف علي التهانوي: کل قرض جر منفعة فهو ربا وهو حدیث حسن لغیره صرح به العزیزي في شرح الجامع الصغیر للسیوطي.
(امداد الفتاوي ۲۱۵:۵ کشف الدجي عن وجه الربوا)...[بقیه بر صفحه آئنده...

کریمه شان نزول هم دا دې (۱) او دا حقیقت د چا نه پټ نه دې چې د بینک نه کوم رقم اخستلې شي، نو دا مضاربت نه دې، قرضه وي، لهذا حاصل شوي منافع بیشکه او بې شبهې سود وي او حرام ده. (۲) خو چونکې په بینک کې جمع شوې رقم نه ټول په ټول سودی مال وي او نه اکثری طور سره بلکې لږه شان حصه سود وي، لهذا د دې نه تنخواه اخستل وغیره جائز دی، خو چونکې د بینک ملازمینو ته صرف د سودی رقم نه تنخواه ګانې ورکولې شی نه د اصل زر نه، لهذا د هغوی تنخواه ګانې حرام وي. وهوالموفق

## د پری پیمنټ سیلز سکیم حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې پری پیمنټ سیلز سکیم یو سکیم دې چې په هغې کې په مقرر تاریخ باندې قرعه اندازی کیږی لکه چې تاسو ته به معلومه وي آیا دا جائز ده یا نه؟ او دا بیع فاسد ده یا نه؟ بینواتوجروا

**المستفتی:** مولانا محمد نسیم کلاچی نجم المدارس ډی آئی خان .... ۸ جون ۱۹۸۶ء

---

...بقیه ازحاشیه گذشته]

وفي المنهاج: والآن في بیوت الربا البنک شاع الربا الحکمي وهو الانتفاع بالقرض قال النبي ﷺ کل قرض جر نفعا فهو ربا اخرجه الحارث بن ابي اسامة عن علي امیر المؤمنین وله شواهد کثیرة.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ۵:۲۴ باب ماجاء في الصرف)

۱ ﴾ قال العلامة ثناء الله پاني پتي: قال السدي نزلت في العباس وخالد بن ولید کانا شریکین في الجاهلیة یسلفان في الربوا الي بني عمر بن عمیر ناس في ثقیف فجاء الاسلام ولهما اموال عظیم في الربوا فانزل الله تعالیٰ هذه الآیة.

(التفسیر المظهري ۱:۴۱۰ آیت:۲۷۸)

۲ ﴾ قال العلامة وهبة الزحیلي: فوائد المصارف (البنوک) حرام حرام حرام.

(الفقه الاسلامي وادلته ۵:۳۷۴۱)

**الجواب:** محترم المقام حافظ محمد نسیم صاحب سلمه الرحمن ! السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته، اما بعد ! پس واضحه دې وی چې دا سکیم (پری پیمنټ سیلز سکیم) د قواعدو په رڼا کې ناجائز او ممنوع دی ځکه کله چې زید د موټر سائیکل د حاصلولو دپاره د دوه سوو روپیو قسط ادا کړو او مثلاً اوله قرعه اندازئ کې د هغه نوم راووتلو نو که زید ته دا داخل شوې قسط واپس کولې شوې نو شرعًا به دې موټر سائیکل ته انعام ویلې شو اوقابل د اعتراض به نه وو، خو ښکاره ده چه ددې سکیم والا داسې نه کوی، لهذا دې موټر سائکل ته به انعام او ورکړه نه وئیلې کیږی، بلکې په دې موټر سائیکل کې دوه احتمالات کیدې شی، اول دا چې د دې موټر سائیکل ۱/۹۰ حصه مبیع او ۹۰/۸۹ حصې انعام دې او دویم دا چې دا ټولې موټر سائیکلې مبیع دی او دا دواړه شقوق ناجائز او ممنوع دی، اول شق په دې وجه باندې چې د بیع د صحت دپاره د مبیع تعین ضروری دې.(۱)

او په دې معامله کې مبیع متعین نه دې ځکه چې د ممبر جوړیدو په وخت د ټول موټر سائیکل مبیع کیدل مقرر شوې دی او په قرعه اندازئ کې د مخکښې وروستو راوتلو د وجې نه مبیع کله ۱/۹۰ حصه او کله ۲/۹۰ او کله ۳/۹۰ وی او باقی حصې به انعام وی.

او شق ثانی د دې وجې نه ناجائز دې چې د بیع د صحت دپاره تعین ثمن (قیمت) ضروری دې (۲) او په دې معامله کې دا مفقود دی ځکه چې د نوم په مخکې وروستو راوتلو سره به کله قیمت دوه سوه روپئ وی کله څلور سوه او کله شپږ سوه وهکذا.

---

۱) وفي الهندية : واما شرائط الصحة ... ومنها ان يكون المبيع معلوما والثمن معلوما علما يمنع من المنازعة فبيع المجهول جهالة تفضي اليها غير صحيح.
(فتاوي هندية ۳:۳ كتاب البيوع ، الباب الاول في تعريف البيع وركنه وشرطه)

۲) قال العلامة الحصكفي : وشرط لصحته معرفة قدر مبيع وثمن ووصف ثمن.
(الدر المختار ۲۳:۴ كتاب البيوع)

د دې نه علاوه په مبیع کې باقاعده خیار رؤیت او خیار عیب ثابتیږي او په دې معامله کې دبیع ملامسه او منابذه په شان دا حقوق مشتري ته نه شي ورکولې. (١) وهوالموفق

## د حکومت نه ګاډي په قسطونو باندې اخستلو سره د لګیدلې شوې سود نه د بچ کیدلو حیله

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې حکومت بالاقساط ټریکټر خرڅوي، اول څلورمه حصه قیمت ورکولې شي وروستو چې کوم قیمت دې په هغې باندې د سینکړې په حساب سره دولس روپۍ زیاتي سود اخلي، آیا دا سود دې؟ بینواتوجروا

المستفتي: لال محمد تور ډهیر محله پشتی صوابۍ...... ١٩٩٦ء

**الجواب:** که تاسو دا ټولې پیسې (پیشګي او قسط وار مع منافع) لره د ټریکټر د قیمت په حیثیت سره ادا کړئ نو تاسو به مجرمان نه یئ. (٢) تاسو

---

١) وفي جامع الفصولين: واما الخيارات التي تثبت في عقود تحتمل الفسخ انواع، منها خيارشرط ورؤية وعيب وتعين. (جامع الفصولين ١:٢٤١ الفصل الخامس والعشرون في الخيارات)

وقال العلامة محمد خالد الآتاسي: من اشتري شيئاً ولم يره كان له الخيار الي ان يراه فاذا رآه فان شاء قبله وان شاء فسخ البيع ويقال لهذا الخيار خيار الرؤية... ما بيع مطلقا اذا ظهر فيه عيب قديم يكون المشتري مخير ان شاء قبله بثمن المسمي وان شاء رده.

(شرح المجلة ٢:٢٦٨،٢٩٠ المادة ٢٣٧، ٣٢٠ الباب السادس في بيان الخيارات)

٢) قال العلامة اللكهنوي: د یوسف چلپي رحمه الله په حواشي شرح وقايه کې دی: يجوز ان يقدر الثمن في المبيع بالمؤجل اكثر مما في المعجل بحيث تقابل كثرة المؤجل تعجيل القليل.

(مجموعة الفتاوي ٢:١٢٩ كتاب البيع)

وقال العلامة المرغيناني: لان للاجل شبها بالمبيع الا يري انه يزاد في الثمن لاجل الاجل. (هداية ٢:٧٤ باب المرابحة والتولية) ...[بقيه برصفحه آئنده...]

د حکومت د ارادې ذمه دار نه يئ.(۱) وهوالموفق

## د بينک منافع او د انعامی بانډ حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې تقريبا د درې کالو نه زما څه پيسې په يونائيټډ بينک کښې دي، اوس کله چې ما د بينک نه معلومات وکړو نو معلومه شوه چې دوه نيم درې درې سوو پورې منافع زما د رقم سره جمع کړې شوې ده، د دې منافع په باره ما د ډيرو حضراتو نه تپوس وکړو خو د علماء کرامو رائې مې پکې مختلفې اوموندلې، د يو جماعت وينا ده چې دا منافع جائز نه ده ځکه چې په بينک رقم کيښودنکې د بينک په منافع کې خو شريک ګڼلې شي خو په نقصان او خساره کې اصولاً شريك نه وی، لهٰذا دا د سود يو قسم دې دا جماعت په بينک کې پيسې جمع کول هم ښه نه ګڼی، د دې برعکس دويم جماعت د جواز سبب دا بيانوی چې ۱: په بينک کې جمع کړې شوې پيسو نه کار اخستلې شی.
۲: د بينکارئ دا طريقه نه صرف په پاکستان کې بلکې په ټوله اسلامی دنيا کې رائج ده.
۳: که يو بينک مکمل طور په خساره کې راشی نو په هغې کې داخل کړې شوې پيسې خود بخود ضائع شی او چاته هيڅ هم نه ملاويږی، لهٰذا په

---

...بقيه ازحاشيه گذشته]
وقال وهبة الزحيلي : جاز الشافعية والحنفية والمالكية والحنابله وزيد بن علي والمؤيد بالله والجمهور بيع الشيئ في الحال لاجل او بالتقسيط باكثر من ثمنه النقدي اذا كان العقد مستقلا بهذا النحو... وهذا ليس من الربا بل هو نوع من التسامح في البيع.
(الفقه الاسلامي وادلته ۵:۳۴۶۱ البيع لاجل او بالتقسيط)

(۱) عن عمر بن الخطاب رضي الله تعالیٰ عنه قال قال رسول الله ﷺ انما الاعمال بالنيات وانما لامرئ ما نوی.
(مشكواة المصابيح ۱۱ قبيل كتاب الايمان)

بینک کې پیسې کینبودل او د بینک د طرف نه په مقرر شوې شرحو باندې منافع اخستل جائز دی، مهربانی وکړئ او د ذکر کړې شوې مسئلې مدلل وضاحت وفرمایئ چې زه هم په صحیح خبره باندې فیصله وکړم او نورو ته هم ویلې شم، د دې نه علاوه ما څه انعامی باندونه هم اخستلې دی چې په هغې باندې د حکومت د طرف نه هره میاشت د قرعه اندازئ په طور د انعاماتو د ملاویدو امکان وی نو د دې متعلق هم څه خلق د جواز خبره کوی او څه د ممانعت، تاسو مهربانی وکړئ او دا مسئله هم حل کړئ؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی**: فضل الحکیم سرحد هاؤس بټ خیله دیر اډه ملاکنډ ایجنسی ۲۵ فروری ۱۹۷۳ء

**الجواب**: واضحه دې وی چې د ﴿ **کل قرض جر نفعاً فهو ربا** ﴾ د وجې نه دا رقم سود دې (۱) خو د دې اخستل او مسکینانو او طالبانو باندې بغیر د ثواب د نیت نه تقسیمول غوره دی په نسبت د نه اخستلو، **لانه اهون البلیتین**. (۲) او دا انعامی باند جواری ده. (۳) او د **تعاون علی المعصیة** نه خالی نه دې، لهذا د دې نه هم اجتناب ضروری دې (۴) **وهوالموفق**

---

۱ ﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله كل قرض جر نفعا حرام) اي اذا كان مشروطا.
(ردالمحتار ۴:۱۹۴ مطلب كل قرض جر نفعا حرام)

۲ ﴾ قال العلامة الحصكفي: الضابط ان من ابتلي ببليتين فان تساويا خير وان اختلفا اختار الاخف.
(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۱:۳۰۳،۳۰۴ باب شروط الصلاة)

۳ ﴾ قال الله تبارک وتعالي: انما الخمر والميسر والانصاب والازلام رجس من عمل الشيطان فاجتنبوه لعلكم تفلحون.
(سورة المائدة آيت: ۹۰)

٤ ﴾ قال الله تبارک وتعالي: ولا تعاونوا علي الاثم والعدوان.
(سورة المائدة آيت: ۲)

## آیا هندوستان دار الحرب دي او په دي کې سود اخستل جائز دي؟

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې آیا په هندوستان کې سود اخستل جائز دی یا نه؟ آیا په هندوستان باندې د دار الحرب اطلاق کیږي؟ بله دا چې د دار الحرب صحیح تعریف (د احنافو په نزد) ولیکئ او د کتاب حواله هم ورکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.....۲۰ جمادی الثانی

**الجواب:** د هندوستان په دارالحرب کیدلو کې علماء مختلف دی.(۱) خو په دارالحرب کې سود اخستل علی القول الراجح حرام نه دی، فلیراجع الی ردالمحتار ۱۸۸/۴ (۲) وخالفه بعض المشائخ فلیراجع الی بوادر النوادر...۳۸۶/۲ (۳) وهوالموفق

---

۱) قال الشيخ المفتي محمد حسن الجنجوهي: د هندوستان باره کې اختلاف دې اکثره عالمان دې ته دارالحرب وائی او بعضې ددې نه منکر دی، مولانا عبدالحئ صاحب په خپله فتاوی ج۲ ص۲۲۲ کې لیکی: هندوستان کوم چه د نصاراؤ په قبضه کې دې دارالحرب نه دې په هغې کې د کافر نه سود اخستل جائز نه دی.

حضرت شاه عبد العزیز صاحب محدث دهلوی رحمه الله په خپله یوه اوږده فتوی کې او دغسې په نورو ډیرو لیکلو کې هندوستان دارالحرب ګرځوی فرمائی: اذا ثبت الشيي ثبت بلوازمه، یعنی هرکله چه د هندوستان دارالحرب کیدل ثابت شو نو په شرائطو سره سود اخستل هم صحیح دی.

(فتاوی محمودیه ۲۴۶: ۴تا ۲۴۹ باب الربوا، کتب خانه مظهري)

۲) قال العلامة الحصكفي: (ولا بين حربي ومسلم ثمه) لان ماله ثمه مباح فيحل برضاه مطلقا بلا عذر خلافا للثاني والثلاثة. وقال العلامة ابن عابدين: (قوله ثمه) اي في دارالحرب... (قوله لان ماله ثمه مباح) قال في فتح القدير لا يخفي ان هذا التعليل انما يقتضي حل مباشرة العقد اذا كانت الزيادة ينالها المسلم. (شامي ۲۰۹: ۴باب الربا)

۳) قال الشيخ اشرف علي التهانوي: چې آیا د حربی مال فئ دي یا غنیمت؟ ایا په کوم یو حالت کې په یو نص سره د حربی د مال معصوم کیدل...[بقیه بر صفحه آئنده...

## سودی مال په ذاتی مفاد کې استعمالولوسره دهغې ضمان واجب الادا دی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې يو سړې په بينک کې رقم جمع کولو سره په هغې باندې سود اخلی، په دې سودی رقم سره خپل تعليم جاری ساتی، آيا هغه دا پيسې خرچ کولې شی؟ کله چې د هغه دا خيال وی چې زه به خپله ګټلو سره بيا دا پيسې په څه مصرف کې خرچ کوم؟ بينواتوجروا

المستفتی: شفيق الرحمن پشاور يونيورسټی ...... ۱۵ اګست ۱۹۷۹م

**الجواب:** سودی مال په ذاتی مفاد کې استعمالول د ګناه د پاسه ګناه ده، خو دداسې استعمال په صورت کې ددې ضمان واجب الاداوی(۱) وهوالموفق

...بقيه ازحاشيه گذشته] هم ثابتيږی؟

**جواب:** د تحريم ربا په آيت کې ارشاد دې: يا يها الذين آمنوا اتقوالله وذروا ما بقي من الربوا ان کنتم مؤمنين، او ښکاره ده چه ددې باقی ربا معامله کوم وخت شوې ده اخستونکی ورکونکی ټول حربی وو، نو د تحريم نه پس که چېرته د حربی سره داسې معامله جائز وې نود تحريم نه مخکې خوبه په درجه اولی جائز وه، او دغه روپۍ (مال) به حلال وو، نو ددې پرېښودل به ولې فرض کيدل.

**اضافه:** او ددې سب د حربی مال محترم يعنی فی نفسه معصوم کيدل نه دی بلکه او دا په عارض سره معصوم کيدل دی، دغه معارض معاهده ده چه ددې په سبب هر يو د بل نه مامون (په امن کې) دې او معاهده عامه ده که قالی وی او که حالی وی، يعنی خپل مينځ کې داسې معاشره چه هيڅيا ته د بل نه خطره نه وی...الخ

(بوادر النوادر ۲:۳۷۶،۳۷۷ دوسرا نادر دراد خال ربوا دارالحرب درفي)

۱ ) قال العلامة الكاساني : واما حالة الحرمة فهو ان يأخذها لنفسه لا لصاحبها... لانه اخذ مال الغير بغير اذنه فيكون بمعني الغصب... واما حالة الضمان فهي ان يأخذها لنفسه لان الماخوذ لنفسه مغصوب وهذا لاخلاف فيه. (بدائع الصنائع ۵:۲۹۵،۲۹۶ كتاب اللقطة)

وفي الهندية : اللقطة امانة... ولو اقر انه اخذها لنفسه ضمنها بالاجماع.

(فتاوي عالمگيرية ۲:۲۹۱ كتاب اللقطة) ...[بقيه برصفحه آئنده...

## سودی رقم په انکم ټیکس کې د ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په انکم ټیکس کې سودی رقم مجره کول (حسابول) جائز دی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتي: محمد یحیی آفریدی مین بازار کوهاټ... ۲۲ فروری ۱۹۷۶ء

**الجواب:** هر کله چې د دې سودی پیسو نه اخستل جائز دی نو د دې قبل القبض په انکم ټیکس کې مجره کول به په طریقه اولی جائز وی، ځکه چې په ټیکس کې خرچ کیدل په نسبت د خرد برد تعمیری امر دې، خو د قبض نه وروستو به دا مال واجب التصدق وی. لدخوله في الملك.(۱) فافهم

## د تنخواه د وصولولو نه پس څه حصه دوباره په جی پی فنډ کې جمع کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د ګورنمنټ د ملازمینو د تنخواه نه حکومت ماهانه لس فیصده رقم جبرا په جنرل پراویډنټ فنډ G.P Fund کې جمع کوی، واضحه دې وی چې هر ملازم چې د لسو فیصدو نه که زیات رقم د خپلې تنخواه نه پراویډنټ فنډ کې په خپله مرضئ سره جمع کول غواړی نو هم جمع کولې شی د هر ملازم د میاشتې د

---

[...بقیه ازحاشیه گذشته]

وقال العلامة الحصكفي: (وندب رفعها لصاحبها) ان امن علي نفسه تعريفها والا فالترك اولي وفي البدائع وان اخذها لنفسه حرم لانها كالغصب.

وقال العلامة ابن عابدين: (قوله لانها كالغصب) اي حكما من جهة الحرمة والضمان. (شامي ۳:۳۴۸ كتاب اللقطة)

(۱) قال العلامة ابن عابدين: : لان سبيل الكسب الخبيث التصدق اذا تعذر الرد علي صاحبه. (ردالمحتار ۵:۲۷۳ فصل في البيع ،كتاب الحظر والاباحة)

وقال العلامة ابن البزاز: ولو بلغ المال الخبيث نصابا لايجب فيه الزكاة لان الكل واجب التصدق. (البزازية علي هامش الهندية ۴:۸۶ كتاب الزكاة، الثاني في المصرف)

تنخواه نه چې کومې پیسې په جنرل پراویډنټ فنډ کې جمع کولې شي په هغې باندې ګورنمنټ د خپل طرف نه د کتې د کمی او زیاتی په لحاظ سره کله پنځه فیصده او کله شپږ فیصده سالانه حساب سره منافع ورکوی چې د هغې مکمل تشریح لاندې لیکلې شي:

مثلاً په جی پی فنډ کې د یو ملازم کل جمع شوې رقم سره د سود نه شپږ سوه روپۍ دې، ګورنمنټ په دې باندې شپږ فیصده سالانه حساب سره سود لګولو سره په شپږو سوو روپو کې جمع کوی یعنی د شپږو سوو روپو سره شپږ دیرش روپۍ د سود یو ځای کولو باندې شپږ سوه او شپږ دیرش روپۍ جوړوی، اوس فرض کړئ چې یو ملازم د خپلې تنخواه نه د میاشتې شل روپۍ په جی پی فنډ کې جمع کول غواړی نو سالانه د هغه د تنخواه نه ۱۲×۲۰=۲۴۰ روپۍ کټ کیدو سره دا رقم په ۲۳۲ روپو کې جمع کولې شي یعنی (۲۳۲+۲۴۰)=۸۲۲ روپۍ جوړیږی، هم د دې ۸۷۲ روپو سره ګورنمنټ شپږ فیصده سود لګوی یعنی ۸۲۲ روپو سره ۲۱ روپۍ سود یوځای کولو باندې ۹۳۷ روپۍ جوړیږی هم په دې طریقې سره د ریټائرمنټ پورې هم دا سلسله جاری وی.

او که یو ملازم ته د جی پی فنډ نه د ضرورت په وخت د څه پیسو د راویستلو ضرورت شي نو هغه د حکومت د منظورئ نه بغیر رقم نه شي اخستلې، بالفرض که یو ملازم د حکومت نه منظوری اخستلو سره شپږ سوه روپۍ د خپل ضرورت دپاره راوباسی نو هم دا رقم د هغه د تنخواه نه د میاشتې په حساب سره په شلو قسطونو کې بیا په جی پی فنډ کې جمع کولې شي دا ټول جمع شوې جنرل پراویډنټ فنډ ملازم ته د ریټائرمنټ نه مخکې نه ملاویږی، خو په پنشن ملاویدو باندې دا ټولې جمعې شوې پیسې ملاویږی، ستاسو په خدمت کې عرض کوم چې په پورته ذکر شوې طریقې سره چې ګورنمنټ ملازمینو ته په جنرل پراویډنټ فنډ باندې سود ورکوی شرعاً د ملازمینو دپاره ددې قسم سود اخستل جائز دی یا نه دی؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی: میاں شمس الهدیٰ ډاک اسماعیل خیل پشاور ..... ۱۵ جمادی الثانی ۱۳۸۹ھ**

**الجواب:** د دې فنډ متعلق د علماء کرامو فتوی دا ده چې د ملازم دپاره اصل رقم سره د سود نه اخستل جائز دی ځکه چې دا سود حکومت په خپلو پيسو ورکړې دې، د ملازم دپاره دا سودی پيسې يو بخشش دې (١) بيشکه کومې پيسې چې ملازم د وصولولو نه واپس کړی دی او په بينک کې ئې داخلې کړې نو دا عمل ناجائز دی او د اصل رقم نه زيات اخستل سود دی. (٢) خلاصه دا ده چې د قبض کولو نه مخکې کټوتی او پس د قبض نه داخله او واپسئ کې حکم يو شان نه دې (٣) فقط

## د قبض کولو نه مخکې په جي. پي فنډ کې په خپله مرضئ باندې تنخواه جمع کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ماته ستاسو په وجه باندې دا علم وشو چې دا قبل القبض کټ کولې شی په دې وجه دا د حکومت او د بينکونو په ذمه دې د هغې نه تاسو بری يئ، بلکې د علماء کرامو قول دې چې دا د حکومت د طرف نه يوقسم ورکړه ده کومه چې هغوی په سود کې ليکی اوس قابل طلب امر ستاسو نه دا دې چې حکومت جی پی فنډ د خپل قانون د لاندې د مياشتې لس روپئ د يو استاذ د تنخواه نه کټ کوی، کوم چې په بينک کې د مذکوره استاذ په نوم سره د سود نه جمع

---

١ ﴾ قال العلامة الشيخ المفتي محمد شفيع : په زبردستئ سره په پرائيويډنټ فنډ باندې چې کوم د سود په نوم سره رقم ملاويږی هغه شرعاً سود نه دې بلکه د اجرت (تنخواه) يوه برخه ده. (پرا يويډنټ فنډ باندې د زکواة اود سود مسئله:۴)

٢ ﴾ قال الله تبارک وتعالي: يا يها الذين امنوا اتقوا الله وذروا ما بقي من الربوا ان كنتم مؤمنين. (سورة البقرة آيت :۲۷۸)

وعن جابر قال لعن رسول اللهﷺ آکل الربوا ومؤکله وکاتبه وشاهديه وقال هم سواء. (مشکوة المصابيح : ۲۴۴ باب الربوا)

٣ ﴾ په زبردستئ سره د کټ کولو په صورت کې اضافی پيسې سود نه دې او بعد القبض داخله او د اختياری کټ کولو په صورت کې اضافی رقم اخستل به سود وی. (مفتی سيف الله حقانی)

کیږي اوس که هم دا استاذ د حکومت په تجویز کړې شوې لسو روپو سره پنځه روپۍ په خپله مرضۍ باندې نور زیات کولو سره ټولې پنځلس روپې په خپل جی پی فنډ کې په دې غرض جمع کول شروع کړي چې خیر دې حکومت هسې هم رقم کټ کوی نو پنځه دې ورسره نورې هم یوځای کړم چې زما په فنډ کې رقم زیات جمع شی نو آیا په دې صورت کې هم د جی پی فنډ په رقم کې خرابي نه راځی؟ که راځی نو څومره راځی؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبدالحمید خان ډیره.....۳۰ مارچ ۱۹۷۰ء

**الجواب:** په خپله مرضۍ سره کټ کول ناجائز دی ځکه چې د بینک مالکان په دې باندې سودی کاروبار کوی نو د دې په خپله مرضۍ کټ کولو کې اعانة علی المعصیة موجود دې چې حرام او منع دې. (۱) وهوالموفق

## پی ایل ایس شرعی حیثیت

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې نوې بینکاری نظام (پی ایل ایس) چې په هغې کې لاندې لیکلې شوې امور موندلې شی:

۱: د دې لین دین قانونی حیثیت د واجب الادا قرض وی.

۲: بینک خپلې کاتې والو ته د نفع په نوم چې کوم زیاتی رقم ورکوی او د خپلو قرضدارو نه چې کوم زیاتی رقم اخلی د هغې تعین دوخت او د مال تعداد د کمی او زیاتی په لحاظ سره وی، مثلا سل روپۍ والا کهاته دار دپاره که په کال کې سل روپۍ زیاتوی نو په شپږو میاشتو پنځه روپۍ او په دوه کاله کې شل روپې وی.

۳: د پیسو جمع کونکو ته چې کومه منافع ورکولې شی د هغې زائد تعین به

---

(۱) قال الله تبارک وتعالي: ولا تعاونوا علي الاثم والعدوان. (سورة المائدة آیت ۲)

وفي المرقاة: (عن جابر قال لعن رسول الله ﷺ آکل الربوا وموکله وکاتبه وشاهدیه) وقال النووي فیه تصریح بتحریم کتابة المترابیین والشهادة علیها وبتحریم الاعانة علي الباطل.

(مرقاة المفاتیح ۶:۵۹ باب الربا)

فریقین نه کوی بلکې د هغې د تعین کولو اختیار به هر شپږ میاشتې پس د ستیټ بینک ته دې.

۴: بینک قرض دار (کهاتې والا) او قرضدار بینک ته هر کال هغه رقم ضرور ادا کوی، چې د هغې تعین به ستیټ بینک کوی الخ، آیا دا جائز دی یا ناجائز؟ بینوا توجروا

**المستفتی: مولانا تاج زرین صاحب مفتی دار العلوم هیر کړه**

**تحصیل تخت بهائی مردان... ۲ مارچ ۱۹۸۹ء**

**الجواب:** دا بې علمه خلق دې معاملې (پی، ایل، ایس) لره قرض ګڼی خو دا په حقیقت کې شرکت دې او دا خلق دا هم وائی چې دا پیسې په سودی معاملاتو کې نه شی استعمالولې نو په دې بناء باندې چې په دې کهاته کې رقم جمع کول ناجایز نه دی او دا کهاته په نسبت د کرنټ آسانه ده. **لعدم وعد عدم الصرف فی المعاملات الربویة فی حق هذه**...او چونکې دا بې اعتماده خلق دی لکه چې د بعض اهل کارو د بیاناتو نه معلومیږی چې په دې کې او سودی کهاته کې هیڅ عملی فرق نشته لهذا د دې شبهې د وجې نه مناسب دا ده چې بغیر د ضرورت نه په دې کهاته کې هم پیسې جمع کول جائز نه دی (۱)، (۲) **وهوالموفق**

## مروجه کمیټی جائز ده یا نه؟

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې نن صبا کاروباری خلقو چې کومه طریقه د کمیټئ په نوم باندې اختیار کړې ده هغه دا چې مثلاً لس سړی جمع شی او خپل مینځ کې د میاشتې سل سل روپۍ

---

۱) وعن النعمان بن بشير قال قال رسول الله ﷺ الحلال بين والحرام بين وبينهما مشتبهات لا يعلمهن كثير من الناس فمن اتقي الشبهات استبرأ لدينه وعرضه ومن وقع في الشبهات وقع في الحرام. (مشكوة المصابيح ۲۴۱ كتاب البيوع، باب الكسب وطلب الحلال)

۲) اود تحقیقاتو نه معلومه شوې ده چه دا صرف شبه نه ده بلکه حقیقت دې، لهذا د عدم جواز حکم به ورکولې شی. (مفتی سیف الله حقانی)

جمع کوی، بیا په دې پیسو باندې قرعه اندازي کوی چې د چا نوم راوخی هغه ته پیسې ورکولې شی، دغه شان هر میاشت قرعه اندازی کیږی او هر یو ته خپله حصه ملاویږی آیا دا طریقه جائز ده یا ناجائز؟ بینوا توجروا

المستفتی: گل حلیم شاه کلي او ډاکخانه بنوں تحصیل ټانک ... ۳ مارچ ۱۹۸۷ء

**الجواب:** چونکې دمال مشترک نه یو شریک ته قرض ورکول جائز دی (۱) لهذا دا معامله جائز ده، او چونکې دا قرعه اندازی د طیب خاطر او رفع شغب دپاره ده نه د گټې او بیلات (تملیک او تملک) دپاره، لهذا دا قرعه اندازی قابل اعتراض نه ده. (۲) او په قرض اخستلو کې سبقت ممنوع نه دې. والله اعلم بالصواب

## د بینک ورکړې شوې قرضه قسط وار ادا کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې بنده د بینک ملازم وو، د حرام کیدو د وجې نه ئې ملازمت پریښودلو، بنده د ملازمت په دوران کښې د بینک نه قرضه اخستلې وه چې په هغې باندې ما ډاتسن اخستلې دې، اوس قرضه بینک والا غواړی نو د هغې صورت به دا وی چې

---

(۱) وفي شرح المجلة: كيفما يتصرف صاحب الملک المستقل بملكه يتصرف ايضا في الملک المشترک اصحابه بالاتفاق كذلک... يجوز لاحد اصحاب الحصص التصرف مستقلا في الملک المشترک باذن الآخر.

(شرح المجلة ۱۲،۱۱:۴ المادة ۱۰۶۹،۱۰۷۱ الفصل الثاني في بيان كيفية التصرف في الاعيان المشترک)

(۲) قال العلامة العيني: ربما يتهم في ذلک فيستعمل القرعة لتطيب قلوب الشركاء ونفي تهمة الميل وذلک جائز كما استعمل يونس عليه السلام في مثل هذا مع اصحاب السفينة... وكذلک زكريا عليه السلام استعمل القرعة مع الاحبار في ضم مريم عليه السلام ... وكان رسول الله ﷺ يقرع بين نسائه اذا اراد سفرا تطيبا لقلوبهن.

(البناية في شرح الهداية ۱۶۲،۱۶۱:۱۴ كتاب القسمة، فصل في كيفية القسمة)

واخلم به خرڅوم یا به د میاشتې زر روپئ قرضه بینک ته ادا کوم، نو آیا په دې پیسو باندې به کاروبار صحیح وی یا نه؟ بینواتوجروا

**المستفتي**: خالد رحمن انجنیئرنگ ورکشاپ احمدی بانده ضلع کوک ۲۰ رمضان ۱۴۱۰هـ

**الجواب**: تاسو په هر دواړو شقونو باندې عمل کولې شئ یو هم پکې ناجائز نه دې. وهوالموفق

## د بینک د کور د تعمیر دپاره پیسې ورکولو سره د هغې کرایه اخستل سود دې یا نه

**سوال**: څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې نن صبا خلق د بینکونو نه د تعمیراتو دپاره قرض اخلی د دې طریقه کار داسې وی چې یو سړې دبینک نه یو لاک روپئ اخلی کله چې کور تیار شی نو پنځه سوه روپئ (ماهوار قسط دوه سوه روپئ) کرایه د هغه کور والا بینک ته وصولوی، هغه کور مالک نه شی خرڅولې، ترڅو پورې چې هغه ټولې روپئ ادا نه کړې شی نو دا کرایه اخستل او ورکول جائز دی یا ناجائز؟ بینواتوجروا

المستفتي: حاجی کریم شاه بجلی گهر مردان .... ۸ فروری ۱۹۸۹ء

**الجواب**: که دا پیسې دې آبادی کونکو ته په طور د قرض ورکړې شوې دی نو د اهل بینک دپاره دا دوه سوه روپئ کرایه اخستل حرام دی. (۱) ځکه چې د قرض په صورت کې تاسو مالکان شوی یئ. (۲) او د غیر مملوکه آبادئ کرایه ورکول هیڅ جواز نه لری. (۳)

---

(۱) في امداد الفتاوي: كل قرض جر منفعة فهو ربا وهو حديث حسن لغيره صرح به العزيزي في شرح الجامع الصغير. (امداد الفتاوي ۳:۲۷۰ كشف الدجي عن وجه الربوا)

(۲) قال العلامة ابن عابدين: ويملكه المستقرض بالقبض كالصحيح.

(ردالمحتار ۴:۱۹۱ فصل في القرض)

(۳) في شرح المجلة: وشروط المعقود عليه ستة... وكون الملك للبائع فيما يبيعه لنفسه... وما يكون شرطاً لانعقاد البيع يكون شرطاً لانعقاد الاجارة.

(شرح المجلة ۲:۵۲۷، المادة: ۴۴۴ الفصل الثاني في شروط انعقاد الاجارة)

۲: او که دا پیسې د وکالت په طور ورکړې شوې وی (چه ته زمونږ د طرف نه وکیل ئې، د سامان او آبادئ انتظام وکړه، د ناظر په شان) نو دا آبادی د اهل بینک ملکیت دې. (۱) بیا دې ته قرضه ویل غلط دی (مفتی رشید احمد صاحب) په دې باندې کرایه اخستل جائز دی خو دې رقم ته قرضه ویل هیڅ معنی نه لری. وهوالموفق

**په تاج کمپنۍ کې د هغې د هدایاتو مطابق پیسې ورکول سود دې یا نه؟**

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زه نه خپله سود اخلم او نه ورکوم ماسره څه پیسې دی هغه زه په تاج کمپنۍ کې لګول غواړم، تاج کمپنی والا وائی چې مونږ نفع ورکوو او ما په اخبار کې لوستلې دی چې په تاج کمپنۍ کې پیسه لګول صحیح نه دی. بینواتوجروا

**المستفتی:** محمد علی کینیډا.......۱۶ رمضان المبارک ۲ مئی ۱۹۸۸ء

**الجواب:** په تاج کمپنۍ کې د هغوی د هدایاتو موافق پیسې ورکول بیشکه سود دې، **کل قرض جرنفعاًفهوربا** (۲) کې داخل دې، د منافع په تعین سره

---

(۱) قال العلامة محمد خالد الآتاسي: لا يشترط اضافة العقد الي الموكل بالبيع والشراء والاجارة والصلح عن اقرار فان لم يضف الي مؤكله واكتفي باضافته الي نفسه صح ايضا وعلي كلتا الصورتين لا تثبت الملكية الا لموكله.

(شرح المجلة ۴:۴۲۶ المادة: ۱۴۶۱ الفصل الاول في بيان احكام الوكالة)

(۲) عن علي رضي الله تعاليٰ عنه قال قال رسول الله ﷺ كل قرض جر منفعة فهو ربا رواه الحارث بن ابي اسامة واسناده ساقط.

(بلوغ المرام من ادلة الاحكام ۲۸۲ رقم حديث ۸۱۲)

وفي امداد الفتاوي: كل قرض جر منفعة فهو ربا وهو حديث حسن لغيره صرح به العزيزي في شرح الجامع الصغير.

(امداد الفتاوي ۳:۲۷۰ كشف الدجي عن وجه الربوا)

مضاربت هم فاسد يږي. (شامی) (۱) وهوالموفق.

## په سودي رقم سره مدرسه جوړول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د بینک نه په حاصل شوې پیسو باندې د دینی مدرسې دپاره د رهائش کمرې جوړول وغیره جائز دی یا نه؟ او دا رقم په غریبانانو، یتیمانو یا طالبانو باندې خرچ کیدلې شي یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: از فتح جنگ مسجد اسد باباړه لاریا...... ۱۹۷۶ء | ۱ | ۱۱

**الجواب:** په دې پیسو سره د مدرسې تعمیر جائز دې خو غوره دا ده چې په مسکینانو او طالبانو وغیره باندې بغیر د ثواب د نیت کولو نه تقسیم کړې شي. کمافي فتح الملهم (۲) والهندية (۳) وردالمحتار (۴) او د مسکینانو دپاره به ئې په اخستلو کې ګناه نه وي.

---

۱) قال العلامة الحصكفي: (وكون الربح بينهما شائعا) فلو عين قدرآ فسدت.

(الدرالمختار ۴:۵۴۰ كتاب المضاربة).

۲) قال العلامة الشيخ البنوري: ويستفاد من كتب فقهاء نا كالهداية وغيرها ان من ملك بملك خبيث ولم يمكنه الرد الي المالك فسبيله التصدق علي الفقراء... قال ان التصدق بمثله ينبغي ان ينوي به فراغ ذمته ولا يرجوا به المثوبة.

(معارف السنن ۱:۳۴ ابواب الطهارة، باب ماجاء لا تقبل صلوة بغير طهور)

۳) في الهندية: واذا مات الرجل وكسبه خبيث فالاولي لورثته ان يردوا المال الي اربابه فان لم يعرفوا اربابه تصدقوا به.

(فتاوي هندية ۵:۳۴۹ الباب الخامس عشر في الكسب)

۴) قال العلامة ابن عابدين: ويردونها علي اربابها ان عرفوهم والا تصدقوا لان سبيل الكسب الخبيث التصدق اذا تعذر الرد علي صاحبه.

(ردالمحتار ۵:۲۷۳ فصل في البيع، كتاب الحظر والاباحة)

كما فى شرح الاشباه للحموى ۱۱۶ وينبغى ان يستثنى الاخذ بالربوا للمحتاج فانه لايحرم كما صرح به المصنف فى البحر ويحرم على الدافع الاعطاء بالربوا(۱). وهوالموفق

## په بينک کې ختم قرآن کول او په هغې باندې اجرت اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې چوتکې حاليه دور کې په لاچی کوهاټ کې بينک پرانستلې شوې دې په هغې کې يو مولوی صاحب د رمضان په مياشت کې ختم القرآن کوی، چونکې دا د سودی کاروبار اداره ده په دې وجه په دې کې د قرآن کريم تلاوت شرعی جواز لری يا نه؟ بينواتوجروا

المستفتی: عبدالغفور لاچی کوهاټ......٤ ستمبر ۱۹۷۷ء

**الجواب:** په بينک کې د قرآن لوستل د قرآن او اهل علم توهين دې.(۲) بل په دې باندې اجرت اخستل سود خوری ده ځکه چې دا اجرت د سودی رقم نه ورکولې شی. (۳) وهوالموفق

---

۱ ) (غمزعيون البصائر شرح الاشباه والنظائر ۴۴۹:۱ القاعدة الرابعة عشرة ما حرم اخذه حرم اعطائه)

۲ ) وفي البزازية: واداب القرآن ان لا يقرأ في مثل هذه المجالس والمجلس الذي اجتمعوا فيه للغناء والرقص لا يقرأ فيه القرآن كما لا يقراء في البيع والكنائس لانه مجمع الشيطان.

(البزازية علي هامش الفتاوي العالمگيرية ۳۳۸:۶ التاسع فيما يقال في القرآن والاذكار)

۳ ) وفي مشكوة المصابيح: عن جابر قال لعن رسول الله ﷺ آكل الربوا وموكله وكاتبه وشاهديه وقال هم سواء.

(مشكوة المصابيح ۲۴۴ باب الربوا، الفصل الاول)

## د امانت پیسې په بینک کې کېښودل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ما سره د اکثرو خلقو امانتونه پراته وی خو په کور کې پیسې کېښودل نن صبا د خطرې نه خالی نه دی، د امانت کېښودنکی وائی چې زمونږ پیسې تاسو په بینک کې کېږدئ بیا به د خطرې سوال نه پیدا کېږی. لهٰذا مطلوب دا ده چې زه د خلقو امانتونه په بینک کې کېښودلې شم یا نه؟ حال دا چې په بینک کې په پیسو کېښودلو باندې نفع نه زه اخستل غواړم او نه ئې امانت والا. **بینواتوجروا**

**المستفتی:** عبدالرحیم ساکن مندنی تحصیل چارسده..... ۱۳۱ کتوبر ۱۹۷۵م

**الجواب:** محترم المقام دامت برکاتکم ! وروسته له سلامه دې واضحه وی چې په تاسو باندې دا ضروری نه ده چې د چا امانت ځان سره وساتئ لهذا ستاسو دپاره د دې پیسو په بینک کې داخلول اګر چې بغیر د سود نه وی، بغیر د ضرورت کیدو د وجې نه ناجائز دی. **قال الله تعالی : ولا تعاونوا علی الاثم والعدوان.....(۱) وهوالموفق**

## د بینک د نوکرئ د حرمت وجه

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په بینک کې د نوکرئ جواز لري یا نه؟ که حرامه ده نو د دې څه وجه ده؟ حال دا چې نوکر خو دخپلې نوکرئ عوض اخلی، ددې نه علاوه که دا حرام وی نو بیا ټول ملک یا نظام په دې روان دې مهربانی وکړئ ددې مناسب تفصیل وکړئ؟**بینواتوجروا**

---

۱) (سورة المائدة آیت : ۲)

وفي المرقاة: عن جابر قال لعن رسول الله ﷺ آكل الربا وموكله وكاتبه وشاهديه، قال النووي فيه تصريح بتحريم كتابة المترابيين والشهادة عليهما وبتحريم الاعانة على الباطل. (مرقاة المفاتيح ۶:۵۹ باب الربا، الفصل الاول)

المستفتی: محمد انور از کوهاټ......۱۳۱کتوبر ۱۹۸۸ء

**الجواب:** واضحه دې وی چې په سودی کاروبار کې ګواه یا منشی کیدل د حرامو مور ده، لورود اللعنة علیهم (۱) که په هغې کې په کتابت یا شهادت باندې څه پیسې ملاویږی او که نه؟ بلـه دا چې په دې معاوضه کې تعاون علی المعصیة دې. (۲) لقوله تعالی ولا تعاونوا علی الاثم والعدوان. (۳) د دې نه علاوه دا معاوضه اصل زر نه دی په زائد رقم باندې دا نظام روان دې په خلاف د مالکانو چې د هغوی پیسې ټول په ټول حرام نه شی کیدې، څوک ۱/۲۰ یا ۱/۳۰ حصه سودی رقم وی نو د بینک ټولو پیسو ته حرام ویل بې ځایه او غلط دی. والله الموفق

## انعامی بانډونه او لاټری ټکټونه اخستل

## او په هغې باندې د نفع اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ۱: بعض خلق انعامی بانډونه اخلی او په هغې باندې د قرعه اندازئ نه پس چې کومه نفع یا صله ملاویږی د هغې شرعی حکم څه دې؟

۲: د لاټرئ ټکټ اخستل او په هغې باندې نفع اخستل څنګه دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: بشیر الله سکنه عمرزئ ضلع چارسده...... ۱۳ صفر ۱۴۱۱ھ

---

۱) عن جابر رضي الله تعالیٰ عنه: قال لعن رسول الله ﷺ آکل الربا وموکله وکاتبه وشاهدیه وقال هم سواء رواه مسلم. (مشکوٰة المصابیح ۲۴۴:۱ باب الربا)

۲) قال العلامة القاري رحمه الله: (وکاتبه وشاهدیه) قال النووي فیه تصریح بتحریم کتابة المترابیین والشهادة علیهما وبتحریم الاعانة علي الباطل.

(مرقاة المفاتیح شرح مشکواة المصابیح ۵۹۶ باب الربا)

۳) (سورة المائدة آیت: ۲)

**الجواب:** دا تول حرام دی دا معاملات جواری یاد تعاون فی الربانه خالی نه دي (۱) وهوالموفق

## د سودي مال بنه تالاش او فنډ (خزانه) د محکمې د اجازت نه بغير په کوم مقصد کې استعمالول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې عموما سرکاری مدارسو کې فنډ په يو بينک يا ډاکخانه کې جمع کوی چېرته چې په دې باندې سود لګولې شی د دې د جانچ پړتال دپاره مديرصاحب يو معلم مقرر کوی، کله کله هغه په بل معلم باندې بنه تالاش کولو سره د تلاش کوونکی په ځای خپل دستخط وکړی، اوس تاسو بيان کړئ: ۱: که هيډ ماسټر ماته د مذکوره کار د پرځای کولو حکم راکړی نو آيا زه انکار کولې شم؟ که د انکار کولو ضرورت نه وی نو زه به دا کار څنګه کوم؟

۲: په بل صورت کښې د تلاش کوونکی په حيثيت سره په دې مذکوره رجسټر باندې دستخط کولې شم يا نه؟ د دې نه علاوه کله کله داسې هم کيږی چې فنډ په يو بل داسې کار خرچ کولې شی چې د محکمې د طرف نه په هغې کې د فنډ د لګولو اجازت نه وی، بيا محکمې ته د صحيح حساب ښودلو دپاره په رجسټر کې جعلی رسيدونو سره فنډز د خپل مقصد دپاره د خرچ کولو اندراج کولې شی آيا دا جائز دی؟ بينواتوجروا

المستفتی: عبدالحميد معلم ګورنمنټ هائی سکول

ډيره اسماعيل خان.....٤ ذی القعده ١٣٨٩هـ

---

(۱) قال الله تبارک وتعالي: انما الخمر والميسر والانصاب والازلام رجس من عمل الشيطان فاجتنبوه. (سورة المائدة آيت: ۹۰)

وقال الله تعالي: ولاتعاونوا علي الاثم والعدوان. (سورة المائدة آيت: ۲)

وفي مشکوٰة المصابيح: عن جابر قال لعن النبي ﷺ آکل الربوا و موکله وکاتبه وشاهديه وقال هم سواء.

(مشکوٰة المصابيح ۲۴۲:۱ کتاب الربوا)

**الجواب**: ۱: چونکې دا هم اعانة على المعصية (الربا) ده لهذا د دې نه پرهيز كول پكار دى، قال رسول الله ﷺ اذا اقرض الرجل الرجل فلا ياخذ هدية رواه البخارى فى تاريخه هكذا فى المنتقى (مشكاة ۲۶۵) (۱) د دې حديث نه دا اصل او قاعده فقهاء كرامو مستنبط كړې ده چې:

كل قرض جر نفعا فهو ربا (۲) وقال الله تعالى: ولا تعاونوا على الاثم والعدوان (۳) الآية، ولعن رسول الله ﷺ آكل الربوا وموكله وكاتبه وشاهديه وقال هم سواء رواه مسلم (۴).

۲: تالاش هم اعانت دې (۵) او د محكمې د اجازت نه بغير په څه مقصد كې خرچ كول خيانت دې (۶) وهوالموفق

---

۱ ) (مشكوة المصابيح ۲۴۶ باب الربوا)

۲ ) وفي مجموعة قواعد الفقه: قاعده ۲۳۰. كل قرض جر نفعا فهو ربا حرام، وعلي حاشيته: وعلي هذا لا يجوز الانتفاع بالمرهون وروي الحارث ابن ابي اسامة في مسنده عن علي رضي الله تعالي عنه بلفظ كل قرض جر منفعة فهو ربا.
(مجموعة قواعد الفقه ۱۰۲)

۳ ) (سورة المائدة آيت: ۲)

۴ ) (الصحيح المسلم ۲:۲۷ باب الربا)

۵ ) وقال العلامة النووي رحمه الله: وكاتبه وشاهديه هذا تصريح بتحريم كتابة المبايعة بين المترابيين... وفيه تحريم الاعانة علي الباطل.
(حاشية النووي علي الصحيح المسلم ۲:۲۷ باب الربوا)

۶ ) وفي شرح المجلة: لا يجوز لاحد ان يتصرف في مال الغير بلا اذنه وعدم التصرف شامل لجميع انواع التصرف. (شرح المجلة ۱:۲۶۲، المادة ۹۶)

## په ترقیاتی پروګرام کې روپئ جمع کولو سره

## د سود د احتمال سره حرمت نه ثابتیږی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په علاقه کې د مربوط دیهی ترقیاتی پروګرام دفتر دې، د دفتر عملې په هره علاقه کې د څو ممبرانو کمیټۍ جوړې کړې دی کوم چې د هر ممبر نه څه رقم بغیر د سود نه په طور د فنډ (خزانې) جمع کوی د صاحب مال دپاره په دې باندې هیڅ سود نه وی، وړاندې راته دا نه ده معلومه چې هغوی په دې باندې بل څه کاروبار کوی یا نه؟ آیا په دې دفتر کښې ددې ممبرانو دپاره رقم جمع کول جائز دی. بینواتوجروا

المستفتی: محمد علی شاه حسن خیل بنوں...... یکم ربیع الثانی ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** صرف په احتمال سره حلال نه حرامیږی، د یقین یا ظن غالب په صورت کې حرمت ثابتیږی.(۱) وهوالموفق

## د دارالحرب تعریف او په هغې کې د سود اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې دار الحرب څه ته وائی؟او په دارالحرب کې سود اخستل څه حکم لري؟ د بعض علماء کرامو

---

(۱) قال العلامة ابن نجیم : ما ثبت بیقین لا یرتفع الا بیقین والمراد به غالب الظن ... ولو شک في الحرمة لم یعتبر.

(الاشباه والنظائر ۶۸،۵۹ القاعدة الثالثة : الیقین لا یزول بالشک)

وفي شرح المجلة : ان الامر المتیقن ثبوته لا یرتفع الا بدلیل قاطع ولا یحکم بزواله بمجرد الشک کذلک المتیقن عدم ثبوته لا یحکم بثبوته بمجرد الشک لان الشک اضعف من الیقین فلا یعارضه ثبوتا وعدما.

(شرح المجلة ۱۸:۱، المادة : ۴ الیقین لا یزول بالشک)

نه مو اوریدلي دی چې په دارالحرب کې سود اخستل جائزدی؟ بینواتوجروا

المستفتي: گل ضمیر مغربي جرمنی سکنه صالح خانه ..... ۱۴۰۱ه ..... ۱۴ مق

**الجواب:** دار الحرب هغه وطن دې چې په هغې کې د کفارو تسلط او اقتدار وي، اهل اسلام بغیر د اجازت نه د شعائر اسلام مظاهره نه شي کولې. (۱) مثلا، روس، چین، جرمنی، امریکه وغیرها ټول په ټول دارالحرب دی.

۲: په دار الحرب کې د مسلمان د مسلمان نه سود اخستل اجماعا حرام دی، خو د مسلمان د کافر نه سود اخستل مختلف فیه دی د طرفین په نزد جائز دی او د امام ابویوسف رحمه الله په نزد ناجائز دی. (۲) محققینو عدم جواز ته راجح ویلې دی. (۳) وهوالموفق

---

۱) قال العلامة الحصكفي: لا تصير دارالاسلام دارحرب الا بامور ثلاثة باجراء احكام اهل الشرك، وباتصالها بدارالحرب، وبان لايبقي فيهامسلم اوذمي آمنا بالامان الاول علي نفسه (الدرالمختار ۳: ۲۷۷ باب المستأمن، مطلب فيما تصير به دارالاسلام دارحرب)

۲) قال العلامة ابن نجيم: (قوله ولا بين الحربي والمسلم ثمه) اي لا ربا بينهما في دارالحرب عندهما خلافا لابي يوسف.

وقال العلامة ابن عابدين علي حاشيته: فالظاهر ان الاباحة بقيد نيل المسلم الزيادة وقد الزم الاصحاب في الدرس ان مرادهم من حل الربا والقمار ما اذا حصلت الزيادة للمسلم نظرآالي العلة وان كان اطلاق الجواب خلافه.

(البحر الرائق ۶: ۱۳۶ باب المستأمن)

۳) قال العلامة الجنجوهي: سوال: په دې حربی ښارونو کې ځیلې روپۍ ورکول او په هغې باندې سود اخستل جائز دی یا نه؟

**الجواب:** د کافرانو هم سود اخستل جائز نه دی. فقط والله اعلم.

(فتاوي رشيديه: ۴۱۰ سود کی مسائل کا بیان)

وقال العلامة التهانوي: ددې نه پس چه د دواړو قولونو په دلائلو کې نظر اوکړې شو نود ابو یوسف رحمه الله دلائل قوی دی، دهغې نه صرف یو دلیل دې وخت ذکر کوم، د ربوا د تحریم په آیاتونو کې ارشاد دې: یآیها الذین آمنوا اتقوا الله وذروا ما بقي من الربوا ان کنتم مؤمنین. او ښکاره ده چې ددې بقیه ربوا معامله ... [بقیه بر صفحه آئنده ...

## په دار الحرب کښې سودي کاروبار، جوارې، د لاټرۍ ټکټونه اخستل او د شرابو د تجارت حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په دار الحرب کې چې علماء احنافو د کوم عقد فاسد اجازت ورکړې دې د هغې په رڼا کې آیا ۱: امریکه، جرمنی، انګلینډ وغیره ملکونو کې سودی کاروبار او سود اخستل جائز دی یا نه؟

ب: په سود اخستلو او ورکولو کې څه فرق شته یا نه؟

۲: کفایة المفتي کتاب الحظر والاباحة ۲۲۹ کې د جواز القمار بالحربي تصریح ده نو په دې لحاظ سره به د لاټرۍ ټکټ اخستل په دار الکفر کې جائز وی یا نه؟

۳: آیا مسلمان په دار الحرب کښې د کفارو سره د شرابو تجارت کولې شی حال دا چې د شرابو بیع فاسد ده؟

۴: کومې پیسې چې په دار الحرب کې په سود سره حاصلې شی هغه په خپل استعمال کې راوستلې شی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرحمٰن حقانی امام السالمی سنټر آف ستاکټن (آمریکه) ۱۵ نومبر ۱۹۸۷ء

**الجواب:** ۱: الف: حربی سره په دار الحرب کې سودی معامله جائز ده.[۱]

---

...بقیه ازحاشیه گذشته]

کوم وخت شوې ده اخستونکی ورکونکی ټول حربی وو، نو د تحریم نه پس که چېرته د حربی سره داسې معامله جائز وې نود تحریم نه مخکې خوبه په درجه اولی جائز وه، او دغه روپۍ (مال) به حلال وو، نو ددې پرېښودل به ولې فرض کېدل. او نص قطعی دې ثبوتاً هم دلالةً هم، اود طرفینو دلیل یا خبر واحد دې یا قیاس، چه دا ظنی دې اود قطعی تقدیم په وجوب ظنی باندې اجماعی دې (امداد الفتاوي ۳:۱۵۷،۱۵۸ کتاب الربوا، رساله رافع الضنک عن منافع البنک)

(۱) قال العلامة الحصكفي: (ولا بين حربي ومسلم) مستأمن ولو بعقد فاسد وقمار. (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۴:۲۰۹ قبيل باب الحقوق

ب : او زیادت اخستل جائز دی خو زیادت ورکول زیر غور دی.(۱)

۲: جائز دی. (۲)

۳: جائز دی، مثل المیتة خو په مسلمان باندې خرڅول ئې جائز نه دی.(۳)

۴: هرکله چې دا سود وغیره حلال کړې شوې دی نو ذاتی استعمال کې ګناه نشته. جمیع هذه المسائل مأخوذة من رد المحتار .... ۱۸۸/٤ قبیل باب الحقوق...وهوالموفق

**تنبیه** : د دې نه مخکې او په دې مسئله کې تضاد دې، ووجه التطبیق انه ذکر اولاراي المحققین وثانیاً رایه.(مفتی سیف الله حقانی)

## آیا بینک ته د کور په کرایه باندې د ورکولو ګنجائش شته؟

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې چې د هغه الحمدلله وسیع کاروبار دې او مختلف کورونه ئې په کرایه باندې ورکړې دی په هغې کې هغه یو دکان بینک ته په کرایه باندې ورکړې دې آیا داکرایه اخستل د هغه دپاره حلال دی؟ په امدادالفتاوی باب الربوٰا کې د اعانة

---

۱) قال العلامة ابن عابدین: (قوله لان ماله ثمه مباح) قال في فتح القدیر: لا یخفي ان هذا التعلیل انما یقتضي حل مباشرة العقد اذا کانت الزیادة ینالها المسلم... وقد الزم الاصحاب في الدرس ان مرادهم من حل الربا والقمار ما اذا حصلت الزیادة للمسلم نظراً الي العلة وان کان اطلاق الجواب خلافه.

(ردالمحتار ۲۰۹: ۴ قبیل باب الحقوق)

۲) ایضاً حاشیه بالا_

۳) قال العلامة ابن نجیم: (قوله ولا بین الحربي والمسلم ثمه) اي لا ربا بینهم في دارالحرب... وکذا اذا باع خمرا او خنزیرا او میتة اوقامرهم واخذالمال کل ذلک یحل له. (البحر الرائق ۱۳۵: ۶ قبیل باب الحقوق)

علی المعصیة په سلسله کې ماته چاویل چې گنجائش موجود دې په دې وجه مې تاسو ته درخواست دې چې مدلل جواب راکړئ دحوالې سره. بینواتوجروا

المستفتی: قاری محمد آمین ازوگنې ..... یکم جنوری ۱۹۷۰ء

**الجواب:** دا اجاره د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد جائز ده او د صاحبینو په نزد ناجائز ده. یدل علیه ما فی الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۵:۳۴۵ وجاز اجارة بیت بسواد الکوفة لیتخذ بیت نار او کنیسة او بیعة او یباع فیه الخمر وقالا لا ینبغی ذلک لانه اعانة علی المعصیة انتهی (۱)

خو د شیخ الاسلام میلان د صاحبینو د مذهب طرف ته دې.

قال شیخ الاسلام والمراد بهذا اذا استاجرها الذمی لیسکنها ثم اراد بعد ذلک ان یتخذ بیعة او کنیسة فیها فاما اذا استاجرها فی الابتداء لیتخذها بیعة او کنیسة لا یجوز (نتائج الافکار تکملة فتح القدیر ۸:۱۲۸) (۲)

د دې عبارت نه معلومیږی چې د شیخ الاسلام میلان د صاحبینو د قول طرف ته دې او ممکنه ده چې د دې نه مراد د امام الائمة د کلام تاویل وی، بلکه دا چې د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل صاحب د نتائج الافکار په ډیرو جزئیاتو سره منقوض کړې دې کوم چې د ذخیره او محیط او د قاضی خان نه نقل کړې شوې دی.(۳) لهذا د صاحبینو په مذهب باندې عمل کول محتاط معلومیږی

---

۱) (الدر المختار ۲۷۸، ۲۷۷:۵ فصل في البیع، کتاب الحظر والاباحة)

۲) (نتائج الافکار تکملة فتح القدیر ۴۹۴:۹ فصل في البیع، کتاب الکراهیة)

۳) وفي تکملة فتح القدیر: اقول ینتقض هذا التعلیل المذکور من قبل ابي حنیفة رحمه الله تعالی في هذه المسئلة بمسائل متعددة مذکورة في الذخیرة والمحیط وفتاوی قاضي خان وسائر المعتبرات... منها انه اذا استاجر الذمي من المسلم بیعة لیصلي فیها فان ذلک لا یجوز قال في المحیط والذخیرة لانه استاجرها لیصلي فیها... [بقیه بر صفحه آئنده...

کنه نو گنجائش د جواز هم شته خصوصاً په دار الحرب کښې.فقط

## د بېنک سره لین دین کول او د بېنک د ملازمینو تنخواه ګاڼې او د عربو ملکونو په بېنکونو کې د مال کېښودلو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ۱: آیا د بېنک سره لین دین حرام دی؟ ۲: د بېنک د ملازمانو تنخواه ګاڼې حرام دی که حلال؟ ۳: کوم خلق چې په عرب ملکونو کې په بېنکونو کې خپل مال ږدی د هغې څه حکم دې؟ ۴: که د پیسو د حفاظت دپاره بغیر د بېنک نه بل ځای نه وی نو بیا څه کول پکار دی؟ بینوا توجروا

**المستفتي:** قاضی علاء الدین کوهاټ ښهر

**الجواب:** واضحه دې وی چې مسئله مسئوله عنها طویلة الذیل ده لهذا په جواب علی طور الانتخاب باندې اکتفاء کولې شی، فی الحال د استیعاب نه معذور یو د جواب لیکلو نه مخکې څو اصول مسلمه لیکلې شی هغه دا دی: ۱: د قرض په وجه باندې چې کوم زیاتی مال حاصل شی هغه سود دې، لحدیث: **کل قرض جرّنفعاً فهو ربا**، رواه الحارث فی مسنده(۱) وهو سبب نزول آیة الربا.(۲)

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] وصلوة الذمي معصیة عندنا وطاعة في زعمه واي ذلک اعتبرنا کانت الاجارة باطلة لان الاجارة علي ما هو طاعة او معصیة لا یجوز، منها انه اذا استاجر المسلم من المسلم بیتا لیجعله مسجدا یصلي فیه المکتوبة او النافلة فان هذه الاجارة لا تجوز في قول علمائنا... ومنها انه اذا استاجر ذمي من ذمي بیتا یصلي فیه لا یجوز قال في المحیط والذخیرة لان صلوتهم طاعة عندهم معصیة عندنا واي ذلک کان لم تجز الاجارة انتهي. (نتائج الافکار تکملة فتح القدیر ۹:۴۹۴ فصل في البیع، کتاب الکراهیة)

۱) (بلوغ المرام من ادلة الاحکام ۲۸۲ رقم حدیث: ۸۱۲)

۲) قال العلامة الرازي: في سبب نزول الآیة روایات فالاولي انها خطاب لاهل مکة کانوا یرابون فلما اسلموا عند فتح مکة امرهم الله تعالي ان یأخذوا رؤس اموالهم دون الزیادة. (التفسیر الکبیر ۷:۱۰۶ آیت: ۲۷۸)

ب : تعاون على المعصية حرام دي : لقوله تعالى : ولا تعاونوا على الاثم والعدوان...(۱)

ج : د ضرورت د وجې نه حرام مباح کيږي. لقوله تعالى: الاما اضطررتم(۲).

د : د حيثيت د اختلاف د وجې نه بعض وخت احکام مختلف کيږي، لحديث: لها صدقة ولنا هدية.(۳)

ه : په حرام مال سره د اخستلې شوې اجناس استعمال حلال وی کله چې د هغه دراهمو تعين نه وی کړې شوې يا هغه دراهم د اخستلو نه پس ادا کړې شوې وی. (رد المحتار ۲۱۹/۴) (۴)

و : هر امين په اختلاط سره مالک کيږی او په هغه باندې ضمان واجب

---

۱ ) (سورة المائدة آيت : ۲)

۲ ) (سورة الانعام آيت : ۱۲۰)

وفي شرح المجلة : الضرورات تبيح المحظورات.

(شرح المجلة ۱:۵۵ المادة : ۲۱)

۳ ) (الصحيح البخاري ۱:۲۰۲ كتاب الزكوة، باب الصدقة علي موالي ازواج النبي ﷺ)

۴ ) قال العلامة ابن عابدين : رجل اكتسب مالا من حرام ثم اشتري فهذا علي خمسة اوجه : اما ان دفع تلک الدراهم الي البائع اولا ثم اشتري منه بها او اشتري قبل الدفع بها ودفعها او اشتري قبل الدفع بها ودفع غيرها او اشتري مطلقا ودفع تلک الدراهم او اشتري بدراهم اخر ودفع تلک الدراهم...وقال الكرخي في الوجه الاول والثاني لا يطيب وفي الثلاث الاخيرة تطيب وقال ابوبكر لا يطيب في الكل لكن الفتوي الآن علي قول الكرخي.

(ردالمحتار ۴:۲۴۴ مطلب اذا اكتسب حراما ثم اشتري الخ)

کیږی. ردالمحتار ۲/۳۵ (۱)

پس د دې اصولو په بناء په بینک کې بغیر د ضرورت نه مال کیښودل حرام دی اګر چې بغیر د سود نه وی او چونکې ملازمینو ته مشاهرات د زائد مال نه ورکولې شی نه د اصل زر نه لهذا دا تنخواه ګانې اخستل به مشروع نه وی په دې احکاماتو کې په عرب او عجمو کې هیڅ فرق شته بعض مصری متجددینو د سود د جواز ناکام کوشش کړې دې باقی ټولو علماء کرامو دې ته حرام ویلې دی. (۲) او اهل بینک به ئې د اختلاط د وجې نه مالکان نه وی کله چې دا خلط بغیر د اجازت نه وی او په عرف عام کې دا اختلاط مجاز وی لهذا د حیثیت په فرق باندې به اکتفاء کولې شی، د دې مفسده د ازالې طریقه مضاربت صحیحه دې خو هغه هم عقلا ممکن دې دا د اعتماد زمانه نه ده او دا هم یو طریقه ده چې سرمایه دار خلق بغیر د سود نه پیسې کیږدی او اهل اقتدار یا د بینک مالکان په دې پیسو باندې تجارت کوی او د هغې نه په حاصل شوې ګټې باندې ملازمینوته تنخواګانې ورکوی اوخساره د قومی خزانې نه پوره کوی اومحتاجوته بغیرد سودنه قرضه ورکوی. وهوالموفق

---

(۱) قال العلامة الحصكفي : (وكذا لو خلطها المودع) بجنسها او بغيره (بماله) او مال آخر (بغير اذن) المالک (بحيث لا تتميز) الا بكلفة... (ضمنها) لاستهلاكها بالخلط. (الدرالمختار ۴:۵۵۴ كتاب الايداع)

وقال العلامة ابن نجيم: وكذا المتولي الامين اذا خلط بعض اموال الناس ببعض اوالامانة بماله فانه ضامن، فالمودع اذا خلطها بماله بحيث لا يتميز ضمنها. (الاشباه والنظائر ۲۷۵ كتاب الامانات من الوديعة)

(۲) قال الدكتور وهبة الزحيلي : ان فوائد المصارف حرام شرعا بنص القرآن والسنة واجماع الصحابة والامة والقول باباحتها مصادم بداهة للادلة الشرعية كلها النصية (القرآن والسنة) والاجتهادية (كالاجماع والقياس) ولا عبرة بقول من غير فقه وورع اوجهل بحقيقة اعمال المصارف.

(الفقة الاسلامي وادلته ۵:۳۷۵۴ فوائد المصارف البنوک حرام حرام حرام)

## د مسلم بينک د دکاندارانو د طرف نه قرضه اداکولو نه پس سره د زيادت نه قسط وار وصولول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په عرب اماراتو کې مسلم بينک دکاندارانو ته قرضې ورکوی چې د هغې طريقه دا ده چې دکانداران د لوئې لوئې سوداګرو نه مال اخستلو سره د بينک منيجر دکان ته راوستلو سره معائنه وکړی خو د بينک والا د پنځوس زرو روپو په ځای درې پنځوس زره روپۍ قسط وار وصولوی او د دې ټولو نه مخکې دکاندار دولس زره روپۍ ضمانت هم په بينک کې جمع کوی او بينک پيسې تاجر ته ادا کوی، دکاندار صرف مال يوسی آيا دا طريقه جائز ده؟ **بينواتوجروا**

المستفتي: نامعلوم...... ۱۸ مارچ ۱۹۸۷ء

**الجواب:** دا معامله د ﴿ **كل نفع جر نفعا** ﴾ (حديث) او قاعدې په بناء باندې ناجائز ده، او دا دويمه طريقه هم د دې دليل د وجې نه حرامه ده، (**الحديث رواه الحارث في مسنده** (۱) **والقاعدة ذكرها الشامي في رد المحتار** ۴۲۷/۵ (۲) والهندية ۲۶۴/۳ (۳) **وهوالموفق**

---

۱ ﴾ عن علي رضي الله عنه: قال قال رسول الله ﷺ كل قرض جر منفعة فهو ربا رواه الحارث بن ابي اسامة واسناده ساقط (بلوغ المرام من ادلة الاحكام ۲۸۲ رقم حديث: ۸۱۲)

وفي امداد الفتاوي: كل قرض جر منفعة فهو ربا وهو حديث حسن لغيره صرح به العزيزي في شرح الجامع الصغير.

(امداد الفتاوي ۲۷۰:۳ كشف الدجي عن وجه الربوا)

۲ ﴾ قال العلامة الشامي: (قوله كل قرض جر نفعا حرام) اي اذا كان مشروطا.

(ردالمحتار ۱۹۴:۴ مطلب كل قرض جر نفعا حرام)

۳ ﴾ وفي الهندية: قال محمد رحمه الله في كتاب الصرف ان ابا حنيفة رحمه الله كان يكره كل قرض جر منفعة. (فتاوي عالمگيرية ۲۰۲:۳ الباب التاسع عشر في القرض والاستقراض)

## د پاکستانی نوټ، هنډی او منی اردر شرعی حیثیت

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د موجوده پاکستانی نوټ څه حیثیت دې، او د هنډی او منی اردر شرعی حیثیت هم بیان کړئ؟ بینواتوجروا

**المستفتی:** نامعلوم.....۱۴۱۰ھ

**الجواب:** واضحه دې وی چې که نوټ پاکستانی وی یا غیر پاکستانی نه سرۀ زر دی او نه سپین زر او نه قباله ده بلکې د فلوس په شان ثمن عرفی او ثمن رائج دې. (۱) او دا دې هم واضحه وی چې هنډی او منی اردر نه بیع ده او نه قرض دې بلکې توکیل بالاجرت یا بلا اجرت دې. (۲) واضحه دې وی کله چې زید په پیښور کې بکر ته مثلا یو لاک روپۍ پاکستانۍ ورکړی او بکر ئې د خپل شریک په نوم چې په کابل کې تجارت کوی زید ته رقعه ورکړی او زید یو معین رقم د هغه شریك نه وصول کړی نو دا د منی اردر د

---

(۱) قال العلامة وهبة الزحيلي: وبعد الاطلاع علي قرار المجمع رقم (۹) في الدورة الثالثة بان العملات الورقية نقود اعتبارية فيها صفة الثمنية كاملة.

(الفقه الاسلامي وادلته ۷:۵۱۵۹ قرار رقم (۴) بشان تغير قيمة العلة)

وفي المنهاج: اختلف الاكابر في حقيقة النوت، قال بعضهم انه قبالة الحوالة وليس بثمن... وقال بعضهم هو ثمن رائج... قلت ويؤيد كونه اثمانا رائجة ان المتعارف ان من اقترض عددا من النوت لا يؤدي المقرض الا هذا العدد.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ۳:۱۲۷ باب ماجاء في زكوٰة الذهب والورق)

(۲) وفي شرح المجلة: اذا اشترطت الاجرة في الوكالة واوفاها الوكيل يستحقها وان لم تشترط ولم يكن الوكيل ممن يخدم بالاجرة يكون متبرعا وليس له مطالبته باجرة.

(شرح المجلة ۴:۴۴۵ المادة: ۱۴۶۷ الباب الثالث في بيان احكام الوكالة)

وفي الفقه الاسلامي: تصح الوكالة باجر وبغير اجر.

(الفقه الاسلامي وادلته ۵:۴۰۵۸ كتاب الوكالة، الوكالة باجر)

نوعیت نه جدا نه دي او په خپل نوم باندې منی آرډر لیږل ممنوع امر نه دې (۱) بهر حال دا توکیل دې نه بیع ده او نه اقراض دې او که بیع وی نو ثمن عرفی (فلوس) کې په بدلین کې د یو قبض کول کافی وی، کمافی رد المحتار ۲۵۰/٤ (۲) او که دا نوټ رسید او قباله وی نو د دې نظیر د هروی او مروی کپړو ترمینځه د بدلون په شان دې لکه چې په هغې کې یو موجل وی، کمافی الدر المختار علی هامش رد المحتار ۲۴۷/۴ (۳) وهو الموفق

**تنبیه** : د بیع په صورت کې دا بیع بیع بالتعاطی کې داخل ده، وهو المعمول فی ذلك العصر فحصل المخرج الثانی ...والله اعلم بالصواب

## پرائز بانډ د تعاون علی المعصیت د وجې نه حرام دي

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې پرائز بانډ کوم چې د عام بینکونو نه حاصلیږی دا د لاټرئ یو قسم دې او لاټری خو بالاتفاق علماء کرامو ناجائز کړې ده اوس خبره دا ده چې دا د لاټرئ د عام قسمونو نه دې، په دې کې که د چا نوم راوغلو نو هغه رقم کوم چې هغه داخل کړې دې

---

(۱) قال العلامة اشرف علي التهانوي : منی آرډر مرکب دې د دوه معاملو نه، یو قرض دې کوم چې اصل پیسو سره متعلق دې، دویمه اجاره ده کوم چې د فارم لیکلو او روانولو باندې د فیس په نوم ورکولې شي، او دواړه معاملې جائز دی نو د دواړو مجموعه هم جائز ده او چونکې په دې کې ابتلاء عامه ده په دې و جه دې تاویل سره د جواز فتوی مناسب ده. (امداد الفتاوي ۳:۱۴۶ کتاب الربوا ،تحقیق منی آڈر)

(۲) قال العلامة ابن عابدین : لوعین احد البدلین دون الآخر وفیه صورتان فان قبض المعین منهما صح والا فلا.

(ردالمحتار ۴:۲۰۱ باب الربوا)

(۳) قال العلامة الحصکفي : (وان عدما حلا) کهروي بمرويین لعدم العلة.

(الدر المختار ۴:۱۹۹ باب الربا)

هغه واپس ورکوی دغه شان په دې کې دا لزوم هم نشته چې د لاټرئ د راوتلو پورې هغه رقم چې چا فارم کټ کولو سره داخل کړې وی هغه به ئې واپس نه اخلی بعض علماء دې ته جائز وائی ځکه چې په دې کې جواری نشته او د مضاربت په شان دې او بعض علماء دې پرائز بانډ ته ناجائز او حرام وائی او وائی چې په دې کې سود دې او د تردد د وجې نه هم حرام دې لهذا تاسو د قرآن او سنت په رڼا کې تفصیل وکړئ. بینواتوجروا

المستفتی: مولانا عبدالباری صابر چمن بلوچستان .... ۱۲ کتوبر ۱۹۹۰ء

**الجواب:** دا معامله د تعاون علی المعصیة د وجې نه حرام ده. (۱) دا کمپنی وغیره د خپلو جیبونو نه انعامات نه ورکوی بلکې د اخستونکو په پیسو باندې اعلی سود کوی. (۲) او منافع څه په انعاماتو او څه په ذاتی مفاداتو کې خرچ کوی. وهوالموفق

## د لکی ډرا (Lucky Draw) حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د لکی ډرا شرعی څه حیثیت دې؟

المستفتی: فرید سویټ مرچنټ بیرون کچهری ګیټ پشاور .... ۲ رمضان ۱٤۰۳ھ

**الجواب:** دا معامله د لکی ډرا د اسلامی اصولو د لاندې حرام ده په دې سره په سودی کاروبار کې تعاون دې کوم چې حرام دې. لقوله تعالی ولا تعاونو

---

۱ ﴾ قال الله تبارک وتعالی: ولا تعاونوا علی الاثم والعدوان.
(سورة المائدة آیت : ۲)

۲ ﴾ وفي المرقاة: عن جابر قال لعن رسول الله ﷺ آکل الربوا وموکله وکاتبه وشاهدیه) وقال النووي فیه تصریح بتحریم کتابة المترابیین والشهادة علیهما وبتحریم الاعانة علی الباطل. (مرقاة المفاتیح ٦:٥٩ باب الربا)

على الاثم والعدوان (١) دا کمپنی د حاتم طائی کمپنی نه ده چې ممبرانو ته د خپل ذاتی مالونو نه انعامات ورکوی بلکه دا چې د دې قرعه اندازئ په ذریعه په قسطونو سره ادا شوې زیاتی مال گټل دی چې هغې ته جواری وائی. (٢) وهوالموفق

## د مورث په بیمه رقم باندې څه وکړی شی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زما ورور نیو جوبلی انشورنس کمپنی' سره خپل ځان بیمه کړې وو، د قدرت معامله وه چې هغه د دنیا نه آخرت ته لاړو، د هغه د وفات نه پس کمپنئ مونږ ته هغه پیسې راکړې یعنی زما ورور چې په کمپنئ کې څومره پیسې جمع کړې وې د هغې نه څو چنده زیاتې پیسې مونږ سره د کمپنئ جمع دی لهذا ستاسو نه تپوس کوم چې تاسو مونږ ته څه رائې راکوئ چې په دې پیسو باندې به مړی ته د قیامت په ورځ څه تکلیف وی او که نه او ماته به وی یا نه؟ او دا پیسې څنګه خرچ کړې شی، که رشته دارو ته ئې ورکړم کوم چې غریبانان دی نو جائز دی یا نه دی؟ په تفصیل سره ولیکئ که دا پیسې په مسجد یا دار العلوم کې خرچ کړې شی نو مړی ته به څه فائده وی؟ بینواتوجروا

المستفتی: حاجی معراج الدین دیر .... ١٦ مارچ ١٩٦٩م

**الجواب:** دا پیسې واجب التصدق دی، غریب رشته دارو او طلبة العلم ته ورکول ئې صحیح دی په دې سره به د وارثانو ذمه فارغه شی، ان شاءالله.

---

١) (سورة المائدة آیت: ٢)

٢) قال الله تبارک وتعالیٰ: یا یها الذین امنوا انما الخمر والمیسر والانصاب والازلام رجس من عمل الشیطان فاجتنبوه لعلکم تفلحون. (سورة المائدة آیت: ٩٠)

وقال العلامة الحصکفي: ومن السحت ما یؤخذ اصحاب معازف وقواد وکاهن ومقامر. (الدرالمختار مختصرا ٥:٣٠١ فروع کتاب الحظر والاباحة)

چونکې مړی وصیت نه دې کړې په دې وجه هغه به په خپل فعل جوارئ باندې ماخوذ وی (۱)

فی الهندية ۵/۳۸۵) اذا مات رجل وكسبه خبيث فالاولى لورثته ان يردوا المال الى اربابه فان لم يعرفوا اربابه تصدقوا به الخ (۲). وهوالموفق

**د هاؤس بلډنګ فنانس کارپوریشن ( House Building Finance Corporation ) د کورډپاره د کرایه په نوم پیسې ورکول سود دې یا نه دې؟**

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د House Building Finance Corporation کې به تاسو ته معلومه وی چې دا اداره قسط وار د کور جوړولو دپاره پیسې ورکوی او خلقو ته هم دا وائی چې دا رقم کرایه ده نو دا به واقعی کرایه وی یا سود؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** مناظرخان نثار اینډ کمپنی دکان نمبر ۲۲ شاهنګ سنټر مردان ۱۹ جون ۱۹۹۰ء

**الجواب:** دا نوې معاملات د سود نه خالی نه وی، دې ته جائز ویل د ناخبره سړی کار وی مثلا کله چې پلاټ (خالی زمکه) د زید ده او پنځوس زره روپۍ

---

۱ ) قال العلامة الدكتور وهبة الزحيلي: وتجب الوصية بحق الادميين كوديعة ومغصوب اذا جهل ولم يعلم. (الفقه الاسلامي وادلته ۱۰: ۷۴۴۴ كتاب الوصايا، نوع حكم الوصية الشرعي)

وقال العلامة ابن عابدين: وفي المواهب تجب علي مديون بما عليه لله تعالي او للعباد. (ردالمحتار ۶:۴۵۸ كتاب الوصايا)

۲ ) (فتاوي هندية ۵:۳۴۹ كتاب الكراهية، الباب الخامس عشر في الكسب)

وقال العلامة ابن عابدين: والحاصل انه ان علم ارباب الاموال وجب رده عليهم والا فان علم عين الحرام لا يحل له ويتصدق به بنية صاحبه وان كان مالا مختلطا مجتمعا من الحرام ولا يعلم اربابه ولا شيئا منه بعينه حل له حكما والاحسن ديانة التنزه عنه. (ردالمحتار ۴:۱۴۶ مطلب فيمن ورث مالا حراما)

دې ادارې د قرض په طور ورکړې نو دا اداره د څه څيز په معاوضه کې زيادت اخلي.(۱) والله اعلم بالصواب

## د مسجد جمع شوې سودې رقم په مسجد کې خرچ کول

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د يو مسجد رقم په ډاک خانه کې دوه زره روپئ جمع کړې شوې وو، د ۱۹۷۳ء نه ۱۹۸۴ پورې هغې سره د منافع پيسې جمع کولو سره اوس ټولې ۲۰۰۰۰ روپئ جوړې شوې دي، آيا دا د منافع رقم مونږ په مسجد کې لګولې شو؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد اعظم مري.....۲۰ نومبر ۱۹۸٤ء

**الجواب:** دا سودې مال په مسکينانو او غريبو طالبانو تقسيمول ضروري دي. (۲) په نورو امورو کې د دې خرچ کول خصوصا د مسجد په تعمير کې بيخي ناجائز دي.(۳) وهو الموفق

---

۱) عن علي رضي الله تعالیٰ عنه قال قال رسول الله ﷺ كل قرض جر منفعة فهو ربا رواه الحارث بن ابي اسامة واسناده ساقط.

(بلوغ المرام من ادلة الاحكام ۲۸۲ رقم حديث: ۸۱۲)

وفي امداد الفتاویٰ: كل قرض جر منفعة فهو ربا وهو حديث حسن لغيره صرح به العزيزي في شرح الجامع الصغير.

(امداد الفتاویٰ ۳:۲۷۰ كشف الدجي عن وجه الربوا)

۲) قال العلامة ابن عابدين: ويردونها علي اربابها ان عرفوهم والا تصدقوا لان سبيل الكسب الخبيث التصدق اذا تعذر الرد علي صاحبه.

(ردالمحتار ۵:۲۷۳ كتاب الحظر والاباحة، فصل في البيع)

۳) قال العلامة ابن عابدين: (قوله لو بماله الحلال) قال تاج الشريعة اما لو انفق في ذلك مالا خبيثا ومالا سببه الخبيث والطيب فيكره لان الله تعالیٰ لا يقبل الا الطيب فيكره تلويث بيته مالا يقبله اه شرنبلالية (ردالمحتار ۱:۴۸۷ مطلب كلمة لا بأس دليل علي ان المستحب غيره، قبيل مطلب في افضل المساجد) ...[بقيه برصفحه آئنده...

## د انشورنس حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې د

---

...بقیه ازحاشیه گذشته]

وفي مدارک التنزيل: كل مسجد بني مباهاة او رياء او سمعة او لغرض سوي ابتغاء وجه الله او بمال غير طيب فهو لاحق بمسجد الضرار.

(مدارک التنزيل علي هامش تفسير الخازن ۲:۲۸۱ سورة التوبة)

وفي كفاية المفتى: **سوال:** چونکې په مسلمانانو کې د معتمدعلیه امین ملاویدل مشکل وو په دې وجه د سورتی جامع مسجد رنګون روپۍ په سرکاری بینک کې (د محفوظ کولو په غرض سره، نه د سود حاصلولو په غرض سره) جمع کړې شوې، چه ددې شماره به تقریباً یو لاك روپۍ وی چه ددې په وجه بینك دخپلې قاعدې (اصولو) مطابق په سود لګولو سره اندازاً په حساب سره درې څلور سوه روپۍ د میاشت، هرکال جمات ته ادا کوی، لیکن ټرستیان؟؟ جومات په سود ګټرلو سره دا روپۍ اخستل نه خوښوی، که ټرستیان؟؟ جومات دې لره د سود اعتقاد اونه کړی بلکه د رضامندئ د عطیې په خیال سره ئې وصول کړی نو شرعاً به جائز وی یا نه؟ په پورته پیش کړې شوی سوال کې دا ښکاره کړې شوی دی چې معتمد علیه امین ملاویدل مشکل وو، په اصل کې دا خبره نه ده بلکې د یوې وړاندینئ مقدمې کومه چې دې جومات سره متعلق ده دهغې نه پس د حکومت (د بینك) د فیصلې مطابق ټرستیان جومات مجبوره دی چه د زرو روپو نه زیاتې پیسې په بینك کې جمع کړی؟

**جواب:** سرکاری بینك امین ګڼړل او دومره ډیرې روپۍ ورته ورکول چې دهغې نه هغه ډیرې لوې لوې فائدې حاصلوی، ناجائز دی، په مسلمانانو واجب دی چه هغوی داسې تعلقات حکومت سره نه ساتی، چې دهغې نه هغوی ته دومره زیات امداد او فائده حاصله شی، خو که چېرې سخته مجبوری وی (لکه چې د سوال په آخر کې ښکاره کړې شوې ده) نو ددې مجبورئ ختمولو پوره کوشش دې اوکړی، اود مجبورئ ختمیدلو پورې چې کوم د سود پیسې بینك ورکوی هغه دې اخلی او احتیاطاً دې دغه پیسې د غریبانانو او مسکینانو مسلمانانو په ضروریاتو کې د جومات د طرفه خرچه کوی. فقط

(کفایت المفتي ۸:۶۶ باب الربوا ،مسجد کي رقم پر سود لينا)

انشورنس کمپنۍ نمائنده دې هغه یو بل سړی ته ویل چې لس زره روپۍ به د یویشت کالو په موده کې په کمپنۍ کې جمع کول وی، په یویشت کالو کې د لسو زرو روپو رقم پنځه دیرش زره جوړیږي آیا شرعی نقطه نظر سره پنځه دیرش زره روپۍ د لس زره روپو جمع کونکی دپاره جائز دی او دا نمائنده دا لس زره روپۍ قسط وار اخستلو سره په دې باندې تجارت کوی که په تجارت کې څه نقصان راشی نو د دې پنځه دیرش زره منافع په ځای د درې دیرش زرو احتمال هم موجود دې او نور نقصان د ټیکس وغیره په ذریعه پوره کولې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: تاج محمد لژه هائی سکول راولپنډی ۱۰ فروری ۱۹۷۵ء

**الجواب:** چونکې د ممبر په رقم باندې سودی معاملات کولې شی. (۱) بله دا چې په دې معامله کې د نفع مقدار هم متعین وی لهذا دا معامله د شریعت په رڼا کې ناجائز ده. (۲) وهوالموفق

## د کمپنۍ د کورونو دپاره قرضه ورکولو سره د هغې په کرایه کې شریکیدل سود دې یا نه؟

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې کمپنۍ او د

---

۱) وفي المرقاة: (عن جابر قال لعن رسول الله ﷺ آكل الربا ومؤكله وكاتبه وشاهديه)

قال النووي فيه تصريح بتحريم كتابة المترابيين والشهادة عليهما وبتحريم الاعانة علي الباطل. (مرقاة المفاتيح شرح المشكوٰة المصابيح ۶:۵۹ باب الربا)

۲) وفي شرح المجلة "كون حصص الربح التي تنقسم بين الشركاء كالنصف والثلث والربع جزأً شايعاً شرط فاذا تقاول الشركاء علي اعطاء احدهم كذا قرشا مقطوعا تكون الشركة باطلة.

(شرح المجلة ۲۶۰: ۴ المادة: ۱۳۳۷ الفصل الثاني في بيان الشرائط العمومية في شركة)

وقال العلامة الحصكفي: وشرطها اي شركة العقد... عدم ما يقطعها كشرط دراهم مسماة من الربح لاحدهما.

(الدرالمختار ۳:۳۶۹ كتاب الشركة)

ځمکې مالک خپل مینځ کې په شراکت سره کاروبار شروع کړو حال دا چې کمپنۍ والا پیسې ورکوی او د کور مالک په دې پیسو سره کور جوړوی اوس امدنی دواړه برابر تقسیموی اوس ځمکې مالک کمپنۍ والا ته وائی چې زما کومه حصه ګټه چې راځی هغه د خپلو روپو په عوض کې اخله چې تاسو ته پوره پیسې ملاؤ شی او ماته دا کور ملاؤ شی، داسې کول جائز دی یا ناجائز؟ بینوا توجروا

المستفتی: صدیق شاه پیښور.......۳ مارچ ۱۹۹۱ء

**الجواب:** دا معامله ناجائز ده ځکه چې که کمپنۍ دا رقم مالک ته د قرض په طور ورکړې وی نو دا تعمیر به هم د ځمکې د مالک مملوک وی.(۱) د کمپنۍ دپاره به نیمه کرائی ورکول سود وی. (۲) او که کمپنۍ دا رقم په طور د شراکت ورکړې وی او نیمه کرایه د ځمکې مالک د ځمکې او نیمه کرایه کمپنی د کور د تعمیر وصولوی نو په ظاهره کې دا ناجائز نه ده خو کله چې کمپنی ټوله کرایه وصولوی نیم په طور د استحقاق او نیم په طور د آبادۍ د قیمت نو دا ناجائز ده ځکه کله چې تعمیر د ځمکې په مالک باندې قسط وار خرڅ شو نو د کمپنۍ حق ختم شو. (۳) وهوالموفق

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: ويملكه المستقرض بالقبض كالصحيح.
(ردالمحتار ۱۹۱: ۴ فصل في القرض)

وقال الدكتور وهبة الزحيلي: يثبت الملک في القرض عند ابي حنيفة ومحمد بالقبض... لانه خرج عن مالک المقرض وثبت له في ذمة المقترض مثله لاعينه.
(الفقه الاسلامي وادلته ۳۷۹۰: ۵ الفصل الثاني القرض)

۲) عن علي رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ كل قرض جر منفعة فهو ربا رواه الحارث بن ابي اسامة واسناده ساقط. (بلوغ المرام من ادلة الاحكام: ۲۸۲ رقم حديث: ۸۱۲)

۳) وفي شرح المجلة: وشروط المعقود عليه ستة... وكون الملک للبائع فيمايبيعه لنفسه... وما يكون شرطا لانعقاد البيع يكون شرطا لانعقاد الاجارة.
(شرح المجلة ۵۲۷: ۲ المادة: ۴۴۴ الفصل الثاني في شروط انعقاد الاجارة)

## د کمپنۍ سود په بینک کې د جمع شوی د سود د رقم نه ادا کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې دلته په انګلینډ کې د کور اخستل او خرڅول داسې کیږی چې مثلا د کور قیمت دولس سوه پاؤنده دې دا مکمل قیمت نقد هم ورکولې شی، که نقد نه وی نو په قیمت کې څو پاؤنده مثلا دوه سوه پاؤنده اول ورکوی او بقایا زر پاؤنده د دې ځای کارپوریشن یا بله یو کمپنی یا سوسائتی ورکوی چې خرڅونکی ته دولس سوه پاؤنده پوره ملاؤ شی او اخستونکی ته هر درې میاشتې پس د بقایا رقم ورکولو دپاره د بل رسید راځی او دا پیسې به د ۱۰۰۰ پاؤنډ سود سره ورکول وی.

اوس ابراهیم کور اخستل غواړی او د هغه رقم په بینک کې جمع دې او هر کال په دې رقم باندې سود هم راځی نو ابراهیم په بینک کې جمع شوی سود له د کمپنۍ یا سوسائتی یا کارپوریشن نه د اخستلی شوی رقم په سود کې ورکولې شی یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: محمد اعظم آف انګلینډ......۲۹ ستمبر ۱۹۶۹ء**

**الجواب:** ابراهیم که د بینک نه سود اخستلې وی نو هغه پیسې به ضرور صدقه کوی.(۱) او کمپنۍ ته به سود د دې نه نۀ ورکوی او که ابراهیم د وصولولو نه مخکښې د بینک په ذریعه په دې پیسو باندې د کمپنۍ سود ادا کړی نو په دې کې هیڅ باک نشته. **لعدم صحة تصرفه فیه قبل القبض**

---

۱) وفي تفسیر القرطبي: ان سبیل التوبة من الاموال الحرام ان کانت من ربا فلیردها علي من اربي علیه ویطلبه ان لم یکن حاضرا فان ایس من وجوده فلیتصدق بذلک عنه.
(الجامع لاحکام القرآن للقرطبي ۳:۳۴۹ سورة البقرة آیت:۲۷۹)

وقال العلامة ابن عابدین: ویردونها علي اربابها ان عرفوهم والا تصدقوا بها لان سبیل الکسب الخبیث التصدق اذا تعذر الرد علي صاحبه.
(ردالمحتار ۵:۲۷۳ کتاب الحظر والاباحة، فصل في البیع)

شرعا فكان اهل البنك تبرعوا من جانبه في الحقيقة. فقط

## دوه ډوډئ د يوې ډوډئ سره بدلول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې دوه د سوډې والا ډوډئ بغير سوډې والا يوې باندې بدلول جائز دی يا نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم

**الجواب:** جائز دی خو کله چې لاس په لاس وی. (۱) بخلاف الاستقراض (۲) وبخلاف المكافأة (۳) وهو الموفق

## د بينک د منيجرئ كيشرئ او نورو ملازمتونو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د بينکونو ملازمت که منيجری وی يا كيشئيری يا نور ملازمت جائز دې که حرام؟ بينوا توجروا

المستفتي: تقويم الحق آدينه صوابئ ..... ۲۲ مارچ ۱۹۸۸ء

---

۱) وفي الهندية: وان وجد القدر والجنس حرم الفضل والنساء وان وجد احدهما وعدم الآخر حل الفضل وحرم النساء. (فتاوي عالمگيرية ۳:۱۱۷ الفصل السادس في تفسير الربا واحكامه)

۲) وفي شرح الوقاية: ويستقرض الخبز وزنا لا عدداً عند ابي يوسف وبه يفتي. (شرح الوقاية ۳:۶۹ باب الربوا)

۳) وفي المرقاة: (فان خير الناس احسنهم قضاء)... وفي الحديث دليل علي ان من استقرض شيئاً يرد مثل ما اقترض... وفيه دليل علي ان من استقرض شيئاً فرد احسن او اكثر منه من غير شرطه كان محسناً ويحل ذلک للمقرض. (مرقاة المفاتيح ۶:۹۸ باب الافلاس والانظار)

**الجواب:** چونکې په بینک کې مالونه د جمع کونکو په اصل زر کې څه کمې نه راځي، لهذا لازما به دا منل راځي چې د عملې وغیره تنخواه ګانې خالص د سود نه ورکولې شي.(۱) وهوالموفق

## په عموم بلوی سره سود نه شي جائز کیدې

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د بینک ادارې د حکومت مالیاتی ادارې دی او سودی هم. د ملک په زرګونو کسان دې سره تړلی دی، یعنی عموم بلوی ده. نو د دې ملازمت د مذهب په نظر کې څنګه دې؟ او د دې ګټه څنګه ده؟ بینواتوجروا

المستفتي: قاضی نذیر محمد، تاجوړی لکی مروت.......۱۸| رمضان ۱۳۹۵ هـ

**الجواب:** محترم المقام دامت برکاتکم! السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته ـ وروسته له سلامه واضحه دې وی چې سود یقینی طور سره حرام دې.(۲) او دا مروجه سود د مشرکین عرب معمول وو د دې د حرمت متعلق آیة الربا نازل شوې دې او کوم چې عملی منصوصی طور سره حرام وی هغه د عموم

---

۱) ولا تعاونوا علي الاثم والعدوان . (سورة المائدة آیت ۲)

وعن جابر رضي الله تعالیٰ عنه: قال لعن رسول الله ﷺ آکل الربا وموکله وکاتبه وشاهدیه وقال هم سواء. (مشکوٰة المصابیح)

وفي المرقاة: (وکاتبه وشاهدیه) قال النووي فیه تصریح بتحریم کتابة المترابیین والشهادة علیهما وبتحریم الاعانة علي الباطل.

(مرقاة المفاتیح ۵۶:۶ باب الربا)

۲) قال الله تبارک و تعالیٰ "احل الله البیع وحرم الربوا".

(سورة البقرة آیت ۲۷۵)

وقال الله تبارک وتعالیٰ: یأیها الذین امنوا اتقوا الله وذروا ما بقي من الربوا ان کنتم مومنین". (سورة البقرة :آیت ۲۷۸)

بلوی د وجې نه نۀ شئ حلال کيدلې.(۱) لهذا په حکومت باندې ضروري ده چې دا بند کړی او د علماء کرامو مشوره قبوله کړی او سود اخستل او ورکول بند کړی او د مالکانو په اجازت سره په هغه مالونو کې تجارت وکړی، او ملازمينو ته دهغه منافع نه تنخواه ورکړی. او په مضاربت صحيحه سره دې هغوی ته مالونه ورکړی. خو عملا دا گرانه ده، ځکه چې دمضارب سره د منافع شرح مقررول مفسد عقد ده.(۲) او بغير د تقرئ نه اعتماد کول د دې دور کار نه دې. وهوالموفق

## د بيع په وخت د پيسو په واپسی کې د کمی زياتی حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د دکاندار نه د دوه انو سودا اخستلو سره کله چې مونږ روپۍ ورکوو نو هغه دولس پيسې واپس کوی او عام طور سره کله چې خلق د انې په ذريعه لين دين کوی نو په دوه انو اخستلو کې ديارلس پيسې وصولوی او په ورکولو کې بقايا دولس پيسې دغه شان دوه نيمې انې کله چې يو څيز مقرر کولې شی چې د هغې سرکاری شپاړس پيسې وی نو ورکونکې پنځلس پيسې ورکوی خو د روپۍ په ذريعه اخستونکې شپاړس پيسې کټ کوی، پس په دې عدم برابرۍ يا د کمی زياتی په لين دين کې د سود گناه خو نه کيږی؟ **بينواتوجروا**

المستفتی: محمد رفيق امام مسجد راولپنډی.... ۱۱ فروری ۶۹ء

---

۱ ﴾ قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالي :المشقة والحرج إنما يعتبران في موضع لا نص فيه، وأمامع النص بخلافه فلا...... ولا إعتبار عنده بالبلوي في موضع النص كما في بول الآدمي فإن البلوي فيه أعم.

(الأشباه والنظائر ۸۳,۸٤القاعدة الثالثة : المشقة تجلب التيسير)

۲ ﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالي ''وشرطها أمورسبعة....وكون الربح بينهما شائعا فلو عين قدراًفسدت''.(الدرالمختار ۵٤۰:٤ كتاب المضاربة)

**الجواب**: د رضا او ابراء نه بغیر ناجائز ده. الله پاک فرمائی:

﴿ ویل للمطففین ، الذین اذا اکتالوا علی الناس یستوفون واذا کالوهم او وزنوهم یخسرون ﴾(۱) وهوالموفق

## د مالک د سودی او غیر سودی رقم په لیکلو باندې اجرت اخستل

**سوال**: څه فرمائی علماء کرام ددې مسئلې په باره کې چې زمانیک سوداګر دې او زما کار حساب کتاب ساتل دی. د هغوی لس لاکه درهم په بینک کې پرتې دی، اوس هغه د دولسو لاکهو سودا کوی دوه لاکه روپۍ د بینک نه قرضه اخلی حال داچې بینک والا په دې باندې سود اخلی. زما کار په بینک کې دجمع شوې پیسو لیکل، چیک کټ کول وغیره دی، نو عرض دا دې چې دغه شان دملازم په صورت کې به زما تنخواه حلاله وی که حرامه؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم

**الجواب**: چونکې تاسو د بینک ملازم نه یئ د هغه سوداګر ملازم یئ په دې وجه ستاسو تنخواه مشتبه ده حرامه نه ده.(۲) او په موجوده دور کې د مشتبهاتو نه بچ کیدل ډیر ګران دی. (۳) وهوالموفق

---

۱) سورة المطففین آیت ۳،۲،۱: پاره ۳۰)
قال العلامة القرطبي رحمة الله تعالیٰ " ویل للمطففین أي الذین ینقصون مکاییلهم و موازینهم ...... وفي الموطا قال مالک ویقال لکل شئ وفاء و تطفیف ...... المطفف هو الذي یخسر في الکیل والوزن ولا یو في حسب ما یبناه. (تفسیر القرطبي ، ۱۹۰: ۲۱۹)

۲) وعن النعمان بن بشیر رضي الله تعالیٰ عنه قال قال رسول الله علیه وسلم الحلال بین و الحرام بین و بینهما مشتبهات لایعلمهن کثیر من الناس فمن اتقی الشبهات استبرأ لدینه وعرضه ومن وقع في الشبهات وقع في الحرام.
(مشکوٰة المصابیح ص ۲۴۱ باب الکسب و طلب الحلال)

۳) قال العلامةابن نجیم رحمه الله تعالیٰ: لیس زماننا زمان... [بقیه برصفحه آئنده...

# د بیمه شرعی حیثیت

**سوال:** د بیمه شرعی حیثیت څه دې؟ حلال ده که حرام؟ بینواتوجروا

المستفتی: فضل امین ......ماهنامه الحق اکتوبر ۱۹۸٦ء

**الجواب:** بیمه حرام ده، د بیمه دا ښکلې او شین باغ د محرمات شرعیه نه ډک دې په دې کې سود، غیر شرعی شرطونه او دهوکه ورکول ښکاره موجود دی. (۱)

**حرمت اول**: بیمه کمپنی چې کومې پیسې د بیمه کونکو نه اخلی نه دا وقف دې او نه هبه بلکې شرکت یا قرض حسنه دې، دا کمپنی دا رقم زیات تر کاروباری کمپنو یا افرادو ته په سود باندې ورکوی او شاذ او نادر ئې په تعمیراتو باندې خرچ کوی، نو لازمی طور به په تنخواه ګانو او حوادثات معهوده کې زیات تر خرچ د دې سودی منافع نه وی صرف د تعمیراتو منافع د دې عظیم اخراجاتو د پوره کولو نه عاجز ده. پس بهر حال په بیمه کولو کې تعاون علی المعصیة موجود دې کوم چې د نص قرآنی په بناء باندې حرام

---

...بقیه ازحاشیه گذشته ] اجتناب الشبهات کما في الخانیة و التجنیس.

(الأشباه والنظائر ۲۸۷ کتاب الحظر والاباحة)

(۱) قال الدکتور وهبة الزحیلي: اما التامین التجاري اوالتامین ذوالقسط الثابت فهو غیر جائز شرعاً وهو رأي اکثر فقهاء العصر وهوما قرر المؤتمر العالمي الاولي للاقتصاد الاسلامي في مکة المکرمة عام (۱۳۹٦ه/۱۹۷٦م)، وسب عدم الجواز یکاد ینحصر في امرین هما الغرر والربا... الي ان قال بعد الورقتین، والخلاصة: یشتمل التأمین ذي القسط الثابت علي خمسة اسباب تجعله حراماً (۱) الربا (۲) الغرر (۳) الغبن (۴) القمار (۵) الجهالة.

(الفقه الاسلامي وادلته ۵: ۳۴۲۳، ۳۴۲۸ موقف الفقه الاسلامي من التأمین)

دي. قال الله تبارك وتعالى: ولاتعاونوا على الاثم والعدوان.(۱)
بله دا چې په دې بیمه کارئ کښې ددې ناجائز تعاون نه علاوه د سود خورئ دویم نوعیت هم موجود دې ځکه چې که دا ثابته شي چې دا پیسې بیمه ورکونکی په طور د قرض حسنه جمع کړې دې نو دې بیمه دار ته چې کومې زیاتی پیسې یو وخت کې ورکولې شي هغه به سود وي.
قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: كل قرض جر نفعا فهو ربا (رواه الحارث بن محمد في مسنده وروى البخاري في صحيحه في تاريخه مايدل عليه(۲).

**دویم حرمت**: کله چې بیمه ورکونکې قسط اول ادا نه کړي نو دا کمپنی د هغه قسط اول ختموی کوم چې د امانت یا قرض غصب دې او صریح ظلم دې (۳) او د بیمه دار جوړیدو په وخت د دې شرط لګول د غیر شرعی شرط لګول دی.

**دریم حرمت**: لکه چې بیمه دار کله د خپل جائیداد مالیت ښکاره کولو سره کمپنۍ ته دهوکه ورکوی او یا ختم شوې بیمه شوې مال لره هلاک کولو سره د کمپنۍ نه پوره پیسې وصولوی نو دغه شان دا کمپنی غیر معمولی منافع

---

۱) (سورة المائدة آيت: ۲)
وفي المرقاة: (عن جابر قال لعن رسول الله صلي الله عليه وسلم آكل الربا وموكله وكاتبه وشاهديه) قال النووي فيه تصريح بتحريم كتابة المترابيين والشهادة عليهما وبتحريم الاعانة علي الباطل.
(مرقاة المفاتيح ۵۹: ۶ باب الربا)
۲) (بلوغ المرام من ادلة الاحكام ۲۱۰ ابواب السلم والقرض)
۳) قال العلامة شمس الدين الذهبي: الكبيرة السادسة والعشرون: الظلم باكل اموال الناس واخذها قال الله تعالي سيعلم الذين ظلموا اي منقلب ينقلبون. (سورة الشعراء: ۲۲۷). (الكبائر للامام الذهبي ۱۱۸)

لره هضم کوی، او بیمه دار په څو فیصده باندې راضي کوي. بله دا چې کمپنۍ د خطرې په وخت خپله بچ کیږي او نقصان ټول قوم ته ملاویږي. وهوالموفق

محمد فرید عفی عنه

خادم دارالافتاء والحدیث بدارالعلوم حقانیه

## د بیمه کمپنۍ دجل

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې جناب عالي !د بیمې د حرمت په باره کې ستاسو فتوی په ماهنامه الحق اکتوبر ۱۹۸۲ء په رساله کې او په ماهنامه النصیحة چارسده جلد نمبر ۲ شماره نمبر ۲ په صفحه نمبر ۴۷، ۴۸ باندې شائع شوې ده، خو بیمه ورکونکي حضرات تاسو ته یو فتوی منسوب کوي کومه چې د ماهنامه الحق په جلد نمبر ۲۹ شماره نمبر ۱ صفحه ۳۴ باندې نقل کولو سره جعلي ویلې شوې ده او دستخط ته ئې هم جعلي ویلې دې او ورسره د دې شمارې په صفحه ۳۵ باندې د بیمې د حرمت په باره کې ستاسو فتوی هم نقل کړې ده.

خو تاسو پخپله د دې فتوی وضاحت وکړئ چې آیا دا جعلي ده یا اصلي؟ او د دې فتوې استفتاء څنګه وه؟

او ورسره د بیمه شرعي حیثیت هم مدلل او مفصل بیانولو سره مهرباني وکړئ. شکریه

**نوټ:** د بیمې والا حضراتو د طرف تاسو حضراتو ته د منسوب کړې فتوې نقل لاندې لیکلې شي:

**الجواب:** د دې حواله جاتو نه واضحه ده چې دیني مسائل د وخت تیریدلو سره د بد نیتۍ نه پیدا کیږي د برصغیر اکثریت چې د کومو علماء کرامو تابعداري کوي د اکثرو فتوی بیمه ته جائز وائي په دې خبره کې د هیڅ شک او شبهې ګنجائش نشته چې د شرکت مسئله په ظاهر کې قابل اعتراض نه

ده، پس که بیمه کمپنی په دې پیسو سره تجارت، کاروبار، خدمات او نورو شعبو کې ممبرانو ته د منافع په شکل کې څه نه څه ورکوی نو دا به قابل اعتراض نه وی

ددې نه علاوه سائل چې په خپل هر کلی لیک کې د کومو خیالاتو اظهار کړې دې دا رشتیا دی چې تول حواله جات (اشاره) هغه مشهور او منلې شوې حقائق دی او په دې کې دځه بحث او مباحثې گنجائش نشته.

حقیقت دا دې چې د انتشار او افتراق نه د بچ کیدو دپاره دا ضروری ده چې په اسلامی حکومت کې او سیدو سره بار بار پیچیده مسئله نه جوړوی، الغرض د سود نه مراد هغه رقم چې قرض ورکړې شی یا واخستلې شی.

مهر دارالعلوم حقانیه

فتوی نمبر: ۳۰۲۲۲

محمد فرید عفی عنه

المستفتی: مولانا حزب الله جان ترناب چارسده

**الجواب:** د مخکې زمانې نه زما دا فتوی ده چې بیمه حرامه ده په دې کې سود، پدیکې خیانت او دهوکه غوندې جرمونه موجود دی، دا د بیمه معاونین د علماء کرامو نه د جواز فتوی حاصلوی او جواب شائع کوی او سوال نه شائع کوی او عوامو ته دهوکه ورکوی.

محمد فرید عفی عنه

مهر دارالعلوم حقانیه

فتوی: ۲۳۹۵۷

## د مفتی رشید احمد بن مفتی محمد فرید (رحمه الله) جواب

**باسمه تعالی:** دار الافتاء دار العلوم حقانیه کې د آخری فتوی نمبر ۲۳۹۲۷ دې او ددې موجوده فتوې نمبر ۳۰۲۲۲ ظاهر کړې شوې دې، کوم چې د

ځان نه جوړ کړې دروغو او خيانت باندې صراحة دلالت کوي، تول مسلمانان دې د هغوى د دهوکې نه ځان وساتي. والله اعلم. رشيد احمد عفى عنه.

دار الافتاء دار العلوم حقانيه اکوړه ختک ٩٥ء / ٥ / ٣١

## په بيمه کې ورکړې شوې رقم د نه واپس کيدو په صورت کې ضائع کولې شي

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې يو سرکارى ملازم خپل جى پى فنډ د پنځويشتو کالو دپاره بيمه کړې وو. هغه په قسط وار ادائيګئ کې مبلغ ٧٥٠ روپئ تر اوسه پورې ادا کړى دى اوس هغه ته معلومات وشو چې بيمه ناجائز ده هغه غواړي چې هغه ترک کړي خو ٧٥٠ روپئ مفته کې خرابيږى نو په دې صورت کې څه کول پکار دى؟ بينواتوجروا

المستفتي: عبدالقدوس، موضع مآله ډهيرى رستم......٨٣ء | ٢ | ٢٣

**الجواب:** که په څه حيله او تدبر سره پيسې واپس کول ممکن وى نو واپس دې واخلى کنه نو ضائع کيدو ته دې پريږدى. (١) وهوالموفق

## بينکونو لره د سود نه د پاکولو تجاويز

**سوال:** په پاکستان کې سودى کاروبار لره د دې حرام خورئ نه هر قسم پاکولو دپاره اسلامى نظرياتى کونسل د ماهرين اقتصاديات يو پينل مقرر کړې وو، چې هغوى ماهرينو ته اوښائى چې هغه نور کوم کوم صورتونه کيدې شي چې د بينکارئ نظام قائم خو وى او د هغې نه جائز فائدې حاصليږى او هغه د سود نه بالکل پاک وى پس هغوى د بحث او تحقيق نه پس څه صورتونه تجويز کړې دى، اسلامى نظرياتى کونسل دا ضرورى ګنى

---

١ )وفي شرح المجلة :درء المفاسد أولي من جلب المنافع أي رفعها وإزالتها فاذاتعارضت مفسدة و مصلحة فدفع المفسدة مقدم في الغالب لأن اعتناء الشرع بالمنهيات أشدّ من اعتنائه بالمامورات. (شرح المجلة ١:٧٠ المادة ٣٠)

چې د دې په باره کې د حضرات علماء کرامو رائې هم حاصله کړې چې آیا د شریعت اسلامیه په رڼا کې دا صورتونه جائز دی یا نه؟
تاسو په دې دینی مسئله کې د کونسل سره ښه تعاون وکړئ او په دې مسوده په ټولو صورتونو باندې فقیهانه نقطه نګاه سره ښه غور او خوض فرمائیلو سره د هغې په باره کې مفصل طور د شرعی دلائلو سره خپله رائې مرتب کړئ چې د دې رائې په رڼا کې آخری فیصله کولو سره د ملک صدر ته خپل سفارشات ولیږو

## حل طلب مسائل

**۱: د اصل نفع او نقصان دپاره ضمانت** : موجوده بینکاری نظام په اعتماد باندې قائم دې، بینک د خپلو امانتونو ډیره حصه په کاروبار کې لګوی او یا یې قرض ورکوی. عام معاشی حالت که هرڅنګه وی او دقرض اخستونکی که هر څه حال وی، بینک په هر حال کې اصل زر د سود سره وصولوی په دې وجه د بینک کهاته دارانو ته یقین وی چې د هغوی سرمایه به محفوظ وی، او میعادی امانت دارانو ته به د مقرره شرح مطابق سود هم ملاویږی دا هغه اعتماد دې چې د هغې په بناء باندې په بینکونو کې جمع شوې پیسو کې بالعموم اضافه کیږی. که دا اعتماد د څه وجې نه متزلزل شی نو د بینکارئ نظام ډیرې بدې طریقې سره متاثر کیږی چې د هغې نتائج د ملکی معیشت دپاره هم نقصان ورکونکې کیدې شی، دا زمونږ پوخ یقین دې چې د بینکارئ نظام که د سود په ځای د نفع او نقصان په بنیاد باندې اوچلولې شی نو ډیرې خرابیانې به بند شی کومې چې موجوده سودی نظام پیدا کړی دی خو د دې څیز نه انکار نه شی کیدې چې د دومره مودې پورې د سودی نظام د رائج کیدو په وجه باندې د نظام په دې بدلون سره د خلقو په ذهن کې شکوک او شبهات پیدا کیدې شی، چې د شرکت او مضاربت په اصول باندې د عمل کولو د وجې نه بینک نقصان اوچتولې شی او کیدې شی چې هغوی چې کومې پیسې په بینکونو کې جمع کړی دی هغه ډوبې شی.
د نوی نظام د کامیابئ دپاره به دا ضروری وی چې د کهاته دارو اعتماد په

بینکونو باندې په هر صورت کې قائم وی، یعنی د اهل علم په نزد دې اعتماد لره په هر حال کې د برقرار ساتلو دپاره د ضمانت طریق کار خپلول غواړی خو په دې معامله کې د شرعی حیثیت د تعین ضرورت دې، په دې سلسله کې غور طلب امور لاندې لیکلې شی:

۱: د حکومت دپاره دا جائز ده چې هغوی دا ضمانت ورکړی چې که غیر سودی بینک نقصان وکړو نو بیا به هم د طلب کولو په وخت د کهاتې والو ټوله سرمایه محفوظه وی اگر چې حکومت ئې د خپل کوره ادا کوی.

۲: که بینک ته نقصان ورسیدو نو حکومت به د هغه کهاتې والو د نقصان پوره والې کوی چا چې خپلې پیسې په بینک کې د نفع او نقصان د حصه دارئ په اصول باندې کیښودلې وې.

۳: که د یو خاص شرح نه کمه نفع شوې وی نو حکومت به دې کمی لره:

الف: په هر حال کښې به دا نقصان پوره کوی.

ب: په هغه حال کې به دا نقصان پوره کوی کله چې نقصان د اتفاقی یا قدرتی وجوه په بناء باندې راغلې وی.

ج: په هغه حال کې به نقصان پوره کوی چې دهغې وجه د حکومت پالیسی وی یا غیر متوقع ملکی او غیر ملکی عوامل وی.

۴: که دا قسم ضمانت ورکړې شی نو آیا دا ضمانتونه د حکومت په ځای بیمه کمپنی هم ورکولې شی؟ یاد ساتئ دې وخت کې پاکستانی بینک په قومی ملکیت کې دې.

**۲: په نقد او قرض قیمتونو کې فرق:**

د بیع په معامله کې نقد او قرض د بیل بیل قیمتونو ساتلو شرعی حیثیت په مختلف مذاهب فقه کې څه دې؟ د هغې دا لاندې شکلونه هم کیدې شی.

۱: زید سامان په قسطونو باندې خرڅوی او داسې سامان چې د هغې نقد قیمت صرف عام طور سل روپئ وی د لس روپئ میاشت په دولسو قسطونو کې خرڅوی، د قسطونو د ادائیگئ د تاخیر په صورت کې په قسطونو کې اضافه نه شی کولې.

۲: زید یو څیز قرض خرڅوي او ټولو ته معلومه ده چې هغه د نورو نقد خرڅونکو دکاندارانو نه ګران خرڅونکې دې.
۳: زید ښکاره وائي چې د سامان نقد قیمت سل روپئ دې او قرض شپږ شلې روپئ دې.
۴: زید په قسطونو باندې خرخول کوي او اعلان کوي چې که یو سړی ټولې پیسې په یو کرت راکړې نو هغه ته به شل فیصده رعایت ورکولې شي.
۵: زید خپله تاجر نه دې خو یو سړی (کوم چې دمال په یو ځل قیمت نه شي ادا کولې) معاهده کوي، چې سامان اخستلو سره په لس فیصده نه په زیات قیمت باندې په قسطونو کې وصولوي.

**۲: په قرض کې پیسې کټ کول:**

یو قرض غوښتونکې که د خپل قرض رقم د مقرر شوې مودې نه مخکې وصولول غواړي د مقروض یا د هغه د وکیل په یقین ورکولو باندې قرض غوښتونکې د دې پیسو د کټ کولو نه مخکې ادا کولې شي، لکه درې میاشتې پس د زرو روپو په بدل کې حاضر کښې د نهه سوه او پنځوس روپو ادا کول، دغه شان د قرض ورکولو شرعي حیثیت څه دې؟ د دې د فیصله کولو په وخت دې لاندې لیکلې شوې نکاتو ته خیال وکړې شي!
۱: نن صبا دا طریقه د هنډی (Bill of exchange) د ادا کولو په سلسله کې کولې شي چې د هغې تکنیک لاندې لیکلې شي.
زید د عمر نه مال واخستلو او درې میاشتې پس ئې د رقم ورکولو وعده وکړه د هغې دپاره زید عمر ته د یو دستاویز هنډی په شکل کې پیش کړو عمر په بینک الف کې دا هنډی پیش کړه چې د دې په بناء د بینک نه رقم قرض واخلي او بینک دا رقم د مودې د تیریدلو نه پس د زید یا د زید د وکیل نه بینک وصول کړې، بینک الف عمر ته هغه رقم ورکوي خو پوره رقم نه بلکې د اصل نه څه حصه د خپل حق په طور وضع کوي، ګویا عمر ته د وخت نه مخکې د رقم د وصولولو دپاره د پیسو د کټ کولو منظورول وي، په دې سلسله کې لاندې لیکلې شوې نکتې د نظر لاندې دي:

الف : حدیث: نهی النبی ﷺ عن الکالی بالکالی اوالدین بالدین او کماقال علیه الصلاة والسلام.

ب : ضعوا وتعجلوا (السرخی، السیر الکبیر) رسول الله ﷺ د بنو نضیر د جلاوطن کولو په وخت فرمائیلي وو.

**٤: قوت خرید کښې د کمي زیاتی او د حکومت فرض:**

د افراط زر (د رقم دکمی) د وجې نه ګرانی واقع کیږی، دا افراط زر بعض وخت د قومی مفاد په حق کښې د پالیسئ د وجې نه پیدا کیږی، بعض وخت د بیرونی اثراتو د وجې نه او بعض وخت د غلطې پالیسئ د وجې نه د افراط زر د وجې نه د خلقو د اخستلو طاقت کم شی.

په پورته ذکر شوې صورتونو کښې آیا په یو صورت کښې د حکومت دپاره دا شرعی فرض دې چې هغوی په قوت خرید کښې په کمی واقع کیدو باندې د خلقو نقصان پوره کړی؟

په نورو الفاظو کښې دهغوی د سکې د قدر ضمانت ورکړی یاد ساتئ کله چې کله د پورته ذکر شوې عوامل په بناء باندې د پیسو د کمیدو کیفیت هم پیدا کیږی، چې د هغې نتیجه بالکل برعکس وی په قوت خرید کښې د کمی زیاتی د تعین دپاره د مختلفو څیزونو د قیمتونو نمائنده اشاریه استعمالولې شی، آیا دا اشاریې د مستقبل د ادا کولو د معاهدې په بنیاد باندې جوړولې شی؟ ګویا دغه شان د مستقبل د ادا کولو دپاره د سکې ثمنیت په بعینه پاتې نه شی بلکې اضافی به شی چې د هغې استعمال به د کال په کال بدلیدونکی مجموعی قیمتونو په اوسط باندې وی، د دې مثال دا دې چې زید نن سل روپئ ورکړې، چې په هغې سل منه غنم اخستلې کیږی، که درې کاله پس زید خپلې پیسې واپس طلب کړی او هغه وخت د څلور منه غلې قیمت شپږ شلې روپئ وی نو د سلو په ځای دې شپږ شلې روپئ ورکړې شی، خو که دا قیمت اتیا روپئ پاتې شی نو هغه ته دې اتیا روپئ ورکړې شی.

**٥: په قرض او شرح مبادله کښې بدلون:**

زمونږ کاروباری او صنعت کار افراد هم قرض اخلی چې د هغې مصرف د

غیرملکی مشینونوغیره درآمد کول وي، داقرضې دې حضراتوته دپاکستانی سکو په شکل کې ورکولې شي او په دې شکل کې هغه ادا کولې شي، خو د قرض د اصل مقدار معیار پاکستانی سکه نه ده بلکې غیر ملکی سکه (ډالر) وي، چې هغې سره پاکستان منسلک دې، په دې معیار باندې فریقین د مخکې نه متفق وي خو دغه شان واجب الادا مقدار غیر یقینی شي ځکه چې د سکو اضافی قیمت غیر یقینی دې، د مثال په طور زید پنځه کاله مخکې لس لاکه روپۍ قرض اخستلو سره سامان راطلب کړو، چې د هغې قیمت هغه وخت کې دوه لاکه ډالرې وې، ځکه چې یو ډالر د پنځو روپو مساوی وو خو وروستو د پاکستانی سکې قیمت وغورځیدلو،نتیجه ددوه لاکه ډالرو قیمت شل لاکه روپۍ شو دغه شان د لسو لاکهو مقروض پخپله د شلو لاکهو مقروض شو دغه شان وړاندې تلوسرد که یو ډالر د درې روپو مساوی شي نو په دې صورت کې د لس لاکهو روپو مقروض صرف د شپږو لاکهو مقروض کیږی، په شرح کې بدلون او د هغې لحاظ سره د واجب الادا رقم فریقین ته د مخکې نه علم نه وو، خو دواړه د دې نوعیت په سودا باندې متفق وي، کوم چې په ظاهر کې غرور دې خو د دې نه بغیر د پاکستان په شان ملکونو گزاره کول ډیر گران دی د دې معاملې شرعی حیثیت باندې دې رڼا واچولې شي؟

۱: (دبعض ماهرینوخیال دې) چې د بینک د اوږدې مودې دپاره په پیداواری قرضو باندې د مقرر شرح سره د سود اخستلو په ځای د خپلو قرضو نیلام اوکړی د دې فرضی مثال به دا وی چې د بینک الف سره لس کروړه روپۍ د اوږدې مودې دپاره قرض ورکولو دپاره پرتې دی، بینک د مودې اوپیسو په لحاظ سره دا پیسې په مختلفو اجزاء کې تقسیم کوی لکه:

پنځوس لاکه روپۍ د درې کالو دپاره، د اووه کالو دپاره، د پنځو کالو دپاره د پنځویشت پنځویشت لاکهو روپو اته اجزاؤ کښې د لس لس کالو دپاره، دوه کروړه روپۍ د څلورو کالو دپاره وغیره.

بینک ټینډر طلب کوي، چې کوم سړي مقرره پیسو باندې د مقرر وخت تیریدلو نه پس د سرمایه او د سرمائې زیات نه زیات فیصده د نفع ورکولو کوشش کوي نو هغه ته به دا رقم ورکولې شي، د دې قسم معاملې شرعي حیثیت څه دې؟

۲: د بینکونو نه سود ختمولو سره د نفع او نقصان په بنا باندې چلول په هغه حالت کې قابل عمل دي چې د هغې نه رقم اخستونکې هغه په کاروبار کې لګوي یا د نفع او نقصان د تقسیم عملي امکان موجود وي، هغه قرضې کومې چې د حرفي ضروریاتو دپاره ورکړې شي، غریب او کم سرمایه والا خلقو د کاروباري یا زرعي ضروریاتو دپاره ورکړې شي، په هغې باندې د نفع او نقصان شرط یا خو ممکن نه دې یا نامناسب دې خو په داسې صورت کې د بینک د رقم یوه حصه د نفع نه محروم کیږي، او اصل او د هغې د نفع نه محرومتیا په خپل ځای خپله د تاوان سودا ده، د دې مسئلې د حل دپاره بعض خلق د اصول مسافت د بنیاد جوړولو تجویز پیش کوي هغه په مختصر الفاظو کې لاندې لیکلې شي.

د الجبرا (حساب) په رڼا کښې، پنځه روپۍ د یوې ورځې دپاره برابر دي یوه روپۍ د پنځو ورځو دپاره یا سل روپۍ د یوې ورځې برابر دي لس روپۍ د لسو ورځو دپاره یا لس زره روپۍ د یو کال دپاره برابر دي دوه زره روپۍ د پنځه کالو دپاره.

د دې مساوات د وجې نه که څوک بینک له د څه حرفي ضروریاتو دپاره د یو کال دپاره په لس زره روپۍ باندې ورکوي، په دې شرط باندې چې مقروض سره کومې دوه زره روپۍ د پنځو کالو دپاره پریږدي نو د کمې مودې د لوئې قرضې په بدل کې د زیاتې مودې د وړوکې قرض دشرط لګولو شرعي حیثیت څه دې؟

د دې دویم شکل دا هم کیدې شي چې بینک قرض غوښتونکي ته د لسو زرو روپو په ځای دولس زره روپۍ قرض منظور کړو، چې په هغې کې لس

زره روپۍ مقروض په خپل کار راوستلې او باقي دوه زره روپۍ په خپل نوم امانتا جمع کړي، يو کال پس مقروض دولس زره روپۍ واپس کړي، او دوه زره روپۍ چې ئې دده د طرف نه د امانت په طور کيښودلې هغه پنځه کاله پس واپس راوباسي.

## بينکونو لره د سود نه د پاکولو تجاويز

۱: آيا متبادل قرض شرعا جائز دې؟ مثلا يو سړې د يو بينک نه په دې شرط باندې د يو کال دپاره لس زره روپۍ قرض واخلي، چې هغه به په بينک کې دوه زره روپۍ د پنځو کالو دپاره يا زر روپۍ د لسو کالو دپاره کيږدي، نو آيا داسې لين دين د شريعت په رڼا کې جائز دې؟

۲: واړۀ کاروباري حضرات خپل څه حساب نه ردي نه د هغوی څه خاص کاروبار وي، په داسې صورت کې که څوک د بينک نه قرضه اخلي او بينک هغه ته وائي چې هغه ته د فلاني فلاني کال نه دومره فيصده ګټه ملاويږي، لهذا په دې قرض باندې به هم دومره منافع وي.

چه د هغې مقرره (تقديري) حصه به هغه بينک ته ادا کوي. خو که هغه ته تاوان وشي نو اداره دې ورته د هغې ثبوت ورکولو سره بينک مطمئن کړي نو د هغه نه به تقديري نفع نه اخستلې کيږي، نو په دې صورت کې به د بينک دپاره تقديري ګټه اخستل جائز وي؟

۳: آيا مشروط قرض جائز دې. بله دا چې د پيسو د قرض په وخت په قرض کې ورکړې شوې رقم نه علاوه نور ډير څيزونه (مثلا د سرو زرو) قيمت خريد معيار جوړيدې شي يا نه؟ مثلا يو بينک د زرو روپو د قرضې ورکولو په وخت دا شرط ولګوي، چې د قرض د واپسۍ په وخت به مقروض ته دومره پيسې واپس کوي چې په هغې باندې دومره سرۀ زر اخستلې کيدې شي چې د قرض د اخستلو په وخت په زر روپۍ اخستلې کيدې شو.

المستفتي: جسټس محمد افضل چيمه چيرمين نظرياتي کونسل پاکستان اسلام آباد

**الجواب:** الحمد لله وسلام علی عبادہ الذین اصطفی اما بعد! پس واضحه دې وی چې په بینک کې مال جمع کونکو (مالکانو) او د بینک د خاوندانو چې په حکومت وغیره کې کوم تعلق او رابطه ده هغه نه شرکت دې او نه مضاربت دې، بلکې د معمولی غور کولو نه پس معلومیږی چې د هغوی ترمینځه تعلق د وکالت عامه دې. یعنی حکومت د ارباب الاموال وکیل عامه دې، سواء د هبة او تصدق نه د نورو ټولو یا اکثر تصرفاتو اجازه لري (۱) او هر وکیل که وکیل بالاجرت وی یا بغیر د اجرت نه تبرعا د هر قسم نقصاناتو د پوره کولو ضمانت عرفی کولې شی، په دې کې د یو ذات مطالب او مطالب کیدو هیڅ خطره نشته، او کله چې وکیل بالبیع تبرعا د مشتری د طرف نه ضمانت عرفی کولې شی، کما فی الدر المختار مع رد المحتار ۳۱۲/۵، طبع حلبی لا تصح کفالة الوکیل بالثمن للموکل وقید بالکفالة لانه لو تبرع بأداء الثمن عن المشتری صح کما فی النهر عن الخانیة (۲) نو دا وکیل تبرعا د هر قسم نقصاناتو ضمانت موکل ته په طریق اولی ورکولې شی، لانه لا یطالب شرعا بالخسارة (۳) بخلاف الثمن وبالجملة انه یعلم بعد تنقیح المناط ان الحکم تدور مع التبرع ولذا اجاز تبرع اداء الدین عن المیت وان لم یکن کفالة

---

۱) وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالي: التوكيل صحيح و هو خاص و عام هو اقامة الغير مقام نفسه في تصرف جائز معلوم (درمختار). وقال العلامة ابن عابدين: والحاصل أن الوكيل وكالة عامة يملك كل شيء إلا الطلاق والعتاق والوقف والهبة والصدقة علي المفتي به".

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۴۴۴:۴ كتاب الوكالة)

۲) (الدرالمختار مع رد المحتار ۳۰۱:۴ كتاب الكفالة)

۳) و في الهندية: ومنه أنه (الوكيل) أمين فيما في يده كالمودع فيضمن بما يضمن به المودع و يبرأ به". (فتاوي عالمگيرية ۵۶۷:۳ كتاب الوكالة، الباب الاول)

شرعیة(۱) خو د بیمه کمپنۍ د ضمانت (عرفی) نه بچ کیدل ضروری دی. چې د سود په دویمه طریقه کې اخته نه شی(۲) خلاصه دا چې د یو نه تر څلورو پورې ټول شکلونه جائز دی.

۲: په نقد او قرض قیمتونو کې فرق کول جائز دی، دا سود نه دې مولانا عبدالحئ صاحب انصاری په خپله فتاوی کې د حاشیه چلپی او د بحر او نهر د عباراتو نه د دې جواز ثابت کړې دې (۳) خلاصه دا چې د قیمت په نیته کولو سره زیادت ثمن جائز دې، خو د تاجیل په معاوضه کې یو څیز ورکول ممنوع دی. پس په سوالنامه کې د یو نه واخله تر پنځو پورې ټول شکلونه جائز دی.

---

۱) وفي الشامية "ولا تصح بدين ساقط أي بسبب موته مفلساعن ميت مفلس ولو تبرع به أي بالدين أي بايفائه صح اجماعا".
(ردالمحتار ۴:۳۰۰ كتاب الكفالة)

۲) وقال العلامة وهبة الزحيلي : أما التأمين التجاري أو التأمين ذوالقسط الثالث فهو غير جائز شرعا و هو رأي اكثر فقهاء العصر..... وسبب عدم الجواز يكاد ينحصر في أمرين هما الغرر والربا".
(الفقه الاسلامي وادلته ۵:۳۴۲۳ موقف الفقه الاسلامي من التأمين)

۳) وقال العلامة اللكهنوي رحمه الله تعالىٰ: په "نهر الفائق شرح كنز الدقاق،، كې دی: ألاترىٰ أنه يزاد في الثمن لاجله .اوپه البحر الرائق كې دی: الاجل في نفسه ليس بمال ولا يقابله شئ من الثمن حقيقة اذا لم يشترط زيادة الثمن بمقابلته قصداً و يزاد في الثمن لاجله اذاذكر الاجل بمقابلة زيادة الثمن قصداً.او د يوسف چلبي په حواشی شرح وقايه كې دی: يجوز أن يقدر الثمن في المبيع بالمؤجل اكثر ممّا في المعجل بحيث تقابل كثرة المؤجل تعجيل القليل.ددې عبارتونو نه ثابته شوه چه قيامت زياتول د نسيئه (قرض) په اندازه سره صحيح دی".
(مجموعة الفتاوي ۲:۱۲۹ كتاب البيع)

۳: په قرض کې پیسې کټ کول د شیخ ابو یوسف رحمه الله په نزد جائز دي، د سود د بندولو د ضرورت په وجه، دې لره غوره کول قابل اعتراض نه دي.

كما في التكملة ۲: ۲۵۳ طبع حلبی (لايصح الصلح) عن الف مؤجل على نصفه حالاً وذكر في الكافي للاسبيجابي جواز هذا الصلح مطلقاً على قياس قول ابي يوسف لأنه احسان من المديون في القضاء بالتعجيل واحسان من صاحب الدين في الإقتضاء بحط بعض حقه(۱) انتهى. ودت ليس هو بيع الكالئ بالكالئ بل هو اسقاط من الجانبين.

۴: په قوت خرید کې د کمې زیاتی په صورت کې حکومت د نقصان پوره کولو نه ممنوع نه دې، د دې نقصان د پوره کولو نه هیڅ مانع شرعی موجود نه دې. كما مرّ

۵: په قرض او شرح مبادله کې د بدلون کولو متعلق تدبیر او مخرج دا دې چې دې بیوپاریانو ته دې ډالر په طور د قرض ورکړې شی او دا خلق پاکستانی سکې لره د ډالر د موجوده قیمت په حیثیت سره واخلی، نو د دې نه پس د پاکستانی سکې وغیره د غورځیدلو په صورتونو کې به کمې زیاتې هیڅ ضرر نه رسوی. (۲)

«د بعض ماهرینو خیال دې» دا تجاویز ناقابل اصلاح دې:

**بېکونه د قرضونو د سود نه د پاکولو تجاویز:**

نمبر ۱: متعلق دې واضحه وی چې د قرض ورکولو په دوران کنبې قرض غوښتونکی ته په بېنک کې د رقم کېښودلو پابند کول ناجائز کار دې، كما

---

(۱) (تكملة ردّالمحتار ۱۹۹: ۲ كتاب الصلح، فصل في دعوي البيع)

(۲) وفي الهندية وان وجد القدر والجنس حرم الفضل والنساء وان عدما حل الفضل والنساء كذا في الكافي.

(فتاوي هندية ۱۱۷: ۳ الفصل السادس في تفسير الربا)

فی رد المحتار فی باب ما یبطل بالشرط الفاسد ولا یصح تعلیقه به.(۱) خو د حکومت دا اعلان کول چې د چا په بینک کې دومره پیسې نه وی هغه ته دې قرضه ورنکړې شی او د دې شرط پابندی منع نه ده، شرعا په دې کې هیڅ باک نشته.

نمبر ۲: متعلق دې واضحه وی چې منافع شائع وی که متعین نه وی نو په دې څه باک نشته. (۲) یعنی کله چې حکومت اصالة یا وکالة دې لره د مضاربت په نوعیت کې خرچ کړی.

نمبر ۳: د دې تدبیر او لاره د خلاصوالي دا ده چې په دې قرض کې سرۀ زر ورکړې شی، او دا مقروض د سرو زرو په عوض کې حالی قیمت واخلی او حکومت په مستقبل کې د دې مقروض نه د سرو زرو په عوض کې د هغه وخت مطابق قیمت وصول کړی (۳) وهوالموفق

---

۱) وفي رد المحتار: في البزازية وتعليق القرض حرام والشرط لا يلزم والذي في الخلاصة عن كفالة الاصل والقرض بالشرط حرام اه نهر أي فالمراد بالتعليق الشرط".

(ردالمحتار ۲۵۴: ۴ مايبطل بالشرط الفاسد ولايصح تعليقه به)

۲) وقال العلامةسراج الدين رحمه الله تعالي "ومن شروطها أن يكون الربح بينهما مشاعاً فلو شُرط للمضارب نصف الربح و زيادة شئ فهي فاسدة.

(فتاوي سراجية: ۵۳۱: كتاب المضاربة)

۳) وفي شرح الوقاية: فان وجد الوصفان حرم الفضل والنساء وإن عدماحلا".

(شرح الوقاية ۶۵: ۳ باب الربوا)

بسم الله الرحمن الرحيم

# فتاوٰی دیوبند پاکستان

المعروف به

## فتاوٰی فریدیه

# كتاب القرض والدين

قال الله تبارك وتعالى:

مَنْ ذَا الَّذِىْ يُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضٰعِفَهٗ لَهٗ وَلَهٗٓ اَجْرٌ كَرِيْمٌ ﴿۱۱﴾

(سورة الحديد)

........

# باب القرض والدين

## د حج نه مخکې د قرض ادا کول ضروري دي

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی باندې زما څلور زره روپئ، د یو بل عزیز دوه نیم زره روپئ قرض دې، اته کاله مخکې د ډیرو عزتمندو په موجودګئ کې هغوی دا پیسې منلې دی او د قرضې د زر پوره کولو لیکل ئې هم کړی دی، د دې نه پس هغوی بنه کافی پیسې اوګټلې، څمکه ئې واخستله، کورونه ئې جوړ کړل خو سره د بار بار یادولو د قرضې په ادا کولو کې د لیت او لعل نه کار اخلی اوس مذکوره سړې د حج د ادا کولو دپاره ځی آیا د هغه دپاره د حج نه مخکې د قرض ادا کول ضروری نه دی؟ آیا په دې حالاتو کې به د هغه حج وشی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: محمد اعظم**

**الجواب:** په دې سړی باندې ضروری ده چې اول حقوق العباد (قرضه وغیره) ادا کړی او د هغې نه وروستو حقوق الله حج وغیره ادا کړی. (۱) کنه نو دا سړې به په ظالمانو کې شمار وی: **﴿قال رسول الله ﷺ مطل الغنی ظلم﴾** (۲) اګر چې د حج فریضه به د هغه د ذمې نه فارغه شی، **لان السیئة لا یذهب بالحسنة.** (۳) **فقط**

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: (قوله لتقدم حق العبد) اي علي حق الشرع ... الا تري انه اذا اجتمعت الحدود وفيها حق العبد يبدأ بحق العبد لما قلنا ... فلو قدم حق الشرع عند الاجتماع بطل حقوق العباد.

(ردالمحتار ۱۵۶:۲ كتاب الحج)

۲) (مشكوة المصابيح ۲۵۱ باب الافلاس والانظار)

۳) قال العلامة ابن عابدين: لان الكبيرة لا تزيل الطاعة.. [بقيه بر صفحه آئنده...

## د دائن د مدیون نه مفت د خدمت اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په یو ګاهک باندې زمونږ سل یا دوه سوه روپئ قرض دې چونکې اوس زمونږ کار شروع شو نو آیا د قرضه اخستونکو نه زه بغیر د پیسو نه خدمت اخستلې شم یا نه؟ دلته رواج داسې دې چې که چا ته ئې قرض ورکړو نو اوس هغه یو قسم دوست جوړ شو، نو آیا اوس مونږ د هغه نه څه کار اخستلې شو؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: نامعلوم**

**الجواب:** که دا خدمت د قرض د وجې نه وی نو ناجائز دې که د کومک او اندیوالئ وغیره د وجې نه وی نو جائز دې. (هندیة ۳/۲۶۵) (۱) **وهوالموفق**

## د مدیون د امر نه بغیر د هغه قرضه ادا کولو سره مطالبه کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زه یو داسې سړې یم چې زما پلار نشته اونه مې خپل ورونړه شته د ترۀ ځامنو راسره په وادۀ کې څه امداد ونکړو اوس هغه دعوی کوی چې ما ستا په وادۀ باندې

---

...بقیه ازحاشیه گذشته]

(ردالمحتار ۳:۳۳۱ مطلب لو تاب المرتد هل تعود حسناته)

وفي منحة الخالق: لان الکبیرة لا تزیل الطاعة.

(منحة الخالق علي هامش البحر الرائق ۱۲۷:۵ باب احکام المرتدین)

۱) وفي الهندیة: ولا بأس بهدیة من علیه القرض والافضل ان یتورع من قبول الهدیة اذا علم انه یعطیه لاجل القرض وان علم انه یعطیه لا لاجل القرض بل لقرابة او صداقة بینهما لا یتورع عنه.

(فتاوي هندیة ۳:۲۰۳ الباب التاسع عشر في القرض والاستقراض)

خرچه کړي ده نو زما د اجازت نه بغیر که زما د ترهٔ ځوی زما قرضه ادا کړه نو آیا هغه د دې مطالبه کولې شي یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: اول دین ډاک خانه سوجنډه پانډه کیمل پور ......۱۳۰ اکتوبر ۷۷ء

**الجواب:** که ستاسو د ترهٔ ځوئي نه ستاسو وکیل وی او نه شریک وی او نه مجبور وی نو د دې پیسو ستاسو نه مطالبه نه شي کولې. (۱) **والله اعلم**

## د نامعلوم کافر نه د اخستلې شوې قرضې ادا کولو طریقه

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د یو مسلمان په ذمه د غیر مسلم شل (۲۰) روپۍ قرض واجب الاداء وو، غیر مسلم د مودې نه یعنی په ۱۹۴۷ء کښې د ملک د تقسیم کیدو نه پس هندوستان ته لاړو، مسلمان سړی ته دا معلومه نه وه چې هغه په هندوستان کې چېرته مقیم دې د دې باره کې شرعی حکم بیان کړئ چې د پورته ذکر شوی رقم سره څه وکړې شي؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: حاجی سلطان محمود پلړ..... ۱۳ ستمبر ۱۹۷۴ء

**الجواب:** که دا پیسې د مسلمان وې نو په صدقه کولو سره به ئې ذمه فارغ شوې وې، کما فی لقطة الدر المختار، علیه دیون ومظالم جهل اربابها ولیس من علیه ذلك من معرفتهم فعلیه التصدق بقدرها من ماله (۲) بلکه بعض

---

۱) قال العلامة ابن عابدین: لان من دفع دین غیره بغیر امره فلا رجوع له علي الدائن ... ولا علي المدیون... والمتبرع لا یرجع بما تبرع به علي غیره کما لو قضي دین غیره بغیر امره. (فتاوي تنقیح الحامدیة ۲۴۸:۲ کتاب المداینات)

وقال العلامة المرغیناني: قضي دین غیره بغیر امره فلا یرجع علیه.

(الهدایة ۱۰۳:۳ کتاب البیوع، مسائل منثورة)

۲) (الدر المختار علي هامش ردالمحتار ۳۵۳:۳ قبیل کتاب الابق)

فقهاء کرامو لیکلي دی چې په داسې صورت کې به په آخرت کې مواخذه نه وی، کما في ردالمحتار ٣: ٤٤٦، وفي الفصول العمادية لولم يقدر على الاداء لفقره اونسيانه اولعدم قدرته قال شداد والناطفي رحمهما الله تعالى لايواخذ به في الاخرة اذا كان الدين ثمن متاع اوقرضا(١)، خو چونکې دا پیسې د کافر دی په دې وجه د دې صدقه کول به بې فائدې وی خو د عدم قدرت د وجې نه به مواخذه نه وی او ډیر احتیاط په دې کې دې چې په دې کافر باندې که دچا قرض وی نو هغه ته دې ورکړې شی کنه نود بیت المال مصارف (طلبه مساکین وغیره) کې صرف کړې شی، لانه مال ضائع(٢) وهوالموفق

## د قرض په بدل کې پیدوار د مقرره نرخ په حساب سره اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په علاقه کې یو سړې د جرمنی نه راغلې دې هغه دا سودا بازی شروع کړې ده چې کوم سړی ته د پیسو ضرورت وی نو دیرش زره یا د هغې نه زیاتې پیسې دې سړی ته د پټی دپاره ورکوی چې په دې باندې څمکه تیاره کړه او کله چې فصل تیار شی نو نیم فصل ماته راکوه اوپه دې حساب سره به قرضه پوره شی نو آیا په دې کې حرمت شته یا نشته؟ اودا قیمت په مسجد او مدرسه باندې خرچ کول څنګه دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولوی عیسی خان ........٨ جنوری ١٩٨٦ء

---

١) (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ٣:٣٥٣ قبيل كتاب الابق)

٢) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالي: (فينتفع) الرافع (بها لو فقيرا والا تصدق بها علي فقير... الا اذا عرف انها لذمي فانها توضع في بيت المال.

(درمختار ٣:٣٥١ كتاب اللقطة)

وقال العلامة ابن عابدين: لانه بمنزلة المال الضائع والفقراء مصرفه عند جهل اربابه. (ردالمحتار ٣:٣٥٤ مطلب فيمن عليه ديون ومظالم جهل اربابها)

**الجواب:** که دا مقرر شوې پیدوار د مقرر شوی نرخ په حساب سره اخلی نو په دې کې هیڅ حرمت نشته. (۱) په مسجد او مدرسه باندې خرچ کول ئې هم صحیح دی. وهوالموفق

## پونډ په قرض ورکولو سره څه موده پس د بینک په ریټ باندې په پاکستان کې زیاتی پیسې اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی په انګلینډ کې څه پیسې په دې نیت او شرط باندې واخستلې چې زه په پاکستان کې څه ګاډی بک کول غواړم او زمونږ ملک د پابندئ د وجې نه د دومره پیسو د بهر لیږلو اجازت نه ورکوی چې مونږ کاروبار وکړې شو او مونږ ستاسو دا رقم په دې شرط باندې اخلو چې تاسو ته به څلور میاشتې پس د بینک په ریټ په هر پونډ باندې پنځه روپئ په پاکستان کې زیاتی ادا کوو هغه وخت په بینک کې د پاکستانئ روپئ نرخ فی پونډ په ۲۲ روپئ وو هغه ماته پنځویشت روپئ فی پونډ باندې په پاکستان کې ادا کړې نو هغه صرف درې روپئ پونډ کې زیاتې ادا کړې نو دا پیسې اخستل زما د پاره نقصان نه دې؟ بینوا توجروا

**المستفتی:** محمد الیاس مقام زنګو محله حافظ اباد تحصیل ټانک ... ۱۹ رمضان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** دا معامله ناجائز ده. لکون کل قرض جر نفعاً فهو ربا. (۲) دا هنډی نه ده چې د منی آرډر په شان ده. (۳) وهوالموفق

---

(۱) ځکه چې په دې صورت کې نه ربٰوا راځی او نه شبه ربٰوا لازمیږی. (مفتی سیف الله حقانی)

(۲) عن علي رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ: كل قرض جر منفعة فهو ربا رواه الحارث بن ابي اسامة واسناده ساقط.
(بلوغ المرام من ادلة الاحكام ۲۸۲ رقم الحديث: ۸۱۲)

(۳) قال العلامة اشرف علي التهانوي: منی آرډر مرکب دې د دوه معاملو نه، یو قرض دې کوم چې اصل پیسو سره متعلق دې، دویمه اجاره ده کوم چې د فارم لیکلو او روانولو باندې د فیس په نوم ورکولې شي، او دواړه معاملې جائز دی نو د دواړو مجموعه هم جائز ده او چونکې په دې کې ابتلاء عامه ده په دې وجه دې تاویل سره د جواز فتوی مناسب ده. (امداد الفتاوي ۳: ۱۴۶ کتاب الربوا، تحقیق منی آرډر)

## په قرض ورکولو کې شرط فاسد لګول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې يو سړی بل ته د قرض ورکولو په وخت فاسد شرط ولګولو نو آيا په دې شرط فاسد سره قرض فاسد کيږی يا نه؟ **بينواتوجروا**

**المستفتي:** مولوی هدايت الله......۱۸ جنوری ۱۹۷۹ء

**الجواب:** قرض د شرط فاسد د وجې نه نۀ فاسد کيږی. **كما في شرح التنوير(١) وهوالموفق**

## د قرضې رسيد لره په کم قيمت باندې د خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زيد سره زر روپۍ د يو منډۍ پرچه ده کوم چې يوه مياشت پس واجب الادا دی، د څه سخت ضرورت د وجې نه عمر د زيد نه په دې پرچې اخستلو باندې صرف نهه سوه روپۍ ورکوی او بيا يوه مياشت پس زر روپۍ د منډۍ نه وصولوی نو دا سل روپۍ سود دې يا نه؟ جواب د دليل سره راکړئ. **بينواتوجروا**

**المستفتي:** مولوی نياز احمد ضلع پشاور تحصيل چارسده داکخانه او مقام ګل آباد

**الجواب:** دا سود دې، د رواياتو او احاديثو نه فقهاء کرامو دا اصل او قاعده مستنبط کړې ده چې **﴿كل قرض جر نفعا فهو ربا﴾(٢)** او دا نهه سوه

---

١ ﴾ قال العلامة الحصكفي: ههنا اصلان احدهما ان كل ماكان مبادلة مال بمال يفسد بالشرط الفاسد كالبيع ومالا فلا كالقرض.

(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۴:۲۴۷ ما يبطل بالشرط الفاسد ولا يصح تعليقه به)

٢ ﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله كل قرض جر نفعا حرام) اي اذا كان مشروطا. (ردالمحتار ۴:۱۹۴ مطلب كل قرض جر نفعا حرام)

وفي الهندية: قال محمد رحمه الله تعالي: في كتاب الصرف ان اباحنيفة رحمه الله تعالي كان يكره كل قرض جر منفعة.

(فتاوي هندية ۳:۲۰۲ الباب التاسع عشر في القرض والاستقراض)

روپۍ په حقیقت کې قرض وی چې د هغې په عوض کې زر روپۍ وصولولې شی. فقط(۱)، (۲) وهوالموفق

## دین په غیر مدیون باندې د خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې:

۱: سائل د خپلې معاوضې کتابونه (تقریبا د شلو زرو روپو) خپل مهربان بزرګ مثلا الف ته په ۱۹۲۲ء کې په دې غرض ورکړل چې هغه د خپلې خمکې قیمت په دې پیسو سره ادا کړې شی په دې کې نه څه شرط او نه د ادا کولو د نیتې په باره کې څه مقرر شو.

۲: د الف دوه ځامن دی مثلا ب (مشر) او ج (کشر) د معاوضې د کتاب ورکولو نه مخکې ج د ب په معرفت باندې اته زره روپۍ په یو کال کې د ادا کولو په وعده باندې قرض واخستلو.

۳: پورته ذکر شوې معاملاتو (۱، ۲) نه مخکې ب د سائل نه د معاوضې کتابونه په پنځوس فیصده شرح باندې د اخستلو اراده وکړه خو سائل په دې سره اتفاق ونکړو.

۴: په ۱۹۲۳ء کې ج سائل ته څلور زره روپۍ ادا کړې

۵: څه موده مخکې ب د ج په ذریعه پنځه زره روپۍ ماته راولیږلې بغیر د وضاحت نه چې دا معامله د نمبر ۱ متعلق ده یا د نمبر ۲.

۶: په ۱۹۲۴ء کې الف وفات شو د سائل په وینا باندې ب یو کرت اووۀ زره روپۍ او د هغې نه پس دوه زره روپۍ ماته راولیږلې نو د دواړو معاملو

---

(۱) اوکه صرف د پرچې بیعه اوکړې شی نودا به د زر روپو د نوټ د بیعې په حکم کې وی. (مفتی سیف الله حقانی)

(۲) په سوال کې ذکرشوې صورت په حقیقت کې د بیع الدین ممن لیس علیه الدین صورت دې او لزوم د ربٰوا نسیئه په وجه ناجائز دې، فافهم. (مفتي سیف الله حقاني)

متعلق (اول او دویم) ماته اتلس زره روپئ ملاؤ شوې، ب د ادا کولو په وخت د دې امر اظهار وکړو، چې د معامله نمبر ۱ رقم ادائیگی په ۵۰ فیصده شرح باندې کړې شوې وه او اوس ټول ادا شو، د ج بیان دې چې د الف سره د معامله نمبر ۱ متعلق په بازاری نرخ ۵۰ فیصده باندې معامله مقرر شوې وه خو سائل ته دا یاد نه دی.

۷: خلاصه د خبرې دا چې د سائل مطالبه ده چې د معاوضې د کتابونو قیمت ماته سل فیصده ملاویدل پکار دی ځکه چې سائل په ۵۰ فیصده باندې تیار نه وو او حکومت اعلان کړې وو چې د معاوضې د کتابونو د باقی پاتې پیسو معاوضه به حکومت پوره پوره ادا کوی که ما ب او ج ته کتابونه نه وې ورکړې نو حکومت به ماته سل فیصده قیمت ادا کړې وې او د ب او ج موقف دا دې چې هغه په نقدو پیسو باندې د ۵۰ فیصده په حساب سره هم هغه وخت سره د بل ځای نه اخستلې شو لهذا د تپوس کولو خبره دا ده چې د شریعت په رڼا کې زه سل فیصده حقدار یم یا د پنځوس فیصده لکه چې د ب او جیم موقف دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد هارون بی فور هومز فلیټ پشاور کینټ...... یکم ربیع الاول ۱۹۷۰م

**الجواب:** چونکې د معاوضې په کتابونو کې د لیکلې شوې رقم حکومت مقروض وی یعنی مدیون وی او د هغې کتابونو د بل چا نوم ته منتقل کول د بیع په طور وی نه د توکیل په طور، لهذا دا بیع ناجائز ده، **لمافی الاشباه والنظائر** ۳۷۰ وبیع الدین لایجوز ولو باعه من المدیون اووهبه جاز(۱) او په اخستونکی باندې ضروری ده چې بعینه هم هغه کتاب واپس کړی یا د هغې مثل واپس کړی. فقط

## د قرضې په مقاصاة باندې به د اقامت د گواهانو نه مدیون بری وی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د منور زما په

(۱) (الاشباه والنظائر مع شرحه للحموي ۱۴۱:۴ القول في الدين)

ذمه پنځلس زره ریال قرضه وه، ما هغه سره مزدوري وکړه نو زما مزدوري د هغه په ذمه شپاړس زره ریاله جوړ شو د دې حساب کتاب په وخت دوه ګواهان عبدالواحد او امیر شاه موجود وو او خپله ئې اقرار کولو سره وویل چې ماته دا معلومه ده چې ستا په ذمه قرض پاتې نه شو، اوس منور دوباره پنځلس زره ریال غواړی او وائی چې هغه مزدوری په بله قرضه کې ختم شوې ده، عبدالواحد او امیر شاه منوّر ته وویل چې ته ظلم کوې، لهذا تاسو راته شرعی مسئله بیان کړئ؟ بینواتوجروا

**المستفتي**: محمد درویش ریاض......۱۱٦۸۱ سعودیه عربیه.... ۷ جون ۸٦ء

**الجواب**: که تاسو سره د دې قرضې د مقاصاة شهادت شرعی موجود وی نو د شهادت د اقامت نه پس به تاسو بری یئ.(۱) بله دا چې که تاسو سره شهادت وی چې منور د قرضی د نه باقی کیدو اقرار کړې دې نو تاسو به بری یئ.(۲) او که تاسو سره شهادت نه وی نو تاسو به منور ته قسم ورکوئ.(۳)

وهوالموفق

---

(۱) عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده ان النبي ﷺ قال: البينة علي المدعي واليمين علي المدعىٰ عليه. (مشكوة المصابيح ۳۲۷ باب الاقضية والشهادات)

وفي الهندية: فان صحت الدعوي سأل المدعىٰ عليه عنها فان اقراوانكر فبرهن المدعي قضي عليه والا حلف بطلبه. (فتاويٰ عالمگيرية ۱۳:۴ الباب الثالث في اليمين)

(۲) وفي شرح المجلة: اما اذا ادعي الغريم ان صاحب المال ابرأه او حلله وشهد علي اقرار صاحب المال بالاستيفاء فان القاضي يسئل الغريم عن البراءة او التحليل أكانت بالاسقاط او بالاستيفاء فان قال كانت بالاستيفاء قبلت.

(شرح المجلة ۲۹۴:۵ المادة: ۱۷۰٦ الفصل الرابع في بيان موافقة الشهادة للدعوي)

(۳) وفي شرح المجلة: اذا اظهر المدعي العجز عن اثبات دعواه يحلف المدعىٰ عليه بطلبه. (شرح المجلة ۳۹۴:۵ المادة ۱۷۴۲)... وقال العلامة ابن عابدين: (سئل) فيما اذا ادعي المديون الايصال فانكر المدعي عليه ولا بينة له ...[بقيه بر صفحه آئنده...

## د ضروریاتو دپاره په قرضه اخستلو باندې رشوت ورکول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زه یو سرکاری ملازم یم د حکومت نه د کور تعمیر کولو دپاره قرضه اخلم خو هغه قرضه ماته بغیر د رشوت نه نۀ ملاویږی نو آیا زما دپاره د دې قرضې د اخستلو دپاره رشوت ورکول جائز دی یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: شبیر احمد مکان نمبر: ۳۶۷۲ محله کیکران پشاور ڈبگری گیٹ ۸ رمضان ۱۴۱۰ھ**

**الجواب:** د کور جوړول د ضروریاتو نه دی دې مقصد ته د رسیدو دپاره د رشوت ورکونکې گناهگار نه دې. (۱) خو د دې قرضې نوعیت معلوم کړئ چې په دې کې سود ورکول راځی او که نه؟ **وهوالموفق**

## د صاحب حق د غصب یا د دباؤ په ذریعه د غیر جنس نه حق وصولول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی په یو دکان باندې ناجائز قبضه کړې ده یعنی د دکان د مالك د وینا مطابق کرایه نه ورکوی او حکومت هم مالک ته قبضه نه ورکوی، د کور مالک د دکان د

---

**...بقیه ازحاشیه گذشته]**

فطلب يمينه فقال المدعي اجعل حقي في الختم بمعني احضر حقي ثم استخلفني فهل له ذلک (الجواب) نعم له ذلک في زماننا.

(فتاوي تنقيح الحامدية ۲:۲۲ كتاب الدعوي)

۱) قال العلامة ابن عابدين: ثم الرشوة اربعة اقسام... الثالث اخذ المال ليسوي امره عند السلطان دفعا للضرر او جلبا للنفع وهو حرام علي الآخذ فقط.

(ردالمحتار ۴:۳۳۸ مطلب في الكلام علي الرشوة والهدية)

وقال العلامة ابن نجيم: ومنها اذا دفع الرشوة ليسوي امره عند السلطان حل له الدفع ولا يحل للآخذ ان يأخذ.

(البحر الرائق ۶:۲۶۲ كتاب القضاء)

کرایه دار نه شرعی حق وصولولو دپاره څه څه تدابیر اختیارولې شی چې په هغې سره د هغه حق حاصل شی آیا د کور مالک ته دا حق حاصل دې چې د هغه د غصب په وجه باندې په هغه باندې په نورو ذرائع سره دباؤ واچوی آیا د دکان کرایه زیاتول جائز دی یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: عبدالمنان ......۱۳ | اګست ۱۹۸۰ء

**الجواب:** د صاحب حق دپاره خپل حق وصولول جائز دی اګر چې په غصب یا دباؤ سره وی او اګر چې د غیر جنس حق نه وی (مثلا د سلو روپو په عوض کې چیلی. وغیره واخلی)

**کما فی الدر المختار علی هامش رد المحتار ۵/۲۷۳ لیس لذی الحق ان یأخذ غیر جنس حقه وجوزه الشافعی وهو الاوسع.(۱) وهو الموفق.**

## د قرض د ورکولو نه پس که د مروج سکې قیمت کم شو نو څه حکم دې؟

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې داسې مالی واجبات چې د هغې د ادا کولو وخت په معاهده کې نه وی مقرر شوې او بیا د هغې ادا کول د کافی مودې نه پس د کرنسی نوټ په شکل کې کولې شی حال دا چې د کرنسی نوټ په قیمت کې ښه کمې راغلې وی نو اسلامی نقطه نظر سره آیا اوس به د دې ادا کول د کرنسئ د نوټونو په تعداد سره کولې شی چې د هغې د تعداد برابر کرنسی نوټ اخستلې شوې وو یا به د هغې تعداد د موجوده کرنسی نوټ د قیمت په اعتبار سره متعین کولې شی مثلا که زر روپئ د خرچې په طور په ۱۹۷۰ء کې واجب الاداء شوې وې او اوس د هغې

---

۱) (الدرالمختار ۵:۳۰۰ کتاب الحظر والاباحة، فروع فصل في البیع)
وقال العلامة الحصکفي: ومثل دینه ولو دینه مؤجلا او زائدا علیه او اجود لصیرورته شریکا اذا کان من جنسه ولو حکما بان کان له دراهم فسرق دنانیر وبعکسه هو الاصح لان النقدین جنس واحد حکما... واطلق الشافعي اخذ خلاف الجنس للمجانسة في المالیة قال في المجتبی وهو اوسع فیعمل به عند الضرورة.
(الدرالمختار ۳:۲۱۹ کتاب السرقة، مطلب في اخذ الدائن من مال مدیونه من خلاف جنسه)

ادا کول په ۱۹۸۵ء کې کيږي نو آيا اوس به هم زر روپۍ ورکوي يا اوس به د زرو روپو دقيمت برابر روپۍ ورکوي وغيره وغيره، اوس اسلامي نقطه نظر سره دا هم ښکاره کول پکار دي چې ايا د کرنسۍ د نوټ په قيمت کې د کمي په باره کې قرض او د نور مالي لين دين معاملات برابر دي يا په دواړو کې فرق دي؟ بينواتوجروا

المستفتي: پروفيسر انوار الله صاحب اسلام آباد ......۲۱ اکتوبر ۱۹۸۷م

**الجواب:** واضحه دې وي چې د کرنسي نوټ متعلق علماء مختلف دي د بعض په نزد دا کرنسي نوټ قباله او حواله ده او د بعض په نزد ثمن عرفي دي لکه د سرو او سپينو نه علاوه د تانبې سکې وغيره ثمن عرفي دي پس که په يو سړي باندې په ۱۹۷۰ء کې زر روپۍ واجب شوې نو دفريق اول د علماؤ په نزد به دا سړې د قيمت په لحاظ سره ادائيگي کوي، يعنی د ۱۹۷۰ء په حساب سره په زر روپۍ باندې چې څومره سپين زر ملاويدل نو په دومره چاندۍ (سپينو زرو) باندې به چې ۱۹۷۵ء کې چې څومره کرنسي نوټ ملاويږي ادا کولې شي او د علماء کرامو د دويمې ډلې په نزد به صرف زر کرنسي نوټونه ورکولې شي او بهرحال د دويمې ډلې نظريه صحيح ده.(۱) قباله او حواله بغير د نيت، بغير د ارکانو نه تسليمول خلاف قاعده ده. وهوالموفق

---

(۱) وفي منهاج السنن :اختلف الاکابر في حقيقة النوت قال بعضهم انه قبالة الحوالة وليس بثمن... قال بعضهم هو ثمن رائج لانه يتوسل به الي حصول الاجناس مثل الدراهم المغلوبة الفضة والفلوس وکذا لا يقصد به عند الاخذ والاعطاء الا ما يقصد عند اخذ الدراهم الرائجة والفلوس واعطائها ولا يخطر ببال احد ما يقصد من الحوالة والقبالة فافهم. قلت ويؤيد کونه اثمانا رائجة ان المتعارف ان من اقترض عددا من النوت لا يؤدي المقرض الا هذا العدد وان تفاوتت الدراهم في قدر الفضة.
(منهاج السنن ۳:۱۲۷ باب ماجاء في زکوٰة الذهب والورق)... وقال العلامة الحصکفي: استقرض من الفلوس الرائجة والعدالي فکسدت فعليها... [بقيه برصفحه آئنده...

## د قرض ورکولو نه پس مروجه سکه بدله شوه

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید بکر ته د سلو روپو سپینو زرو والا سکې قرض ورکړې وې، تر اوسه پورې هغه قرض نه دې ادا شوې، اوس بکر قرض ادا کول غواړی خو اوس خو د سپینو زرو والا روپئ رائج نه ده که ملاؤ هم شی نو ډیره قیمتی ده لهذا اوس به بکر زید ته قرض څنګه واپس ورکوی؟ بینواتوجروا

المستفتی: بخت یاسین متعلم حقانیه اکوړه خټک ... ۲۷ ربیع الاول ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** دا سړې به د سلو روپو د وزن برابر سپین زر یا د هغې قیمت (عند الرضا) دې مقروض ته ورکوی، ونظیره الثمن کمافی الشامیة ۴:۲۵ لمارمن صرح بحکم الدراهم الخالصة او المغلوبة الغش سوی ما افاده الشارح هنا، وینبغی انه لاخلاف فی انه لایبطل البیع بکسادها ویجب علی المشتری مثلها فی الکساد والانقطاع، فافهم([1]). وهوالموفق

## د باقاعده بیع په صورت کې په قرض خرڅولو کې هیڅ باک نشته

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د چینو یوه بورئ په اووه سوه شپیته روپو باندې خرڅیږی هغه د یو کال په قرض باندې په زر روپئ خرڅوی یا په مارکیټ کې کپړه په شپږ روپئ یا اووه روپئ فی ګز وی او د یو کال په قرض باندې هم دا کپړه په لس یولس روپئ باندې

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] مثلها کاسدة ولا یغرم قیمتها. (الدرالمختار)

وقال العلامة ابن عابدین: (قوله فلا عبرة بغلائه ورخصه)... واذا استقرض عشرة افلس ثم کسدت لم یکن علیه الا مثلها في قول ابي حنیفة وقالا علیه قیمتها من الفضة یستحسن ذلک. (ردالمحتار ۴:۱۹۲ فصل في القرض)

[1] (ردالمحتار ۴:۲۷ مطلب مهم في احکام النقود اذا کسدت او انقطعت)

خرڅيږي يا د غوړو ډبې د ايجنسئ د ريټ مطابق په دوه سوه روپۍ وى د يو کال په قرض باندې هغه ته دوه سوه شپيتۀ روپۍ فى ډبې ورکول شرعا څنګه دى؟ آيا داسې نفع سود دې يا نه؟ مهربانى وکړئ د شريعت په رڼا کې جواب راکړئ. بينواتوجروا

المستفتى: حاجى عبدالرحمٰن پټهان دى آئى خان ۸ مئى ۱۹۸۶ء

**الجواب:** دا درې واړه صورتونه جائز دى، د قرض خرڅولو د وجې نه زيادة فى الثمن جائز دې. (حاشيه چلپى (۱) وغيره) (۲) وهوالموفق

## د قرض د وجې نه د مقروض نه څه اخستل جائز نه دى

**سوال:** څه فرمائى علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زيد عمر ته د پنځه سوه روپۍ قرضى ځمکې په عوض کې د لس روپۍ کنال په حساب سره يا زيات يا کم ورکړې يعنى په مينځ کې ئې هيڅ ځمکه نشته، پس قرض کړئ چې بائع (عمرو) هغوى ته ځمکه د لسو روپو په حساب په لس روپۍ فى کنال ورکولو سره هغوى (زيد) هغه ته پنځه سوه روپۍ ورکړئ اوس زيد د عمرو نه د فى کنال په حساب سره د کال شل سيره غنم وصولوى او زيد به د هغه نه دا شل سيره غنم تر هغه وخته پورې وصولوى ترڅو چې عمرو پنځه سوه روپۍ نه وى ادا کړې نو آيا دا د زيد دپاره سود نه جوړيږى، که جوړيږى نو

---

۱ ﴾ قال العلامة اللكهنوي: په حاشيه چلپي کې دى: يجوز ان يقدر الثمن في المبيع بالموجل اكثر مما في المعجل بحيث تقابل كثرة المؤجل تعجيل القليل.
(مجموعة الفتاوي ۱۲۴: ۲ كتاب البيع)

۲ ﴾ قال العلامة ابن عابدين: لان للاجل شبها بالمبيع الا تري انه يزاد في الثمن لاجله. (ردالمحتار ۱۷۷: ۴ باب المرابحة والتولية)
(ومثله في البحر الرائق ۱۱۴: ۶ باب المرابحة والتولية)

مهرباني وكړئ د كتابونو د حوالې سره وضاحت وكړئ بينواتوجروا

المستفتي: (مفتي) سيف الله مروت متعلم دار العلوم حقانيه
(حالا رئيس دار الافتاء دار العلوم حقانية) اكوره ختك

**الجواب:** چونكې د زيد قرض په خپل ځای باقی دې او ددې قرضې د وجې نه د كال د عمرو نه غنم اخستلې شی لهذا دا بغير د شک او شبهې نه ناجائز دی. عن انس رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ اذا اقرض احدكم قرضا فاهدی اليه او حمل علی الدابة فلا يركبه ولا يقبلها الا ان يكون جری بينه وبينه قبل ذلك (رواه ابن ماجة) (۱) وعن النبی ﷺ اذا اقرض الرجل فلا يأخذ هديته (رواه البخاری فی تاريخه) (۲) وعن ابی بردة ابن ابی موسی قال قدمت المدينة فلقيت عبد الله بن سلام فقال انك بأرض فيها الربوا فاش فاذا كان لك علی رجل حق فاهدی اليك حمل تبن او حمل شعير اوحبل قت فلا تأخذه فانه الربوا، رواه البخاری (مشكوٰة ۲۶۵) (۳) قال مولانا (۴) علم من هذه الاحاديث ان كل قرض جر نفعا فهو ربوا وحرام (۵) وفی الهندية ۲۶۴:۳ قال محمد رحمه الله فی كتاب الصرف ان ابا حنيفة رحمه الله كان يكره كل قرض جر منفعة فليراجع (۶). وهوالموفق

---

۱ ﴾ (سنن ابن ماجة ۱۷۷ باب القرض)
۲ ﴾ (مشكوٰة المصابيح ۲۴۶ باب الربوا)
۳ ﴾ (مشكوٰة المصابيح ۲۴۶ باب الربوا)
۴ ﴾ مولانا اي امين الله في الارض مولانا نصير الدين الغور غشتوي (مفتي سيف الله حقاني)
۵ ﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله كل قرض جر نفعا حرام) اي اذا كان مشروطا. (ردالمحتار ۴: ۱۹۴ مطلب كل قرض جر نفعا حرام)
۶ ﴾ (فتاوي عالمگيرية ۲۰۲:۳ الباب التاسع عشر في القرض والاستقراض)

## قرض اخستلو سره په هغې باندې د تجارت حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی قرض اخستلو سره په هغې باندې تجارت کوی او قرض نه ادا کوی، آیا د دې تجارت به صحیح وی؟ او د هغې ګټه به حلال وی یا حرام؟ **بینواتوجروا**

المستفتي: نذیر احمد وزیرستان ۲۷ ذی قعده ۱۴۰۶ھ

**الجواب:** د قرض نه ادا کول کبیره ګناه ده.(۱) خو چونکې مدیون د دین مالک وی.(۲) لهذا په دې دین (قرض) باندې تجارت کولو کې هیڅ باک نشته، او نه د دې نه په ګټه کولو کې څۀ باک شته. **وهوالموفق**

## د محتاج د پاره د سودی پیسو اخستلو حکم

**سوال:** قال في الاشباه والنظائر جزء اول القاعدة الخامسة الضرر يزال وفي آخره ۱۱۵ قبيل القاعدة السادسة: وفي القنية والبغية يجوز للمحتاج الاستقراض بالربح اه قال شارحه الحموي وذلك نحوان يقترض عشرة دنانير مثلاً ويجعل لربها شيئاً معلوماً في كل يوم ربحاً، آیا دا صحیح ده؟ **بینواتوجروا**

المستفتي: مولا عبيد الله لور الائی ۲۱ مارچ ۱۹۹۰ء

---

(۱) عن ابي موسى عن النبي ﷺ قال ان اعظم الذنوب عند الله ان يلقاه بها عبد بعد الكبائر التي نهي الله عنها ان يموت رجل وعليه دين لا يدع له قضاء.
(مشكوة المصابيح ۱: ۲۵۳ باب الافلاس والانظار)

(۲) قال العلامة العلاء الدين الحصكفي: ويملك المستقرض القرض بنفس القبض عندهما. (الدرالمختار ۴: ۱۹۳ فصل في القرض)

**الجواب:** دا مسئله صحیح ده (۱) په ربا، زیادت او بالنسیئة کښی بائع او مشتری دواړه د حرامو ارتکاب کوی (۲) او (کل قرض جرنفعاً فهوربا) او د رشوت په صورتونو کښ محتاج د حرامو مرتکب نه وی (۳)، (۴) وهوالموفق

## جنس د جنس په بدل کښ د قرض ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کښ چې جنس په عوض د جنس کښ په قرض اخستل جائز دی یا نه؟ مثلا زید یو من غنم د خپل

---

۱) قال العلامة ابن نجيم : وفي القنية يجوز للمحتاج الاستقراض بالربح.
(البحر الرائق ۶:۱۲۶ باب الربا)

۲) قال العلامة القاري :(عن جابررضي الله عنه لعن رسول اللهﷺ آكل الربا ومؤكله) قال الخطابي سوّي رسول اللهﷺ بين آكل الربا ومؤكله اذ كل لا يتوصل الي اكله الا بمعاونته ومشاركته اياه فهما شريكان في الاثم كما كان شريكين في الفعل.
(مرقاة المفاتيح شرح مشكوة المصابيح ۶:۵۹ باب الربا)

۳) قال الحموي : قوله الرشوة لخوف علي ماله الخ هذا في جانب الدافع اما في جانب المدفوع له فحرام... وينبغي ان يستثني الاخذ بالربا للمحتاج فانه لا يحرم كما صرح به المصنف رحمه الله في البحر ويحرم علي الدافع الاعطاء بالربا.
(شرح الاشباه والنظائر للحموي ۱:۴۴۹ القاعدة الرابعة عشرة ما حرم اخذه حرم اعطاؤه)

وفي شرح المجلة ولهذه القاعدة مستثنيات حال الضرورة كمن وقع تحت يد قطاع الطريق وخاف علي نفسه الهلاک منهم ولا يمكن خلاصه الا برشوة يد فعها لهم فالاعطاء غير ممنوع في حق المعطي حرام في حق الآخذ.
(شرح المجلة ۱:۷۱، ۷۸ المادة ۳۴ ما حرم اخذه حرم اعطاؤه)

۴) **نوټ:** جواب او حواله جات صحیح دی خود محتاج تحدید او تعریف قابل د غور دی.
(مفتی سیف الله حقانی)

ګاونډي بکر نه په عوض د يو من غنمو د يوې مياشتې دپاره په طور د قرض اخلي آيا دا جائز دي؟

المستفتي: شاد محمد کوهاټ... ۱۸ شوال ۱۴۱۰ھ

**الجواب:** دامعامله قرض ده او جائز ده (۱) بلکې عبادت دي.(۲) وهو الموفق

## په قرض ګران خرڅولو کې هيڅ باک نشته

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې يو سړې د دکاندار نه د ګاډي قيمت پوښتنه وکړي او هغه ورته پنځه زره روپۍ ووائي خو اخستونکی وويل چې فی الحال به دوه زره روپۍ درکړم او باقی به درته قسط وار درکړم نو آيا دکاندار دمخکښې قيمت پنځه زره روپو نه زياتولو سره د قرض په صورت کې اووۀ زره روپۍ اخستلې شي يا نه؟ بينواتوجروا

المستفتي: نامعلوم

**الجواب:** د قرض د وجې نه په قيمت کې زيادت جائز دي،

لان النقد خيرمن النسيئة، وفی مجموعة الفتاوی ۲: ۵۲۷ فی حاشية الجلبی:

---

۱) قال العلامة الحصكفي: (وصح) القرض (في مثلي لا في غيره فيصح استقراض الدراهم والدنانير وكذا) كل (ما يكال ويوزن او يعد متقاربا).

(الدرالمختار ۱۹۱: ۴ فصل في القرض)

۲) قال الله تعالىٰ: من ذا الذي يقرض الله قرضا حسنا فيضاعفه له اضعافا كثيرة.

قال العلامة ثناء الله پاني پتي: وفي فضيلة القرض احاديث منها حديث ابن مسعود عن النبي ﷺ قال كل قرض صدقة رواه الطبراني بسند حسن.

(التفسير المظهري ۲۴۵: ۱ آيت: ۲۴۵)

يجوز أن يقدر الثمن فى المبيع بالمؤجل اكثر مما فى المعجل الخ(۱) ويشير اليه تعليل النهر والبحر حيث قال الا ترى انه يزاد الثمن لاجل الاجل(۲) انتهى بخلاف الاعتياض عن الاجل فانه حرام فافهم(۳). وهوالموفق

## د مشين دپاره قرض ورکولو سره څروب شوي ځمکې نه د معين حصې فصل ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د يو سړی کوهې دې هغه ماته وويل چې تاسو ماته پنځلس زره روپۍ راکړئ چې زه په کوهی باندې مشين ولګوم او د دې کوهی نه چې په کومه ځمکه څروب کيږی په هغې کې به ستاسو ۱/۳ حصه باقی نقصان هم برداشت کوئ ما دا شرط ومنلو او هغه ته مې پيسې ورکړې اوس هغه په کوهی باندې مشين لګولې دې اوس زما دپاره ۱/۳ حصه ګټه جائز ده يا نه؟ بينواتوجروا

المستفتی: محمود اينډ محمد امين مهمند ايجنسی...... ۲۶ جون ۱۹۸۷ء

**الجواب:** دا معامله ناجائز ده او په سود کې داخله ده، لحديث: كل قرض جر نفعا فهوربا، رواه الحارث البغدادى فى مسنده(۴) وهوالموفق

---

۱) (مجموعة الفتاوي اردو ۲: ۱۲۴ كتاب البيع)

۲) (البحر الرائق ۶: ۱۱۴ باب المرابحة والتولية)

۳) قال العلامة ابن عابدين: (قوله حالا) لانه اعتياض عن الاجل وهو حرام. (ردالمحتار ۴: ۵۳۴ فصل في دعوي الدين)

۴) عن علي رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ كل قرض جر منفعة فهو ربا رواه الحارث بن ابي اسامة واسناده ساقط وله شاهد ضعيف عن فضالة بن عبيد عند البيهقي وآخر موقوف عن عبد الله بن سلام عند البخاري.
(بلوغ المرام من ادلة الاحكام ۲۸۲ رقم حديث ۸۱۲)... [بقيه بر صفحه آئنده...

## غنم د غنمو په بدل کې د قرض ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې بل ته یو من غنم ورکړې او هغه ته ووائی چې د فصل نه پس به ته ماته یو من غنم راکوې آیا دا جائز ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: پیش امام سائر وشاه مردان......۳۰ شعبان ۱۳۹۹ھ

**الجواب:** عرف ته د مراجعت نه معلومیږی چې دا معامله قرض ده بیع نه ده، پس دا معامله جائز ده.(۱) وهوالموفق

## سفتجه (د لارې د خطرې د لرې کیدو دپاره د قرض ورکولو حکم)

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ د علاقې خلق د مزدورئ کولو دپاره عرب، دبئ، قطر وغیره ته ډیر ځی او کله چې کور والو ته رقم لیږی نو دا صورت اختیار وی چې مثلا زید دا غواړی چې زه درې زره روپئ کورته په څه طریقه باندې ولیږم نو هلته د هغه یو ملګری وویل چې په پیسو کې لس فیصده ماته راکړئ زه به ستاسو رقم ستاسو کور ته ورسوم هغه دا پیسې عمرو ته ورکړې اوس عمرو د هغه ځای نه خپل ورور

---

...بقیه ازحاشیه گذشته]

وفي المنهاج: قال النبي ﷺ ... كل قرض جر نفعا فهو ربا اخرجه الحارث بن ابي اسامة عن علي امير المؤمنين وله شواهد كثيرة روي ابن ماجة عن انس مرفوعا بمعناه وروي عن ابي بن كعب وابن عباس وابن مسعود وفضالة بن عبيد وغيره موقوفا. (منهاج السنن شرح جامع السنن ۵:۲۴ باب ماجاء في الصرف)

(۱) وفي الهندية: ويجوز القرض فيما هو من ذوات الامثال كالمكيل والموزون. (فتاوي عالمگيرية ۳:۲۰۱ الباب التاسع عشر في القرض والاستقراض)

وقال العلامة الحصكفي: هو عقد مخصوص يرد علي دفع مال مثلي لآخر ليرد مثله وصح القرض في مثلي. (الدرالمختار ۴:۱۹۱ فصل في القرض)

بکر ته د خط په ذریعه یا تار دا خبر ورکړو چې تاسو دوه زره اووه سوه روپۍ د زید کور کې ورکړی او عمرو هلته درې زره روپۍ ورکړې او د لس فیصده په حساب سره درې سوه روپۍ خپل ځان سره کېښودلې مهربانی وکړئ د دې څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالجلیل

**الجواب:** که زید د عمر ته دا پیسې قرض اخستلې وی، نو دا معامله او په دې باندې اجرت اخستل دواړه ناجائز دی،

لما فی الدرالمختار: وکرهت السفتجة وهی اقراض لسقوط خطر الطریق(۱) وبمعناه فی جمیع المعتبرات(۲)

او که چېرې دا رقم د وکالت په طور ورکړې شوی وی نو جائز دی.

لجواز اخذ الاجرة علی الوکالة صرحوا به(۳). وهوالموفق

## د ګاونډیانو خپل مینځ کې اوړه، چینی وغیره په معین مقدار کې اخستل قرض دې بیع نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې مثلا په یو کور

---

۱) (الدرالمختار ۳۲۹: ۴ مطلب في السفتجة وهي البوليصة)

۲) وفي الهندية: وكره السفاتج وهو قرض استفاد به المقرض سقوط خطر الطريق وقد نهي رسول الله ﷺ عن قرض جر نفعا.

(فتاوي عالمگيريه ۲۹۴: ۳ مطلب السفتجة وهي البوليصة)

۳) وفي شرح المجلة: اذا اشترطت الاجرة في الوكالة واوفاها يستحقها... وانما يجب للوكيل اجر علي عمله ان شرط له ذلک صريحا او بدلالة العرف.

(شرح المجلة ۴۴۵: ۴ المادة ۱۴۶۷)

وقال العلامة وهبة الزحيلي: تصح الوكالة باجر وبغير اجر لان النبي ﷺ كان يبعث عماله لقبض الصدقات ويجعل لهم عمولة.

(الفقه الاسلامي وادلته ۲۹۹۷: ۴ الوكالة)

کې اوړۀ، چینی یا ډالډا وغیره ختم شی نو ګاونډی په یو لوښی تاپ اخستلو سره دا څیزونه اخلی د دې څه حکم دې؟ دغه شان که یو دکاندار یا سوداګر هم وکړی چې یو تیم ډالډا یا یو من اوړۀ واخلی د بل دکاندار نه، او خپل ضرورت پوره کولو سره لس اتۀ ورځو نه پس بالکل هم په هغه انداز متعینه سره بل ته واپس کوی د دې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

**المستفتی: مولانا معین الدین قریشی...... ۱۷ اګست ۱۹۸۹ء**

**الجواب:** دا معامله جائز ده، دا معامله قرض ده (۱) بیع نه ده الفاظ او عرف دواړه د دې د قرض کیدو ګواه دی او په بعض اجناس کې (مثلا مالګه مرچکې وغیره) خالص مسامحه مقصود وی. (۲) **وهوالموفق**

## پاکستانی سکه خپل مینځ کې په قرض خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې کله چې یو دکاندار یا دبل چا نه سل روپئ د نوټ په بدل کې ماتې روپئ اخستل وی نو د دې خبرې خیال ساتل ضروری دی چې هغه وخت د هغه دکاندار نه یا د هغه سړی نه چې د هغه نه ئې د نوټ په بدل کې ماتې روپئ که پنځه وی، د پنځه نوټونه وی یا د لسو نوټونه وی پوره په پوره وصول کړې شی که دې سړی نوی روپئ وصول کړی او د لسو روپو معذوری ظاهر کړه نو که دا دکاندار یا سړې دا

---

۱) قال العلامة الحصكفي: (وصح) القرض (في مثلي لا في غيره فيصح استقراض الدراهم والدنانير وكذا) كل (ما يكال ويوزن او يعد متقاربا).

(الدرالمختار ۱۹۱: ۴ فصل في القرض)

۲) عن جابر بن عبد الله رضي الله عنهما ان رسول الله ﷺ قال رحم الله رجلا سمحا اذا باع واذا اشتري واذا اقتضي. قال العلامة العيني: وفي الحديث الحض علي المسامحة وحسن المعاملة واستعمال محاسن الاخلاق ومكارمها.

(عمدة القاري ۱۸۸،۱۸۹: ۱۱ باب السهولة والسماحة في الشراء والبيع)

ووائی چې د لسو روپو کمې په صبا ته پوره کړی نو که داسې وشوه نو دا سود دې یعنی د لسو روپو کمې سود دې یا نه دې؟ بعض دې ته سود نه وائی، وائی کله چې بیع نه وی شوې نو سود هم نه راځی، شرعی حکم څه دې؟ بینواتوجروا

**المستفتی**: شاهسوار خان دوسلی میرانشاه شمالی وزیرستان ... ۲۶ شعبان ۱۴۰۳ھ

**الجواب**: که د نوټ حقیقت قباله(۱) وی یا ثمن عرفی وی «د فلوس په شان» نو په دې کې دا بدلون بیع صرف نه ده بیع صرف په ثمن خلقی کې وی خلاصه دا ده چې نوټ نه سره زر دی او نه سپین زر بلکې یو کاغذ دې یا قباله ده او یا ثمن عرفی دې وهوالراجح عندالتحقیق (۲) په دې کې ربا **کل قرض جرنفعا فهوربا**.... په قاعده باندې راتلې شی. (۳) خو بیع صرف او یا د ربا زیادة په هغې کې راتلل د فهم نه اوچت دی. وهوالموفق

---

۱) قباله: هغه کاغذ چه په هغې سره په څه څیز باندې ملکیت ښکاره شی. (فیروز اللغات ۹۴۷)

۲) وفي المنهاج: اختلف الاكابر في حقيقة النوت، قال بعضهم انه قبالة الحوالة وليس بثمن ... وقال بعضهم هو ثمن رائج لانه يتوسل به الي حصول الاجناس مثل الدراهم المغلوبة الفضة والفلوس وكذا لا يقصد به عند الاخذ والاعطاء الا ما يقصد عند اخذ الدراهم الرائجة والفلوس واعطاء ها ولا يخطر ببال احد ما يقصد من الحوالة والقبالة فافهم ... قلت ويؤيد كونه اثمانا رائجة ان المتعارف ان من اقترض عددا من النوت لا يؤدي المقرض الا هذا العدد وان تفاوت الدراهم في قدر الفضة.
(منهاج السنن شرح جامع السنن ۳:۱۲۷ باب ماجاء في زكوة الذهب والورق)

۳) قال العلامة ابن عابدين: (قوله كل قرض جر نفعا حرام) اي اذا كان مشروطا.
(ردالمحتار ۴:۱۹۴ مطلب كل قرض جر نفعا حرام)

## سرۀ زر او سپين زر په نقد پيسو باندې اخستلو

## سره په قرض باندې زيادة سره خرڅول

**سوال:** څه فرمائی علماء كرام د دې مسئلې په باره كې چې:

۱: زيد د يو صراف نه سرۀ يا سپين په نقد پيسو باندې واخلی بيا هم هغه سرۀ زر يا سپين زر په قرض باندې خرڅ كړی او فی توله سل روپۍ زيات قيمت لګوی نو آيا دا زيادت جائز دې؟ او دا معامله حرام ده كه جائز؟

۲: جميل سره پنځه تولې سرۀ زر او لس تولې سپين زر دی نو د زكاة حكم به څه وی؟ تضمين به د كوم طرفه وی؟ او كه چا سره يو توله سرۀ زر او شل تولې سپين زر وی نو زكوة به د څه نه وركوی. په البحر الرائق ۲:۲۳۲كې دی: وتضم قيمة العروض الى الثمنين والذهب الى الفضة وضم احدي النقدين الى الآخر قيمة، مذهب الامام حتى ان من كان له مائة دراهم وخمسة مثاقيل ذهب تبلغ قيمتها مائة درهم فعليه الزكوٰة، د دې څه حكم دې؟ بينوا توجروا

المستفتی: محمد فاضل كلې چينه علاقه بونير تحصيل وډاكخانه ډګر ضلع سوات. ۲۰ جمادي الثاني ۱۴۰۸ھ هجري

**الجواب:** ۱: چونكې نوټ ثمن عرفی دې نه فضة دې او نه ذهب، لهذا په دې بيع كې لاس په لاس كيدل ضروری نه دی. (۱) او چلپی وغيره ليكلې دی چې د قرض د وجې نه ثمن زيات مقررول جائز دی. (۲) وكم من فرق بين

---

۱) قال العلامة الحصكفي: (وان عدما حلا) كهروي بمرويين لعدم العلة.

(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۴:۱۹۹ باب الربا)

۲) قال العلامة اللكهنوي: حاشيه چلپي ميں ہے: يجوز ان يقدر الثمن في المبيع بالمؤجل اكثر مما في المعجل بحيث تقابل كثرة المؤجل تعجيل القليل.

(مجموعة الفتاوىٰ ۲:۱۲۳،۱۲۴ كتاب البيع)

وقال العلامة ابن عابدين: لان للاجل شبها بالمبيع الاتري انه يزاد في الثمن لاجله. (ردالمحتار ۴:۱۷۷ باب المرابحة والتولية)

الزيادة لاجل التأجيل وبين الزيادة عوض التأجيل (١)

۲: فقهاء کرامو په دې باب کې انفع للفقراء معتبر کړې دې، وهو ضم الذهب الى الفضة في ديارنا. وهو الموفق

## المظلوم لا يظلم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زيد د عمرو نه د بکر قرض واخستلو څه موده پس عمرو د زيد نه سود واخستلو. آيا د دې سود پيسې زيد د بکر نه اخستلې شي يا نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم

**الجواب:** في هذه الصورة يقع الملك لزيد سواء وكله بكو بالإستقراض أولم يوكله. الثاني ظاهر. والأول يدل عليه ما في الهندية ٣: ٤٣٠: لايصح التوكيل بالاستقراض فلا يثبت الملك فيما استقرض للموكل (٢) الخ فلا وجه للرجوع على بكر مع أن المظلوم لايظلم. (٣) وهو الموفق

---

١ ) وفي المنهاج: جازت الزيادة في الثمن لاجل التاجيل كما ذكره الجلبي وقالوا النقد خير من النسيئة بخلاف الاعتياض عن الاجل فانه حرام.
(منهاج السنن شرح جامع السنن ١٦: ٥ باب ماجاء في النهي عن بيعتين في بيعة)

٢ ) (فتاوي عالمگيرية ٣: ٥٦٤ كتاب الوكالة ،باب الاول)

وقال العلامة الطحطاوي رحمه الله تعالي" التوكيل بالإستقراض باطل و عليه الفتوى حتي لو وكل به فاستقرض كان له لا للموكل".
(الطحطاوي علي الدر المختار ٣: ٢٦٩ قبيل باب الوكالة بالبيع و الشراء)

٣ ) و في مجموعة قواعد الفقه: المظلوم له أن يدفع الظلم عن نفسه بما قدر عليه لكن ليس له أن يظلم غيره. (مجموعة قواعد الفقه ١٢٤: قاعده ٣٣٢)

## د قرضې د غیر جنس نه په ادا کولو کې به د وطنی قیمت اعتبار وی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې بکر د زید نه ۱۰۰۰ روپئ قرض واخستلې په داسې حال کې چې یوه روپئ شپاړس آنې وه اوس په دې وخت کې یوه روپئ د څلورو انو ده، نو آیا دولس انې کومې چې باقی پاتې کیږی په زید باندې ادا کول ضروری دی یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: نامعلوم ..... ۲۹ رجب ۱۳۹۳ھ

**الجواب:** په روپئ کې وطنی قیمت معتبر وی نه بین الاقوامی (۱) لهذا نور ورکول به مطلوب نه وی. **وهوالموفق**

## د ورک شوو او فوت شوو کسانو د قرضې د ورکولو طریقه

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید د څو کسانو نه قرضه اخستلې وه، په دوی کې اوس ځینې قرض اخستونکی ورک دی خو ځینې وارثان او رشته دار موجود دی اوس که زید ددې ورک شوې خلقو پیسې د هغوی د ایصال ثواب دپاره خیرات کړی، او یا یې ځینو معلوم قرض غوښتونکو وارثانو ته د هغوی د مورث قرضه ورکړی نو آیا د زید ذمه به فارغه شی؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: نثار محمد پرانگ چارسده ..... ۵ مئ ۶۹ء

**الجواب:** هو په دې طریقه کار سره د زید ذمه فارغیږی. (۲) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالي "قوله و عندالثالث يوم اختصما و عبارة الخانية قيمته بالعراق يوم اختصما فأفاد أن الواجب قيمته يوم الإختصام التي في بلد القرض. (رد المحتار ۴ : ۱۹۲ فصل في القرض)

۲) وفي الخانية : رجل مات وله علي رجل حق و لم يخلف وارثا قالوا يتصدق المديون بما عليه عن الميت ليكون ذلك وديعة عندالله تعالي فيوصله ... [بقيه بر صفحه آئنده ...

## د یتیم مال د قرض په طور اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د یتیم مال د قرض په طور اخستلې شی یا نه؟ بینواتوجروا

**المستفتی:** حضرت کلیم الله شاه صاحب مسکین پور شریف
ضلع مظفر گړه...۱٤ مارچ ۷۳ء

**الجواب:** د ضرورت په وخت وصی پخپله اخستلې شی چې کله محتاج وی او بیا یې په ورکولو هم قادر وی.(۱) (هامش جامع الفصولین ۱۷۳/۲) وهوالموفق

## کافر یا د هغه وارثانو ته قرضه واپس کول ضروری دی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی د یو کافر نه ۱۰۰ روپئ قرض واخستلې او بیا ئې د واپس کولو نه انکار وکړو چې د مشرک مال د مسلمان دپاره قبضه کول جائز دی نو آیا هغه ته رقم واپس کول پکار دی او که نه؟ بینواتوجروا

**المستفتی:** مولانا دار خان میرپور سکهر سندھ.... ۱۵ جنوری ۷۰ء

---

...بقیه ازحاشیه گذشته ا إلي خصمه یوم القیمة".
(الفتاوی الخانیة علي هامش الهندیة ۳:۲۵۸ کتاب الغصب،فصل في براءة الغاصب والمدیون)
(کذا في الهندیة ۵: ۱۵۷ کتاب الغصب،الباب الرابع عشر في المتفرقات)

(۱) وقال العلامة الشامي رحمه الله تعالي:"ولا یملک إقراض مال الیتیم فإن أقرض ضمن...ولوأخذه الوصي قرضا لنفسه لایجوز و یکون دینا علیه وقال محمد وأما أنا أرجوأنه لوفعل ذلک وهو قادرعلي القضاء لابأس به"(ردالمحتار ۵:۵۰۳باب الوصي)
(ومثله في المحیط البرهاني ۲۳:۶۲ کتاب الوصایا،النوع الثاني في تصرف الوصي في مال الیتیم)

**الجواب:** مشرک ته به قرضه واپس ورکولې شي يا د هغه وارثانو ته، د دې مقروض قبضه کول ناجائز دی (۱)

...

۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالي "فإن إدانه حربي دينا ببيع أوقرض وبعكسه أوغصب أحد هما صاحبه وخرجا إلينالم نقض لأحدبشيئ لأنه ماالتزم حكم الإسلام فيما مضي بل فيما يستقبل ويفتي المسلم بردالمغصوب و بردالدين أيضا ديانة لا قضاءً لأنه غدر".

(الدر المختار ۳: ۲۷۱باب المستأمن)

# باب الحقوق والاستحقاق

## د تيريدو حق نه لرونكو د پاره د طريق غير نافذه طرف ته دروازه راويستل

**سوال:** څه فرمائي علماء كرام د دې مسئلې په باره كې يوه لاره غير نافذه ده صرف د درې كورونو دپاره دا لار ده او يو كور د دې لار نه بهر دې چې د هغې لاره د بلې نافذې لاره طرف ته ده اوس دا كور والا كوم چې د غير نافذه په حد كې نه دې غواړي چې زه په يو زړو ديوال كې دروازه ولګوم چې د غير نافذه لارې په حدودو كې داخل شم، اوس عرض دا دې چې آيا دې كور والا ته شرعا اجازت ملاويدې شي حال دا چې د درې واړه كورونو مالكان، كوم چې په لاره غير نافذه كې دننه دي، د هغوى سخته دشمني ده او يوه دروازه ئې د مخكې نه لګولې ده، مهرباني وكړئ جواب راكړئ؟ بينواتوجروا

المستفتي: حاجي محمد علي خان داس چوک بنوں شهر ..... ۲۱ شوال ۱۴۰۳هـ

**الجواب:** ومنه الصدق والصواب... د كوم سړي دپاره چې طريق غير نافذه كې د تلو حق نه وى نو هغه دې طريق غير نافذه طرف ته دروازه نه لګوي، **كما في** شرح المجلة ۶۶۸: لا يجوز لمن لم يكن له حق المرور في طريق خاص ان يحدث فيه بابا فلو كان لرجل دار بابها في سكة وظهرها في سكة اخرى غير نافذة اي خاصة فاراد ان يجعل لداره بابا في هذه السكة الخاصة فالصحيح انه يمنع عن ذلك اذا لم يكن له حق المرور في هذه السكة (خانية) (۱). وهو الموفق

---

۱) (شرح المجلة لسليم رستم باز ۶۶۸ المادة ۱۲۰۹ الفصل الثالث في الطريق)

وفي الهندية: فليس لاهل الزائغة الاولي ان يفتحوا بابا في الزائغة القصوي لان فتحه للمرور ولا حق لهم في المرور اذ هو لاهلها خصوصاً.

(فتاوي هندية ۳:۴۴۴ كتاب ادب القاضي الباب الثاني والثلاثون في المتفرقات)

## د ځمکې د مالک د پخوانۍ لارې د بندولو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید وغیره په یو داسې ځای باندې کورونه جوړ کړي دي چېرته چې په پخوانۍ زمانه کې آبادي تیره شوې ده، جوړ شوي کورونه تقریبا پنځلس شپاړس دي خو د هغه کورونو لار د بعض خلقو په ځمکه باندې تیریږي چې په هغې باندې کورونو والا تقریبًا د پنځوس کالو نه تګ را تګ کوي او چا هم بندیز نه لګولو خو اوس بعض د ځمکو والا لاره بندوي چې د هغې د وجې نه ټولو کورونو والو ته سخت تکلیف دې حال دا چې کورونو والا قیمت ورکولو ته هم تیار دي او په دې عوض کې ځمکه هم، اوس سوال دا دې چې آیا د ځمکې مالکانو ته د لارې د بندولو حق شته حال دا چې د پنځوسو کالو نه په دې باندې تګ را تګ جاري وو؟ بینوا توجروا

المستفتي: شفیع الله سکنه جهانګیره مردان ..... ۲۳ ربیع الثانی ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** که دا تیریدل په طور د عاریت یا په طور د کومك وو نود ﴿ ما علی المحسنین من سبیل ﴾ (۱) په بناء باندې د دې تلو بندیز قابل اعتراض نه دې. (۲) او که دا تلل په طور د حق شرعی (وصیت او غیرها) په

---

۱ ﴾ (سورة التوبة، آیت: ۹۱)

۲ ﴾ قال العلامة خیر الدین: کل من تصرف في خالص ملکه لا یمنع في الحکم وان کان یؤدي الي الحاق الضرر بالغیر.

(فتاوي خیریة علي هامش تنقیح الحامدیة ۲:۳۱۲ فصل في الحیطان والطرق)

وفي شرح المجلة: اذا کان له باب مفتوح من داره علي حائط في زقاق انکر اهل الزقاق ان یکون له حق المرور في زقاقهم فلهم منعه الا ان تقوم بینة علي ان له طریقا ثابتاً فیها.

(شرح المجلة لسیلم رستم باز ۱۱۵۵ فصل في دعوي الحائط والطریق)

بناء باندې وو نو د هغې بندیز قابل اعتراض دې. (۱) وهوالموفق

## د څمکې خرڅولو نه پس د غیر مقرر شوې لارې مطالبه کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړي خپله ځمکه خرڅه کړه، د اخستلو او خرڅولو په وخت لاره نه وه مقرر شوې نو آیا د مشتری دپاره په دې کې د لارې حق شته یا نه؟ دلته موجوده څه عام لاره نشته صرف یو کور وو چې د هغه څه خاص لاره مقرره نه وه نو آیا د بائع نه د لارې اخستلو جواز شته یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: حضرت جمال حقانی خطیب جی ټی ایس مسجد لوټهر ۲۵ جولائی ۱۹۸۵ء

**الجواب:** کله چې د اخستلو او خرڅولو په وخت د لارې مسئله نه وه حل شوې نو اوس د دې هیڅ حل نشته. (۲)، (۳) وهوالموفق

---

(۱) قال العلامة خير الدين الرملي: ومن له المرور في محل له فتح باب فيه كما صرحت به علماؤنا قاطبة ولا يقدر احد علي منعه منه كما لا قدرة له علي منعه من المرور فيه.

(فتاوي خيرية علي هامش تنقيح الحامدية ۲:۳۱۴ فصل في الحيطان والطرق)

(۲) وفي الهندية: ومن اشتري منزلا في دار او مسكنا فيها لم يكن له الطريق الي ذلک المشتري الا ان يشتريه بكل حق... اشتري دارا لا يدخل فيه الطريق من غير ذكر... واذا لم يدخل الطريق وليس له مفتح الي الشارع له ان يرد البيع ان لم يعلم بحال.

(فتاوي هندية ۳:۲۹ الباب الخامس فيما يدخل تحت البيع من غير ذكر الخ)

وقال العلامة الشامي: قال في الهداية من اشتري بيتا في دار او منزلا او مسكنا لم يكن له الطريق الا ان يشتريه بكل حق هو له... لانه خارج الحدود الا انه من التوابع فيدخل بذكر التوابع. (ردالمحتار ۴:۲۱۱ باب الحقوق)

(۳) خو که لاره مستقل طور باندې واخلی. (مفتی سیف الله حقانی)

## د بائع په مبیع باندې د مستحق دپاره اقرار کول

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید په عمرو باندې يوه ځمکه خرڅه کړه بيا خالد د دې ځمکې په څه حصه باندې دعوی وکړه چې په دې خرڅه شوې ځمکه کې زما نیمه حصه ده، زید (بائع) د خالد دپاره د نیمې حصې اقرار وکړو چې په دې خرڅه شوې ځمکه کې ستا نیمه حصه ده او ستا نیمه حصه ځمکه ما په عمرو باندې نه ده خرڅه کړې او زید باقاعده لیکلې اقرار نامه د شاهدانو په وړاندې سره د ګوتو د نخښې خالد ته ورکړه، آیا خالد د زید په اقرار باندې مستحق کیدې شي یا نه؟ او آیا د بائع پورته اقرار عند الشرع معتبر دې یا نه؟ او عمرو دا وويل چې دا حصه ځمکه د پنځوس کالو نه د ګانې د وجې نه زما د کروندې د لاندې ده، بیا زید د اختسلو دعوی وکړه، د دې نه پس ئې د ملکیت دعوی وکړه او د خالد په دعوی باندې هغه وويل چې دا زائد الميعاد ده اوس د علماء اسلام نه استفتاء ده چې آیا د بائع اقرار للمستحق معتبر دې او د خالد دعوی د عمرو په پورته ذکر شوو نکاتو باندې معتبره ده یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتي: خير خان، سلطان خيل بالا دره دير ..... ۲٦ جمادي الاول ۱٤۰۲ هـ

**الجواب:** په فتاوی أنقرويه ۲: ۱۷۸ کې دی: ولو اقام المشتري البينة على اقرار البائع انها ملك المستحق قبلت بينة الخ(۱) وايضاً في شرح المجلة ۲۲۹(۲) والخلاصة ٤: ۱۲۰ لو اقام البينة على اقرار البائع انه للمستحق رجع عليه(۳)

---

(۱) (فتاوي انقروية ۱۷۸: ۲ باب الاستحقاق)

(۲) قال العلامة سليم رستم باز: اما لو برهن علي اقرار البائع انه للمستحق يقبل لعدم التناقض.
(شرح المجلة ۲۲۹ باب الاستحقاق)

(۳) خلاصة الفتاوي ۱۲۰: ٤ الفصل الخامس عشر في الاستحقاق)

وردالمحتار۴: ۴۳۷(۱). وهوالموفق

## د غیر سپارلې شوې یا ګانه کړې ملکیت خرڅولو په صورت کې به مشتری په بائع باندې رجوع کوی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید بکر قتل کړو او د مقتول ځوئې کله چې بالغ شو نو هغه دا قاتل قتل کړو نو حاکم د قاتل ثانی نه زر درهم او یوه ځمکه واخستله کله چې دویم حاکم راغلو نو هغه ځمکه بیا خپل اصلی مالک نه واپس کړه د مالک په هغې باندې د لسو کالو نه تصرف کولو نه پس یو سړی دعوی وکړه چې دا ځمکه ما د حاکم اول نه په بیع اخستلې وه نو حاکم هغه ته په شریعت محمدی ﷺ باندې د فیصله کولو حکم ورکړو نو آیا دا دعوی شرعاً قابل سماعت ده یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم........۱۹اکتوبر ۱۹۷۷ء

**الجواب:** که د مدعی علیه ملکیت سپارلې شوې یا ښکاره وی نو مدعی دې په بائع پسې اولګی او د هغه نه دې ثمن واپس واخلی (۲) او دده دپاره د ذوالید سره د خصومت حق نشته ځکه چې هغه په ید او تصرف سره د ځمکې حقدار دې (۳) وهوالموفق

---

۱) قال العلامة الشامي رحمه الله تعالي: اما لو برهن علي اقرار البائع انه للمستحق يقبل لعدم التناقض. (ردالمحتار ۴: ۲۱۷باب الاستحقاق)

۲) وفي الهندية: وان يكون ملك البائع فيما يبيعه لنفسه فلا ينعقد بيع ماليس مملوكا له. (هندية ۳: ۳كتاب البيوع، الباب الاول في تعريف البيع الخ)

وقال العلامة الحصكفي: ويثبت رجوع المشتري علي بائعه بالثمن اذا كان الاستحقاق بالبينة.

(الدرالمختار ۲۱۶: ۴باب الاستحقاق، كتاب البيوع)

۳) قال العلامة ابن عابدين: ان وضع اليد والتصرف من اقوي ما يستدل به علي الملك. (ردالمحتار ۲۸۱: ۳مطلب القول لذي اليد ان الارض ملكه الخ)

## موهوب له د موهوبه ځمکې د لارې نه منع کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی بل نژدې رشته دار ته غیر آباد ځمکه د کور جوړولو دپاره هبه کړی او په هغې کې کور تیار شی بیا دیرش ځلویښت کاله پس د دې کور خلق د لارې نه منع کوی نو د کور مالک به د لارې حقدار وی یا نه؟

**نوټ:** هبه کونکې وفات شوې دې خو د هغه وریرونه وغیره د کور خلق منع کوی بینواتوجروا

المستفتی: مولانا کرامت شاه صاحب نوښار ...... ۶ جولائی ۱۹۷۶ء

**الجواب:** که دې واهب ځمکه سره د لارې نه هبه کړې وی نو د دې واهب د وارثانو دپاره د لارې نه منع کول جائز نه دی. (۱) او که دا وارثان ثابته کړی چې په دې لاره باندې تیریدل تبرع وو نو په دې صورت کې به منع کول جائز وی (۲) وهوالموفق

...

---

(۱) قال العلامة خير الدين الرملي: ومن له المرور في محل له فتح باب فيه كما صرحت به علماء نا قاطبة ولا يقدر احد علي منعه منه كمالا قدرة له علي منعه من المرور فيه.

(فتاوي خيرية علي هامش تنقيح الحامدية ۲:۳۱۴ فصل في الحيطان والطرق)

(۲) وفي الهندية: اذا كان له باب مفتوح من داره علي حائط في زقاق انكر اهل الزقاق ان يكون له حق المرور في زقاقهم فلهم منعه الا ان تقوم بينة علي ان له طريقا ثابتا فيها كذا في المحيط. (فتاوي هندية ۴:۱۰۴ الباب الحادي عشر في دعوي الطريق والمسيل)

(ومثله في شرح المجلة ۱۱۵۵ فصل في دعوي الحائط والطريق)

بسم اللّٰه الرحمٰن الرحیم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاویٰ فریدیه

اووم جلد

# کتاب الوکالة والکفالة والحوالة

.........

بسم اللہ الرحمن الرحیم

# فتاوی دیوبند پاکستان

المعروف بہ

# فتاوی فریدیه

# کتاب الوکالة والکفالة والحوالة

قال اللہ تبارک وتعالیٰ:

فَابْعَثُوا أَحَدَكُمْ بِوَرِقِكُمْ هَٰذِهِ إِلَى الْمَدِينَةِ فَلْيَنْظُرْ أَيُّهَا أَزْكَىٰ طَعَامًا فَلْيَأْتِكُمْ بِرِزْقٍ مِنْهُ

(سورۃ الکہف)

وَكَفَّلَهَا زَكَرِيَّا

(سورۃ آل عمران)

# كتاب الوكالة والكفالة والحوالة

## په عیب (نقصان) باندې د خبریدلو باوجود شراء نه خو وکیل واپس کولې شی او نه موکل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید عمرو د يو خچر په اخستلو باندې وکیل کړو. عمرو د بکر نه یو خچر واخستلو چې ډیر کمزورې وو نو زید وویل چې دې ډیر کمزورې دې عمرو وویل چې: دې تدبیر ماته راځی او هغه ته ئې تیل ورکړل چې د هغې نه خچر مړ شو او تیل ئې هم د مشتری په کور کې ورکړل نو اوس به د خچر قیمت درې زره روپۍ عمرو ورکوی یا زید؟ او که د بکر خچر ضائع شو؟ بینواتوجروا

**المستفتی:** مولوی صاحب بټل مانسهره ...... ۲۸ دسمبر ۱۹۷۵ء

**الجواب:** کله چې وکیل په کمزورئ باندې د خبریدلو باوجود شراء کړې ده نوشرعادې مبیع (خچر) لره نه وکیل واپس کولې شی اونه مؤکل (۱) خصوصا کله چې ئې علاج هم وکړې شو نو د واپس کولو حق بالکلیه منقطع شو. (۲) بهرحال وکیل باندې به ضمان نه وی ځکه چې اول دا وکالت مطلقه دې. (۳)

---

(۱) قال العلامة ابن عابدين: (قوله بالعيب) اشار الي انه لو رضي بالعيب فانه يلزمه ثم المؤكل ان شاء قبله وان شاء الزم الوكيل وقبل ان يلزم الوكيل لو هلك يهلك من مال المؤكل. (ردالمحتار ۴:۴۴۹ باب الوكالة بالبيع والشراء)

(۲) قال العلامة المرغيناني: من اشتري جارية فوجدبها قرحا فداواها فهو رضا. (هداية ۳:۴۷ باب خيار العيب)

(۳) قال العلامة ابن عابدين: (قوله ان عمت) بان يقول ابتع لي ما رأيت لانه فوض الامر الي رأيه فأي شيئ يشتريه يكون ممتثلا.
(ردالمحتار ۴:۴۴۸ باب الوكالة بالبيع والشراء)

ثانیا د مشتری موکل قبض هم کړي دي (۱) دا ټول مسائل هدایه او شامی د باب خیار العیب او باب الوکالة بالبیع والشراء نه ماخوذ دی وهوالموفق

## د توکیل د اجازت نه کیدو په صورت کې وکیل اول ضامن دي

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید عمرو ته اووه سوه روپۍ ورکړې او ويې ويل چې دا بکر ته ورسوه. عمرو دا پیسې خپلې مور ته ورکړې تاسو خو هسې هم د بکر کور ته ځئ لهذا دا پیسې هم هغه ته ورسوئ خو په لاره کې دا پیسې ورکې شوې نو د دې پیسو وصولی به د عمرو نه کوی یا د هغه د مور نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: بخت حسین مصری بانډه اکوړه خټک.....۶ رجب ۱۴۰۲

**الجواب:** چونکې په ظاهره کې دې موکل دې وکیل ته (بکر ته) د توکیل اجازت نه دې ورکړې. لهذا په ظاهره کې په هغه باندې ضمان واجب دې، کما فی شرح المجلة ۴۸۷ لیس لمن وکل بأمر ان یوکل به غیره الا ان یکون الموکل قد اذنه بذلک الخ (۲) وهوالموفق

---

۱ ) قال العلامة المرغيناني: واذا اشتري الوكيل وقبض ثم اطلع علي عيب فله ان يرده بالعيب مادام المبيع في يده... فان سلمه الي الموكل لم يرده الا باذنه لانه انتهي حكم الوكالة.

(هداية ۱۸۲: ۳ باب الوكالة بالبيع والشراء)

۲ ) (شرح المجلة ۴۴۰: ۴ المادة ۱۴۶۶)

وفي الهندية: ليس للوكيل ان يوكل غيره بما وكل الا ان يطلق له الذي وكله او يجيز امره فيما وكل به فيكون له ذلک.

(فتاويٰ عالمگيرية ۵۶۶: ۳ كتاب الوكالة، الباب الاول في بيان معناها شرعاً الخ)

## د خصم د رضامندئ نه بغیر د خصومت دپاره وکیل مقرر کول

**سوال:** ما قولکم دام فضلکم فی هذه المسئلة هل یصح التوکیل بالخصومة بغیر رضاء الخصم ام لا؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی سلطان محمود پیش امام مسجد پراؤ دیر ... ۱ اگست ۱۹۷۲ء

**الجواب:** نعم! یصح التوکیل بالخصومة وان لم یرض به الخصم کما فی شرح المجلة: لکل من المدعی والمدعی علیه ان یوکل من شاء بالخصومة ولا یشترط رضا الآخر ولا فرق فیما اذا کان طالب التوکیل معذورا الخ (۸۲۰)(۱).

وهو الموفق

## د یو دکاندار د بل دکاندار گاهک ته سامان ورکولو باندې کمیشن اخستل توکیل بالاجرة جائز دي یا نه؟

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ما په یو ځای کې لوستلې وو چې کوم مال چا سره نه وی په هغې باندې منافع اخستل حرام دی په دې سلسله کې وضاحت پکار دې، اصل کې زمونږ په علاقه یو رواج عام دې چې یو دکاندار د بل دکاندار نه د نوټونو هارونه یوسی او خپل گاهک ته ئې ورکوی دغه شان پنځه روپئ په وړوکی هار کې او لس روپئ په لوئې هار کې کمیشن هغوی نه ملاویږی آیا دا کمیشن جائز دې؟

---

(۱) شرح المجلة لسلیم رستم باز: ۸۲۰ المادة ۱۵۱۶ الفصل الخامس في الوکالة بالخصومة)

وفي الهندیة: التوکیل بالخصومة بغیر رضا الخصم لا یلزم وقالا یلزم والفقیه ابو اللیث اختار قولهما للفتوی کذا في خزانة المفتیین وقال العتابي وهو المختار وبه اخذ الصفار کذا في البحر الرائق. (فتاوي هندیة ۶۱۵:۳ الباب السابع في التوکیل بالخصومة)

چه هر کله ئې خپل مال هم نه وي. په دکان کې ئې کيښودلې هم نه وي. څه محنت ئې هم نه وي کړې. صرف د يو دکان نه ورلو سره ګاهک نه ورکړې شي. بينواتوجروا

المستفتي: محبوب النبي اظهر کشمير جنرل ستور اټک.....۲۱ صفر ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** په ظاهر کې دا بيع المعدوم نه ده بلکې توکيل بالاجرة دې چې جائز دې.(۱) خو په هار کې وضع شوې نوټونو نه زياتي نوټونو باندې اخستل خرڅول قابل اعتراض دي. (۲) (۳) والله اعلم.

## د هنډۍ د رسم حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې حميد او کريم دواړه په دبئ کې اوسيږي. د حميد ورور په پاکستان کې اوسيږي او د کريم هم. اوس حميد زر روپئ ګټلو سره کور ته ليږل غواړي. حميد زر درهم کريم باندې خرڅ کړل او کريم حميد ته ووېل چې لس ورځې پس به درته په پاکستان کې درې زره ملاؤ شي اوس بې نه کريم ورکولې شي او نه حميد

---

۱) في شرح المجلة: اذا اشترطت الاجرة في الوكالة واوفاها الوكيل يستحقها.
(شرح المجلة ۴۴۵:۴ المادة ۱۴۶۷)

وقال العلامة الدكتور وهبة الزحيلي: تصح الوكالة باجر وبغير اجر لان النبي ﷺ كان يبعث عماله لقبض الصدقات ويجعل لهم عمولة.
(الفقه الاسلامي وادلته ۴۰۵۸:۵ الوكالة باجر)

۲) وفي حاشية شرح الوقاية: واما النوت هو القرطس الرائجة تحكما فيها مكتوب ثمنه اي عشرة او عشرون او الف فهو مهلک في الروبية علي الصحيح لا نسبة له بالذهب فلا يجوز بيعه بالروبية الا متساويا بما كتب فيه.
(تكملة عمدة الرعاية علي شرح الوقاية ۸۷:۳ حاشية: ۶ كتاب الصرف)

۳) مروجه کرنسي چونکې د تجارت د متاع په حکم کې ده لهذا کله چه قدر سره جنس هم مفقود وي نو فضل او نسيئه دواړه قابل د اعتراض نه دي او په صورت د وجود کې د جنس فضل لا بأس به او نسيئه به ناجائز وي. (مفتي سيف الله حقاني)

غواړي، حمید په خوشحالئ سره په پاکستان کې غواړي. کریم خپل ورور ته خط ولیکلو چې د حمید رورته دري زره روپئ پاکستانئ ورکړئ. حمید هم ورور ته دغه شان ولیکل چې د کریم د ورور نه واخله خو د کریم ورور پنځلس ورځې پس ورکړې او دا چې د کرنسئ جنس غیر دې لاس په لاس هم نه دې. اوس که په دې معامله کې د حکومت په ذریعه دا پیسې ولیږلې شي نو د درې زرو به درته دوه نیم زره ملاویږي. اوس که کریم هم هغه زر درهم په بل چا باندې دوه سوه او درې زره باندې خرڅ کړي چې په پاکستان کې به زما ورور ته درې زره او دوه سوه روپئ ورکوي نو دا منافع د هغه دپاره څه حکم لري یا کریم هغه ته په زر درهم باندې کړه واخستله او په دې باندې پاکستان کې دوه سوه روپئ ګټه وشوه. د دې شرعی حکم څه دې دغه شان کله نقصان هم کریم ته کیږي؟ بینوا توجروا

**المستفتی: مولوی فضل الرحمن پوسټ بکس ۵٤۱۱**

**دبۍ متحده عرب امارات ... ۱۹/ربیع الثانی ۱٤۰۲ھ**

**الجواب:** د هنډی معامله ناجائز نه ده ځکه چې دا د نوټ وغیره کاغذات په حقیقت کې ثمن رائجه او ثمن عرفی دی ثمن خلقی نه دی. ثمن خلقی صرف سرو او سپینو زرو ته ته ویلې شي پس کله چې حمید کریم ته زر دراهم ورکړل چې هغه درې زره پاکستانی روپئ د ډاک په ذریعه د خپل ورور په ذریعه د حمید ورور ته ورکړي نو په حقیقت کې هم دې حمید د کریم سره بیع موجل کړې ده چې جائز ده (۱) (لعدم کونه بیع الصرف) او د دې نه علاوه حمید کریم د دې امر وکیل جوړ کړو چې دا ثمن زما ورور ته اصالة یا وکالة ورسوی. (۲) بهرحال دې هنډی او پاکستان ته تلونکی ملګری ته د پیسو

---

۱) قال العلامة الحصكفي: (وصح بثمن حال) وهو الاصل (ومؤجل الي معلوم) لئلا يفضي الي النزاع.

(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۲۵ : ۴ مطلب في الفرق بين الاثمان والمبيعات)

۲) قال العلامة ابن عابدين: (قوله وصح بايفائها) ...[بقيهٔ بر صفحه آئنده...

ورکولو او د ډاک په ذریعه لیږلو کې هیڅ فرق نشته، په دې وارو کې د استبدال او توکیل نه خلاصي نشته. وهوالموفق

## د هنډی حقیقت څه دې؟

**سوال:** چه فرمائد علماء کرام در این مسئله که حقیقت هنډی چیست؟ جزاکم الله خیرا

المستفتی: عبد الحق پشین..... ۱۰ شوال ۱٤۰۸ه

**الجواب:** این معامله جائز است این توکیل به اجرت است(۱) نه بیع است ،نه قرض ست نه سفتجه، نیز بیع ثوب هروي به ثوب مروي جائز است اگر چه نسیئه باشد، کما فی الدرالمختار(۲)

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] اي حقوق العباد اي يصح التوكيل بايفاء جميع الحقوق واستيفائها... والمراد بالايفاء هنا دفع ما عليه وبالاستيفاء القبض.
(ردالمحتار ٤٤٦: ٤قبيل باب الوكالة بالبيع والشراء)

وقال الدكتور وهبة الزحيلي: تصح الوكالة باجر وبغير اجر.
(الفقه الاسلامي وادلته ٤٠٥٨: ٥كتاب الوكالة باجر)

(۱) وفي شرح المجلة: اذا اشترطت الاجرة في الوكالة واوفاها الوكيل يستحقها.
(شرح المجلة ٤٤٥: ٤المادة: ١٤٦٧)

وقال العلامة الدكتور وهبة الزهيلي: تصح الوكالة باجر وبغير اجر.
(الفقه الاسلامي وادلته ٤٠٥٨: ٥الوكالة باجر)

(۲) قال العلامة الحصكفي: (وان عدما حلا) كهروي بمرويين لعدم العلة فبقي علي اصل الاباحة. (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ١٩٩: ٤باب الربا)

وقال العلامة ابن نجيم: (وحلا بعد مهما) اي حل الفضل والنساء عند انعدام القدر والجنس فيجوز بيع ثوب هروي بمرويين نسيئة.
(البحر الرائق ١٢٩: ٦باب الربا)

فلوکان هذا بیعا لکان مثل هذا فافهم. وهوالموفق

## د مبیع د هلاکیدو په صورت کې په وکیل باندې د ضمان حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې دوه سړو په یو سړی دوه څراغه (لالټینونه) راوغوښتل هغه دواړه اخستلو سره بغیر د تعین نه ملګری ته حواله کړل. اتفاقا په لاره کې په هغې کې د یو څراغ (لالټینه) شیشه ماته شوه اوس علماء دین څه فرمائی چې مات شوې لالټین به د چا وی او ضمان به په چا باندې راځی؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد خان ډیروی......۹ نومبر ۱۹۸۳ء

**الجواب:** چونکې وکیل امین دې لهذا په هغه باندې ضمان نشته (۱) او د وکالة مطلقه د وجې نه دا شراء د هر دواړو موکل دپاره واقع شوې ده (۲) پس د عدم تعین د وجې نه به هالک هم مشترک وی او ثابت به هم مشترک وی. وهوالموفق

## د وکالت مروجه پیشه

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو وکیل شپه ورځ محنت کوی او د خپل موکل دپاره په قانون رائج الوقت کې د براءت لاره ګوری او د هغه نه فیس وصولوی اکثر خلق دې ته حرام وائی حال دا چې

---

(۱) وفي الهندية: ومنه انه امين فيما في يده كالمودع فيضمن بما يضمن به المودع ويبرأ به والقول قوله في دفع الضمان عن نفسه.

(فتاوي عالمگيرية ۳:۵۶۷ كتاب الوكالة، الباب الاول في بيان معناها شرعا وركنها وشرطها)

(۲) قال العلامة ابن عابدين: (قوله ان عمت) بان يقول ابتع لي ما رأيت لانه فوض الامر الي رأيه فاي شيي يشتريه يكون ممتثلا.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۴:۴۴۸ باب الوكالة بالبيع والشراء)

يو مريض د ډاکټر نه تشخيص وکړي نو زيات نه زيات پنځه منټه صرف کوی او يو پرچي ليکلو سره د دوايئ نشاندهی کوی که هغه دوائی صحت بخش ثابت شی يا نه مګر فيس وصولوی خلق دې لره حلال ګنی. بنده ته جواب راکړئ بينواتوجروا

المستفتي: نامعلوم ۷ جولائی ۱۹۸۶ء

**الجواب:** کوم وکيل چې د شريعت خلاف قوانينو کې د يوې مقدمې پيروی کوی نو د هغه فيس حرام دې دا د معصيت معاوضه ده. (۱) او کوم وکيل چې د شريعت سره د غير متصادم قوانينو پيروی کوی نو د هغه فيس حلال دې (۲) او د ډاکټر تجاويز هم کله حلال او کله حرام وی. **وهوالموفق**

## د وکيل د موکل نه په مبيع باندې د منافع وصولولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زيد يوه چيلی د عمر دپاره په دوه سوه روپئ باندې واخستله. اوس زيد دا چيلی عمر ته په درې سوه روپئ باندې ورکوی آيا دا جائز دی؟ **بينواتوجروا**

المستفتي: هدايت ......۶ جمادی الاولی ۱۳۹۷هـ

---

۱) قال العلامة المرغيناني: لا يجوز الاستيجار علي الغناء والنوح وكذا سائر الملاهي لانه استيجار علي المعصية والمعصية لا تستحق بالعقد.
(الهداية ۳:۳۰۳ باب الاجارة الفاسدة)

۲) وفي شرح المجلة: اذا اشترطت الاجرة في الوكالة واوفاها الوكيل يستحقها وان لم تشترط ولم يكن الوكيل ممن يخدم بالاجرة يكون متبرعا وليس له المطالبة بالاجرة.
(شرح المجلة ۴۴۵:۴ المادة: ۱۴۶۷)

وقال العلامة الدكتور وهبة الزحيلي: تصح الوكالة باجر وبغير اجر لان النبي ﷺ كان يبعث عماله لقبض الصدقات ويجعل له عمولة.
(الفقه الاسلامي وادلته ۴۰۵۸:۵ الوكالة باجر)

**الجواب:** كه زيد دا خيز د خيل خان دپاره اخستلي وي او د هغې نه پس ئې په عمر باندې خرڅوي نو دا منافع جائز دي كه د زيد د اخستلو او وكالت په حيثيت سره وي نو منافع ناجائز دي (١) وهوالموفق

## د وكيل د خصم د پاره د مدعى د يوې حصې په اقرار كولو باندې د معزول كيدو حكم

**سوال:** څه فرمائى علماء كرام د دې مسئلې په باره كې چې د ځمكې په يو دعوى كې څو سړو يو سړې وكيل مقرر كړو او مدعى به يوه ځمكه ده چې د هغې حدود مفصل بيان شوې دى شل حصې ځمكه ده د هرې حصې بيله بيله كرونده كولې شى دا ټوله مدعى به ده. اوس وكيل صرف يوه حصه ځمكه كې د مدعى عليه دپاره د ملكيت اقرار كړې دې. اوس د بعض مدعى به اقرار كولو سره باقى مدعى باندې به دعوى مسموع وى يا نه؟ يعنى باقى نورلس حصې په دې قول كې (**من اقربعين لزيد ثم ادعى عليه لنفسه.....لا يملك ان يدعيه لا لنفسه ولا لغيره بوكالة اوبوصاية**) لاندې راتلې شى يا نه؟ **بينوا توجروا**

**المستفتى:** رؤف احمد تحصيل مونړه جندول ...٢١ جون ١٩٦٩ء

---

(١) قال العلامة الحصكفي: (ولو وكله بشراء شيي بعينه... لا يشتريه لنفسه) ولا لموكل آخر... (وان) بشراء شيي (بغير عينه فالشراء للوكيل الا اذا نواه للموكل) وقت الشراء (اوشراه بماله).

وقال العلامة ابن عابدين: (قوله فالشراء للوكيل المسئلة علي وجوه كما في البحر وحاصلها انه ان اضاف العقد الي مال احدهما كان المشتري له وان اضافه الي مال مطلق فان نواه للآمر فهو له وان نواه لنفسه فهو له.

(ردالمحتار مع الدر المختار ٤٥٠:٤ باب الوكالة بالبيع والشراء)

(وهكذا في الخانية علي هامش الهندية ١٩:٣ كتاب الوكالة، فصل في التوكيل بالبيع)

**الجواب**:(الف) این اقرار معلوم نیست که قبل ازتوکیل ست یابعد از توکیل،
(ب) نیز این اقرار به استیفاء حق وابراء نیست ومبطل این ست،
وفی العنایة اذا اقر الوکیل بالخصومة علی موکله سواء کان موکله المدعی فاقر باستیفاء الحق اوالمدعی علیه فاقر بثبوته علیه الخ. درین صورت فقهاء کرام حکم به جواز وانعزال کرده اند(۱) لاکن در صورت مذکوره این نوع موجود نیست لهذا حکم به انعزال درست نیست. فقط

## په حواله او ګاڼه کې څه فرق دې؟

**سوال**: څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې حواله او ګاڼه کې څه فرق دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد مرزا واړی ضلع دیر ... ۲۷ مارچ ۱۹۸۵ء

**الجواب**: په ګاڼه او حواله کې د ځمکې او آسمان فرق دې. (۲) وهوالموفق

---

۱ ﴾ في العناية: اذا اقر الوكيل بالخصومة علي موكله سواء كان موكله المدعي فاقر باستيفاء الحق او المدعي عليه فاقر بثبوته عليه فانكان ذلک عند القاضي جاز والا فلا عند ابي حنيفة ومحمد رحمهما الله تعالي الا انه اذا اقر عند غير القاضي خرج من الوكالة فلا يدفع اليه المال ولو ادعي بعد ذلک الوكالة واقام علي ذلک بينة لم تسمع بينته لانه زعم انه مبطل في دعواه وقال ابويوسف رحمه الله تعالي جاز اقرازه في الوجهين جميعا وقال زفر والشافعي رحمهما الله تعالي وهو قول ابي يوسف اولا لا يجوز في الوجهين جميعا.
(عناية علي هامش فتح القدير ۷:۱۰۶ كتاب الوكالة، باب الوكالة بالخصومة والقبض)

۲ ﴾ الرهن: هو حبس الشيي بحق يمكن اخذه منه. (شرح الوقاية ۴:۷۲ كتاب الرهن) والحوالة: هي شرعا نقل الدين من ذمة المحيل الي ذمة المحتال عليه.
(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۴:۳۲۱ كتاب الحوالة)

## په غیر اختیاري کارونو کې د چا ذمه داري اخستل

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې شیر افضل ولد محمد افضل ساکن مانکئ د سعودي عرب په یو کمپنئ کې کاریګر وو دغه په نګرانئ کې تقریبا پنځه دیرش کسانو کارکولو ،اوس په دې مذکوره سړو کې یو سړی دا دعوی کوي چې شیر افضل زمونږ ذمه داري اخستې وه چې تاسو د دې ځای نه مه ځئ ځکه چې زما بدنامي کیږي او ستاسو پیسې به زه درکوم یعنی زما په ذمه دي بیا مونږ ناڅاپه اونیولې شو او مونږ ته پیسې هم ملاؤ نه شوې، شیر افضل وائي کله چې دا خلق په دوه درې ورځو کې نیولې کیدونکي وو نو ما هغوی ته وویل چې وتختئ ځکه چې تاسو نیولې کیدونکي یئ او شیرافضل د رقم د ذمه اخستلو نه هم منکر دې ګواهان موجود نه دي، اوس به د دې مسئلې حل څه وي؟ بینواتوجروا

المستفتي: محمد خان مانکئ تحصیل صوابي مردان ۱۲ اګست ۱۹۸۹ء

**الجواب:** ومنه الصدق والصواب: دا عوامي ذمه دارئ دی دا څه حوالې یا کفالې نه دی په دې کې په دې سړي (شیر افضل) باندې هیڅ ضمان او تاوان نشته. وهوالموفق

## د سامان د هلاکت ضمان او د هغې په عوض کښې د حصو د استحقاق حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د تجارت سامان د جهاز یا د ریل په ذریعه راځي مات رامات شي او ضائع کیږي یا غلا یا ګډوډ شي دغه شان سوداګر ته ډیر لوئې نقصان رسیږي په بعض حالاتو کې که جهاز ډوب شي نو سوداګر دیوالیه کیدې هم شي په دې حالاتو کې یو سړې دا ضمانت اخلي چې دټول رقم ۱/۱۰۰ حصه ماته راکړه نو په مال رسیدو باندې چې څه نقصان هم وشي هغه به زه درکړم او دا وعده پوره کوي هم یعنی کوم نقصان چې کیږي د هغې تاوان ادا کوي سوداګر دا عمل کوي

او دا ضروری دي آیا دا جائز دي یا ناجائز؟ بینوا توجروا

المستفتی: نول اینډ مشینری کمپنی پوسټ بکس ۷۵ لاهور ۱۶ کتوبر ۱۹۸۹ء

**الجواب:** دا ضمان او د هغې په عوض کښې د حصې استحقاق ناجائز دي (۱) وهوالموفق

## د وکیل نه د مال هلاکیدو په صورت کښې ضمان اختلا

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چې زید عمرو د خپل کار دپاره کوفې ته ولیږلو. په لاره کښې عمرو ته نقصان ورسیدو. نو آیا زید د عمرو نه تاوان اخستلې شي یا نه؟ بینوا توجروا

**الجواب:** المال الذی اعطاه زید لعمرو یکون حکمه حکم الودیعة فلا ضمان علیه عند الهلاك (۲) نعم! یضمن عند الاستهلاك (۳) واما المال المملوك لعمرو فلا ضمان فی هلاکه علی زید والمسئلة واضحة مذکورة فی کتاب الودیعة فلیراجع. وهوالموفق

---

(۱) لکون هذه المعاملة من باب القمار فافهم. (سیف)

وقال الله تعالي: يٰايها الذين امنوا انما الخمر والميسر والانصاب والازلام رجس من عمل الشيطان فاجتنبوه لعلكم تفلحون. (سورة المائدة: ۹۰)

وقال العلامة الحصكفي: ومن السحت ما يأخذه كاهن ومقامر وواشمة. (الدر المختار ۵:۳۰۱ کتاب الحظر والاباحة، فروع)

(۲) قال العلامة المرغيناني رحمه الله تعالي" الوديعة امانة في يد المودَع إذا هلكت لم يضمنها لقوله عليه الصلوة والسلام ليس علي المستعير غير المغل ضمان ولا علي المستودَع غير المغلّ ضمان". (الهداية: ۳:۲۷۳ کتاب الوديعة)

(۳) وقال العلامة العثماني رحمه الله تعالي" أن الوديعة أمانة لا ضمان فيها إلاّ أن يتعدّي، قال الموفق: فأما إن تعدي المستودع فيها أو فرط في حفظها فتلفت ضمن بغير خلاف نعلمه لأنه متلف مال غيره فضمنه". (اعلاء السنن ۱۶:۶۲ کتاب الوديعة)

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاویٰ فریدیه

دوم جلد

# کتاب القضاء والدعویٰ

........

بسم اللہ الرحمٰن الرّحیم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاویٰ فریدیه

# کتاب القضاء والدعویٰ

قال الله تبارك وتعالىٰ:

اِنَّآ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَآ اَرٰىكَ اللّٰهُ ط

(سورة النسآء)

.........

# کتاب القضاء والدعوی

## د قاضی او حکَم تعریف

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په ملاکنډ ایجنسۍ کې اکثر خلق د مقدماتو فیصلې په عدالتونو کې د ملک د رواج یعنی د پلار نیکه د مقرر کړې قانون مطابق فیصله کوی، په دې وجه په عدالت کې د حکومت معین او مقرر تنخواه دار قاضی د قضاء دپاره نشته کله چې بعض خلق خپله فیصله په قانون شرعی باندې حل کوی نو فریقین په خپله مرضۍ باندې یو عالم یا قاضی د قوم یا امام مسجد حکَم مقرر کولو• سره فیصله کوی، اوس قاضی محمد فیضان تقریبا د شپیتو کالو نه په یو مسجد کې امام دې کله چې فریقین د شریعت مطابق فیصله کول غواړی نو د شریعت مطابق فیصلې هم کوی او د عدالت په جامع مسجد کې دجمعې او عیدین مونځونه تر اوسه پورې اکثر وختونه قاضی محمد فیضان ورکړې دی نو د شریعت د قانون مطابق هغوی ته قاضی ویلې شی یا نه او د هغوی فیصله کله چې د شریعت د قانون مطابق برابر او صحیح وی نو د شریعت د وجې نه فسخ کیدې شی یا نه؟ **بینوابالکتاب توجروایوم الحساب**

**المستفتی:** عبدالرزاق پیش امام مسجد سید اباد ملاکنډ ایجنسی ۲۸ مئی ۱۹۶۹ء

**الجواب:** که قاضی محمد فیضان صاحب حکومت د مقدماتو د فیصلو دپاره مقرر کړې وی نو هغه قاضی دې کنه نو هغه حکَم دې او قاضی نه دې (قال فی الهندیة ۳: ۳۷۶) وفی الشرع قول ملزم یصدر عن ولایة عامة کذا فی خزانة المفتیین(۱) وفی الدرالمختار: هو شرعاً فصل الخصومات وقطع

۱) (فتاویٰ هندیة ۳: ۳۰۶ کتاب ادب القاضی، الباب الاول)

المنازعات، قال العلامة الشامی ولابد ان یزاد فیه علی وجه خاص (۱)
وفی الدرالمختار: والتحکیم عرفا تولیة الخصمین حاکماً یحکم بینهما (۲). فقط.
وهوالموفق

**په موجوده مسلمانانو بادشاهانو باندې د قضاة اطلاق صحیح دې یا نه؟**

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چې په موجوده مسلمانانو بادشاهانو باندې د قضاة اطلاق جائز دې یا نه؟ **بینوا توجروا**

المستفتی: شیر علی مدرسه دار الارشاد چمن پهاټک کوئته .... ١٤ ربیع الاول

**الجواب:** په موجوده مسلمان بادشاه باندې د قضاة اطلاق صحیح دې.

لان القاضی مأخوذ من القضاء، والقضاء قول ملزم یصدر عن ولایة عامة کذافی خزانة المفتیین (هندیة ۳: ۳۷۶) (۳).

او د قضاء د پاره عدالت شرط نه دې فاسق هم قاضی کیدې شی. کما فی الهدایة (٤) وشرح الهدایة وسائر الفتاوی (٥) وهوالموفق

**په حقه د میراث دعوی، قسم خوړلو او قسم ورکولو کښې هیڅ ګناه نشته**

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چې زما والد صاحب

---

۱ ) (الدرالمختار ۳۳۰: ٤ کتاب القضاء)

۲ ) (الدرالمختار ٤: ۳۸٦ باب التحکیم)

۳ ) (فتاوي هندية ۳:۳۰٦ کتاب ادب القاضي، الباب الاول في تفسير معني الادب والقضاء)

٤ ) قال العلامة المرغيناني: والفاسق اهل للقضاء حتي لو قلد يصح الا انه لاينبغي ان يقلد. (هداية ۳:۱۳۲ کتاب ادب القاضي)

٥ ) قال العلامة طاهربن عبد الرشيد: واختلفت الروايات في تقليد الفاسق بالقضاء والاصح انه يصح التقليد. (خلاصة الفتاوي ۳: ٤ کتاب القضاء)

تقریبا پنځلس شپاړس کاله مخکې وفات شوې دې، او تره مې هم وفات شوې دې، زمونږ نیکه په سخاکوټ ملاکنډ ایجنسی کې ځلویښت جریب ځمکه اخستلې وه، د نیکه د وفات په وخت زما پلار او تره دواړه کم عمر ماشومان وو خو د ځمکې وارثان منلې شو خو زمونږ نورو رشته دارو موقع غنیمت اوګڼله او په ځمکه باندې ئې په زبردستئ قبضه وکړه او زما د تره او پلار په قتل پسې ولګیدل هغه خلقو د څو کالو نه زمونږ ځمکه مفته خوړله. بیامې پلار د انګریزی حکومت په وساطت سره خپله ځمکه واپس واخستله. نو هغه خلقو دشمنی غوره کړه نو والد صاحب د دشمنئ د وجې نه هغه ځمکه دوباره پرېښودله. آخر دا چې والد صاحب خپله حصه په هغوی باندې په ۷۵ اویا روپئ فی جریب په حساب سره خرڅه کړه. او تره مې د خرڅولو نه انکار وکړو، او زما د تره ځامن د خپل پلار د حصې د اخستلو دعوی کوی نو آیا دا جائز ده؟ حال دا چې زمونږ تره دستخط نه وو کړې که مونږ د ټول ملکیت دعوی کړې وې نو هم دعوی کیدلې شوه. مهربانی وکړئ چې که مونږ د تره د حصې یعنی د شل جریب دعوی وکړو او هغوی نه د ځمکې نیم قیمت ورکړو او مونږ د دې خبرې قسم وکړو چې تره خو مو دا ځمکه نه وه خرڅه کړې نو څه نقصان خو به نه وی؟

**نوټ**: کومو خلقو چې زمونږ نه ځمکه اخستلې وه اوس هغوی په نورو خلقو باندې خرڅه کړې ده نو آیا اوس به مونږ په هغه نورو خلقو باندې دعوی کوو د قانون الهی نه مونږ خبر کړئ بینواتوجروا

**المستفتی**: ماسټر محمد خان سکنه نصیر کلے ډاکخانه هوتی مردان ... ۲ فروری ۱۹۶۹ء

**الجواب**: که تاسو ته یقینی طور سره معلومه وی چې تره مو خپله حصه نه وه خرڅه کړې نو تاسو ته (یعنی ستاسو د تره ځامنو ته) د میراث په دعوی کولو او قسم خوړلو کې هیڅ ګناه نشته (۱) وهوالموفق

(۱) قال العلامة الدکتور احمد الزحیلي: الاصل في مشروعیة ...[بقیه بر صفحه آئنده...

## په بیع او مالکانه تصرفاتو باندې د خبریدلو باوجود په دعوی کې تاخیر کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید یوه ځمکه د ګواهانو په مخکې واخستله تقریبا د دوه کالو نه په هغې قابض او متصرف هم وو، د ځمکې ځلور وارو طرفونو ته ئې دیوالونه هم اووهل او بوټی ئې هم وکرل اوس یو سړې سره د نورو کسانو، کوم چې ددې کلی اوسیدونکې هم دې، په زید باندې دعوی کوي چې دا زمونږ ملک دې د سابقه بائع نه دې حال دا چې دعوی کونکو د مشتری تصرف ته هم کتل، د دوه کالو نه د دعوی نه ساکت وو، اوس دعوی کوی آیا د سکوت باوجود دا دعوی قابل د اوریدو ده؟ مشتری او بائع د دعوی کونکو د خپلوانو نه نۀ دې. **بینواتوجروا**

المستفتی: احسان الله علاقه دیر ...... ۱۲ محرم الحرام ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** په مالکانه تصرفاتو باندې د خبریدو باوجود د تاخیر د وجې نه دعوی ناقابل سماعت ده،

كما في تنقيح الحامدية ۲:۳: بخلاف الاجنبي فان سكوته ولو جارا لا يكون رضا الا اذا سكت الجار وقت البيع والتسليم وتصرف المشتري فيه زرعا وبناء فحينئذٍ

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] الدعوي: الاصل في الدعوي قول النبي ﷺ لو يعطي الناس بدعواهم لادعي رجل اموال قوم ودماء هم لكن البينة علي المدعي واليمين علي من انكر. (الفقه الاسلامي وادلته ۸:۵۹۸۳ الفصل الثاني، الدعوي والبينات)

وقال ايضا: واليمين مشروعة بايات كثيرة في القرآن، منها قوله تعاليٰ: لا يؤاخذكم الله باللغو في ايمانكم ولكن يؤاخذكم بما عقد تم الايمان، وقد امر الله تعاليٰ نبيه ان يقسم علي الحق في ثلاثة مواضع من القرآن والله تعاليٰ لا يشرع محرما، ومشروعة باحاديث كثيرة ايضا، منها قوله عليه الصلاة والسلام لو يعطي الناس بدعواهم الخ.
(الفقه الاسلامي وادلته ۸:۶۰۶۴ المبحث الثاني: اليمين)

لاتسمع الدعوی علی ما علیه الفتوی قطعاً للاطماع الفاسدة (۱). والله اعلم

**په کاغذاتو کې د غلطئ د وجې نه په ملکیت باندې هیڅ اثر نه پریوځی**

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې تقریبا د پنځه شپږو پشتو نه زمونږ په یوه ځمکه کې خاندانی تقسیم راروان دې، سائل د خپلې حصې امدنی بغیر د چا د شرکت نه تر ننه پورې ځمکه کې حاصلوی، په ۱۹۶۵ء کې حکومت په دې کې سړک ویستلو، د دې ځمکې څه ونې پرې کړې شو او د کاغذاتو د غلطې د وجې نه مالکانه حقوق نورو خلقو حاصل کړل، اوس د محکمه مال د دې غلطئ د وجې نه اصلی خاندانی مالک اراضی د خپل حق د ملکیت نه محروم کیدې شی یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** حاجی سکندر خان مانسهره.... ۱۲ جون ۱۹۷۹ء

**الجواب:** هرکله چې په دې ځمکه باندې ستاسو ملکیت ومنل شوې دې نو د کاغذاتو د غلطئ د وجې نه ستاسو په ملکیت باندې هیڅ اثر نه پریوځی تاسو باقاعده دخپلې ځمکې مالکان یئ او د بل سړی دپاره دا اقدام کول حرام دې. (۲) **وهوالموفق**

**د قاضی د شریعت او فقه حنفی خلاف فیصله کول**

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې که قاضی د شریعت محمدی ﷺ او فقه حنفی خلاف فیصله وکړي سهوا یا عمدا نو هغه به نافذ العمل وی یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** صوبیدار نور محمد. بکرا منډی راولپنډی

---

۱) (فتاوی تنقیح الحامدیة ۲:۳ کتاب الدعوی)

۲) وفي المشکواة: عن سعید بن زید قال قال رسول الله ﷺ من اخذ شبرا من الارض ظلما فانه یطوقه یوم القیمة من سبع ارضین متفق علیه.
(مشکوٰة المصابیح ۲۵۴ باب الغصب)

**الجواب:** په شرط د ثبوت به دا فیصله رد کولې شی او د عمد په صورت کې به تعزیر هم ورکولې شی

کما فی ردالمحتار ٣٣٥:۴: والوجه فی هذا الزمان بقولهما لان التارک لمذهبه عمدا لا یفعله الا لهوی باطل لا لقصد جمیل واما الناسی فلان المقلد ما قلده الا لیحکم بمذهبه لا بمذهب غیره هذا کله فی القاضی المجتهد فاما المقلد فانما ولاه لیحکم بمذهب ابی حنیفة فلا یملک المخالفة فیکون معزولا بالنسبة الی ذلک الحکم(١).

**نوټ:** د ضرورت شرعیه د وجې نه په غیرمذهب باندې فیصله کول عین حنفیت دې.(٢) وهوالموفق

## د قاضی د خپل علم مطابق فیصله کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې آیا قاضی د خپل علم مطابق فیصله کولې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: رحمٰن الدین معلم دینیات گورنمنټ مډل سکول شرینګل

---

١) (ردالمحتار ٣٧٢:۴ مطلب حکم الحنفي بمذهب ابي یوسف او محمد حکم بمذهبه)

وقال العلامة ابن عابدین: (قوله ارتحل الي مذهب الشافعي یعزر) اي اذا کان ارتحاله لا لغرض محمود شرعا.

(ردالمحتار ٢٠٨:٣ مطلب فیما اذا ارتحل الي غیر مذهبه، باب التعزیر)

٢) قال العلامة عبد العزیز الفرهاري: اذا اشتدت الحاجة فیجوز الرجوع الي قاضي مذهب آخر لیفتي بحاجته وهذه الفوائد مما تحفظ.

(النبراس ١١٠ هل یجوز الرجوع من التقلید الخ)

وقال العلامة ابن عابدین: وقد کان بعض اصحابنا یفتون بقول مالک في هذه الحالة للضرورة.

(ردالمحتار ٣٦٢:٣ کتاب المفقود، مطلب الافتاء بمذهب مالک)

**الجواب:** اصل مذهب اگر چې د جواز دې خو فتوی په عدم جواز باندې ده. کما فی رد المحتار ۳۴۵/۴، والفتویٰ علیٰ عدمه فی زماننا کما نقله فی الاشباه عن جامع الفصولین.(۱) الخ. واضحه دې وی چې قاضی خو اصولی فیصله کوی نو دهغه دمجرم کیدو هیڅ وجه نشته او که هغه افغانی اود پښتو فیصله کول غواړی نو بل حاکم یا محکم ته دې په طورد گواه پیش شی. وهوالموفق

## د معلومې ځمکې په دعوی کې حدود نه

## ذکر کول او په هغې باندې گواهان طلب کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې د ځمکې په دعوی کې حدود ذکر نه کړی او قاضی د مدعی نه په دې باندې گواهان طلب کولو سره حکم صادر کړی، آیا دا حکم صحیح دې یا نه؟ او په غلطه دعوی باندې د مدعی نه گواهان طلب کول صحیح دی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نور محمد علاقه جندول ضلع دیر ..... ۷ فروری ۱۹۷۶ء

**الجواب:** که دا مدعٰی بِهٖ معلومه ځمکه وی نو د حدود د عدم ذکر به مضر نه وی کنه نو مضر به وی. (شامی) (۲)

---

۱) (ردالمحتار ۴:۳۸۳ مطلب في حكم القاضي بعلمه، كتاب القضاء)

وقال العلامة ابن نجيم : ورجح في جامع الفصولين قول محمد، قال: وينبغي ان يفتي به لما علم من احوال قضاة زماننا ثم نقل ان محمدا قال لا يقضي القاضي بعلمه ثم نقل عن عيون المذاهب ان بقوله يفتي.

(البحر الرائق ۶: ۲۵۸ كتاب القضاء)

۲) قال العلامةالحصكفي: ويشترط التحديد في دعوي العقار كما يشترط في الشهادة عليه... الا اذا عرف الشهود الدار بعينها فلا يحتاج الي ذكر حدودها.

(الدرالمختار ۴:۴۶۹ كتاب الدعوي)

په اول تقدیر سره به شهادت صحیح وی او په دویم تقدیر سره به غلط وی. (شامی)(۱) وهوالموفق

## د میراث د دعوې دپاره د سماع موده

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د میراث د دعوې دپاره څه زمانه مقرر ده یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: نامعلوم

**الجواب:** په قضاء کې تحدید دې خو په تحکیم کې هیڅ حد نشته. صرح به العلامة الشامی ۴۷۶/۴. فی رد المحتار (۲) **وهوالموفق**

## د یو سړی د قوم د طرف نه بغیر د توکیل نه د مشترکه ځمکې دعوی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو قوم د بل قوم نه په یو قبضه کړې شوې ځمکه باندې دوه درې کرته دعوی وکړه، خو آخر د هغه ملک صاحب دعوی د بعض امورو د وجې نه باطل او ناقابل سماع

---

۱ ) قال العلامة الحصكفي: ومعلومية المال... المدعي اذ لا يقضي بمجهول... الي ان قال بعد ورقة واحدة (ويسأل القاضي المدعي عليه) عن الدعوىٰ... (بعد صحتها والا) تصدر صحيحة (لا) يسأل لعدم وجوب جوابه (فان اقر) فيها (او انكر فبرهن المدعي قضي عليه).

(الدرالمختار ۴۷۰،۴۶۷:۴ كتاب الدعوي)

وفي الهندية: واما انواعها فثنتان دعوىٰ صحيحة ودعوىٰ فاسدة: فالصحيحة ما تتعلق بها احكامها وهي احضار الخصم والمطالبة بالجواب ووجوب الجواب واليمين اذاانكر والاثبات بالبينة ... والفاسدة مالا تتعلق بها الاحكام.

(فتاوىٰ عالمگيرية ۳:۴ كتاب الدعوىٰ، الباب الاول في تفسيرها... وانواعها)

۲ ) قال العلامة ابن عابدين: الثاني ان النهي حيث كان للقاضي لاينا في سماعها من المحكم. (ردالمحتار ۳۸۱:۴ مطلب هل يبقي النهي بعد موت السلطان)

شوه، او هغه سره د قوم د طرف نه څه ليکلي وکالت هم موجود نه وو، نو د هغه قوم د ملک د دعوی د مسموع نه کيدو په وجه باندې به د باقی قوم دعوی مسموع وی يا نه؟ بينواتوجروا

المستفتي: رؤف احمد صاحب تحصيل مونړه علاقه چندول ۲۱ جون ۱۹۶۹ء

**الجواب:** په شرط د صدق ددې ملک دعوی صحيح نه ده، ځکه چې د هغه دپاره د قوم د طرف نه توکيل ثابت نه دې،

لانه لا حق له في الکل والدعوی قول مقبول عند القاضي يقصد به طلب حق الخ، هکذا في الدر المختار(۱) وهو الموفق

## د خرڅې کړې شوې مستاجره ځمکې فيصله

## الاستفتاء........ ۳۱ ستمبر ۱۹۸۷ء

### فيصله نامه بابت مقدمه مسلى مير زمان وعنايت الله وغيره

د مدعی نوم مسمی مير زمان خان، مدعی عليه نوم مسمی عنايت الله و مسمی انوار الحق مدعی په باره د محدود ځمکې کې چې مثال يې لاندې ذکر دې.

**کيفيت د دعوې** : دا چې کومه ځمکه مير زمان خان سره په طور د اجاره زير تصرف ده، د ځمکې مالک مسمی عنايت الله او مسمی انوار الحق باندې خرڅه کړه او د دې نه پس د دې ځمکې مالک د دې ځمکې نيمه حصه په مسمی مير زمان خان باندې خرڅه کړه، او په باقی نيمه باندې مير زمان د شفعې دعوی وکړه.

(**فيصله**) : که دا کيفيت باقاعده ثابت وی، نو ځمکه د مير زمان خان ملکيت شو، نيمه په طور د خرڅ او نيمه په طور د شفعې او اول خرڅيدل کوم چې په

---

(۱) (الدر المختار علي هامش ردالمحتار ۴: ۴۶۶ کتاب الدعوی)

مسمی عنایت الله او مسمی انوار الحق باندې شوې وو هغه به کالعدم کولې شي لما في الهندية ۳:۱۵۳: اذا باع الآجر المستأجر من رجل بغير اذن المستأجر ثم باعه من المستأجر جاز البيع من المستأجر وهو نقض البيع الاول (۱). وهوالموفق

## د نیکهٔ د وفات نه پس د لمسی په دې بیع باندې د نه راضی کیدو دعوی

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی په خپل ژوند کې ځمکه خرڅه کړه، د شلو کالو نه پس د هغه لمسی دا دعوی کوي چې زمانیکهٔ چې کومه ځمکه خرڅه کړې ده، هغه زما د مرضئ موافق نه ده، لهذا زه په دې بیع باندې راضی نه یم، آیا د هغه دا دعوی شرعا صحیح ده یا نه؟

المستفتی: فضل قادر بونیر ...... ۲۴ ذی القعده ۱۳۹۷هـ

**الجواب:** په مذکوره صورت کې نیکهٔ کله چې خپله ځمکه خرڅه کړه نو هغه د دې مالک وو، ځوک چې په خپل ملکیت کې د ټولو تصرفاتو مالک وو، د نیکهٔ د وفات نه پس د لمسی دعوی غلطه او بې بنیاد ده. کما في الشامي في جلد خامس في مسائل شتیٰ (۲) وهوالموفق

## د دعوی د عدم سماع په موده کې مفتی به قول

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د دعوی د ترک کولو د وجې نه د عدم سماع د مودې په مقدار کې چې د فقهاء کرامو کوم مختلف اقوال دی مثلا درې کاله، پنځلس کاله، دیرش کاله، درې دیرش

---

(۱) (فتاوي هندية ۳:۱۰۰ الفصل الثالث في بيع المرهون والمستأجر الخ)

(۲) قال العلامة الحصكفي: باع عقارا او حيوانا او ثوبا وابنه او امرأته او غيرهما من اقاربه حاضر يعلم به ثم ادعي الابن مثلا انه ملكه لا تسمع دعواه.
(الدرالمختار ۵:۵۲۴ مسائل شتي)

کاله، په دې کې مفتی به قول کوم یو دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: ماش گل کوهستانی ... ۱۷ مارچ ۱۹۸۵ء

**الجواب:** په دعوی کې فیصله وروسته کول د سماعت نه مانع نه دی، او په قضاء کې د مودې تعین د حاکم اعلی وغیره په اختیار کې دی. (شامی) (۱)

وهوالموفق

## په سوال باندې د ورکړې شوې ځمکې په حاصلاتو باندې د مُعیر دعوی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یوې زنانه خپل ورور ته ځمکه صرف د منافع حاصلولو دپاره ورکړه، هغه په دا ځمکه کرله او د هغې نه به ئې منافع حاصلوله. آخر هغه د هغه ځمکې په حاصلاتو باندې نوره ځمکه واخستله، اوس دا زنانه دعوی کوی چې په دې ځمکه کې زما هم حصه ده. ځکه چې په مشترکه حاصلاتو سره اخستلې شوې ده اوس د دې زنانه په دې ځمکه باندې دعوی کول صحیح دی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم

**الجواب:** د دې زنانه دعوی غیر صحیح ده ځکه چې دا ځمکه په حاصلاتو سره اخستلې شوې ده، او حاصلات ټول په ټول د ورور وو. (۲) وهوالموفق

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: قد استفيد من كلام الشارح ان عدم سماع الدعوي بعد هذه المدة انما هو للنهي عنه من السلطان فيكون القاضي معزولا عن سماعها لما علمت من ان القضاء يتخصص فلذا قال الا بامر اي فاذا امر بسماعها بعد هذه المدة تسمع.

وقال العلامة ابن عابدين: الثاني ان النهي حيث كان للقاضي لاينافي سماعها من المحكم. (ردالمحتار ۴:۳۸۱ مطلب هل يبقي النهي بعد موت السلطان)

۲) وفي فتاوي هندية: واما حكمها فهو ملك المنفعة للمستعير بغير عوض. (فتاوي عالمگيرية ۴:۳۶۳ كتاب العارية، الباب الاول في تفسيرها شرعا وركنها الخ)

وفي شرح المجلة: المستعير يملك منفعة العارية ... [بقيه بر صفحه آئنده...

## د هبې د مدعی او د منکر ترمینځه فیصله

**فریق اول** : زرو جان کنډه وارث خان (مدعیه)

**فریق ثانی** : دلیل خان (مدعیٰ علیه)

**دعوی** : په باره د کور د حصې کښې، مدعیه ددې حصې د حمید خان د طرف نه د هبه کیدو دعوی کوی او دلیل خان د دې نه انکاری دې.

**فیصله** : چونکې د مدعیه ګواهان (د اعتراف مطابق نه وو) نو مدعیه د دې مدعی علیه په قسم باندې راضی شوه او مدعیه مدعی علیه (دلیل خان) ته قسم ورکړو، پس د دې په وجه باندې د مدعیه خلاف فیصله وکړې شوه. (۱)

وهوالموفق

## د چرګې سره د زیاتی څیزونو دعوی کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید په اووهٔ روپۍ باندې یوه چرګه واخستله. اته میاشتې پس بکر په هغې باندې دعوی

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] بدون بدل فلیس للمعیر ان یطلب من المستعیر اجرتها بعد الاستعمال.

(شرح المجلة ۳:۳۱۱، المادة: ۸۱۲ الفصل الثاني في احكام العارية)

(۱) قال العلامة ابن نجيم: (قوله والا حلف بطلبه) اي وان لم يكن للمدعي بينة حلف القاضي المدعي عليه بطلب المدعي لقوله عليه الصلوٰة والسلام للمدعي ألك بينة فقال لا فقال لک يمينه.

(البحر الرائق ۷:۲۰۳ كتاب الدعوي)

وفي شرح المجلة: احد اسباب الحكم اليمين او النكول عنه ايضا وهو انه اذا اظهر المدعي العجز عن اثبات دعواه يحلف المدعي عليه بطلبه.

(شرح المجلة ۵:۳۹۴ المادة: ۱۷۴۲)

وکړه چې دا چرګه زما ده، حلفا هم وائی چې دا چرګه زما ده، زید وائی چې دا چرګه ما د یوې نامعلومې بوډۍ زنانه نه اخستلې وه، کومه چې زما پیژندګلو نه وه او نه ئې اوس پیژنم زید ظاهری لحاظ سره یو صالح سړې دې چې د مونځ او روژې پابند دې، یو منصف سړی نیمې پیسې ورکولو سره د چرګې په وړلو باندې فیصله وکړه خو په فیصله باندې بکر راضی نه شو، سره د دې چې هغه دا منی هم چې چرګه زید نه ده غلا کړې، او د لاندې ذکر شوې امور تصفیه مطلوب ده:

۱: په ذکر شوې موده کې چې دې چرګې کومې هګۍ اچولې دی هغه د زید دپاره حلال وې که حرام؟

۲: په پاللو باندې چې کوم اجرت خرچ شو د هغې معاوضه د بکر په ذمه لازم ده یا نه؟ که چرګه بکر یوسی یا قیمت مذکوره ادا کړی، فیصله د شریعت په رڼا کې سره د دلیل نه ولیکئ چې د دواړو ډلو دپاره د تسکین قلب باعث وی. بینواتوجروا

**المستفتی: محمد اکبر ۲۳ فروری ۱۹۷۵ء**

**الجواب:** په صورت مسئوله کې دا مدعی که صرف د چرګې دعوی کوی نو په هغه باندې ضروری ده چې دوه ګواهان پیش کړی او که شهادت میسر نه وی، نو مدعی علیه ته به قسم ورکوی، **لحدیث ﴿ البینة علی المدعی والیمین علی من انکر ﴾** (۱) پس که مدعٰی علیه قسم اوخوړلو نو هغه اوګټله او که انکار ئې وکړو نو مدعی اوګټله (۲) او چرګه به هغه ته حواله

---

۱ ﴾ (مشکوٰة المصابیح ۳۲۷ باب الاقضیة والشهادات)

۲ ﴾ وفي شرح المجلة: احد اسباب الحکم الیمین او النکول عنه ایضا وهو انه اذا اظهر المدعي العجزعن اثبات دعواه یحلف المدعي علیه بطلبه...لان النبي ﷺ قال للمدعي ألک بینة فقال لا فقال لک یمینه سئل ورتب الیمین...[بقیه بر صفحه آئنده

کولې شی، او د هګو یا د هغې د قیمت مستحق به نه وی. که مدعی د چرګې او هګو دواړو دعوی وکړه نو د ګټلو په صورت کې به هغه ته چرګه او هګئ یا د هغې قیمت ورکولې شی.

کما فی الدرالمختار: وهذا اذا لم یدعه (الولد) المقرله فلو ادعاه یتبعها وکذا سائر الزوائد، نعم لاضمان بهلاکها، هامش ردالمحتار ۴: ۱۹۶ (۱). وهوالموفق

## عادة په ممتنع څیزونو باندې دعوی ناقابل سماعت ده

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د یو سړی په ځمکه کښې ونې ولاړې دی، بل دعوی کړې ده چې ستاسو په ځمکه کې ونې زمونږدی، ځکه چې دا زما پلار لګولې دی، دمدعی پلار تقریبا څوارلس کاله مخکې وفات شوې دې، په دې څوارلس کالو کې هغه دعوی نه وه کړې او نه ورته د ځمکې مالک دا ځمکه چېرته په اجاره ورکړې وه هغه ته او د ځمکې مالک ته هم علم نشته چې ونې دهغه دی، تاسو راته جواب راکړئ بینواتوجروا

المستفتی: (شیخ الحدیث) مولانا عبدالحلیم دیروی

مدرس دار العلوم حقانیه اکوړه خټک. ۱۵ دسمبر ۱۹۸۶ء

**الجواب:** د دې مدعی دعوی ناقابل سماعت ده. لکه چې د هغه په عرب یا ایران کې په یو باغ باندې دعوی کول ناقابل سماعت دی. لانه من الممتنعات العادیة فلیراجع الی شرح المجلة ۵: ۹۲ المادة ۱۶۲۹ (۲) وهوالموفق

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] علي فقدان البینة. (شرح المجلة ۵: ۳۹۴ المادة: ۱۷۴۳)

(۱) (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۴: ۲۱۸ باب الاستحقاق)

(۲) وفي شرح المجلة: یشترط ان یکون المدعي به محتمل الثبوت بناء علیه لو ادعي ما وجوده محال عقلاً او عادة لا یصح الادعاء.

(شرح المجلة ۵: ۵۳ المادة: ۱۶۶۹ کتاب الدعوي)

## د هائی کورټ نه د منلې شوې حق ملکیت او د شراء قطعی د مدعیانو ترمینځه شرعی فیصله

### شرعی فیصله

**مدعی**: محمد یوسف ولد عبدالغفار **مدعی علیه**: شیر افضل ولد شرنګ

**بیان مدعی**: د مدعی د زبانی لیکلو بیان خلاصه دا ده چې زما پلار عبدالغفار دا ځمکه متنازع فیه د مسمی شرنګ نه په بیع قطعی سره اخستلې ده او دا ځمکه زمونږ د قبضې او تصرف لاندې ده، اوس مونږ دا په اجاره او رهن باندې ورکړې ده

**بیان مدعی علیه**: دمدعی علیه دزبانی لیکلوبیان خلاصه دا ده چې د ملکیت حقوق د هائی کورټ پورې زمونږ ثابت شوې دی او قبضه هم مونږ سره ده

**د فیصلې شرعی طریق**: مونږ اولا د طرفین ترمینځه د مصالحت کوشش وکړو خو کامیاب نه شو، نو اصولا طریق د فیصلې ولیکلې شو هغه دا چې که هائی کورټ د مدعی علیه ملکیت منلې وی نو د قبضې حق به هم مدعی علیه ته ورکولې شی یعنی که مدعی علیه قبضه نه وی کړې نو مدعی به هغه ته قبضه ورکوی.(۱) او که هائی کورټ د مدعی علیه ملکیت نه وی منلې نو باقاعده د شهادت د عدم موجودګئ په وجه باندې به مدعی علیه ته قسم ورکولې شی.(۲) پس که مدعی علیه قسم اوخوړلو چې مونږ ته نه ده معلومه چې زمونږ پلار دا ځمکه خرڅه کړې ده نو د مدعی علیه په حق کې به فیصله کولې شی، او هغه ته به قبضه ورکولې شی.(۳) وهوالموفق

---

۱) وفي شرح المجلة: یعمل ایضاً بسجلات المحاکم اذا کانت قد ضبطت سالمة عن الفساد. (شرح المجلة ۵:۳۸۷، المادة:۱۷۳۸ کتاب الشهادة)

۲) وفي الهندیة: فان اقر او انکر فبرهن المدعي قضي علیه والاحلف بطلبه. (هندیة ۴:۱۳ کتاب الدعوي الباب الثالث في الیمین الخ)

۳) قال العلامة الحصکفي: والتحلیف علي فعل غیره یکون علي العلم اي انه لا یعلم انه کذلک لعدم علمه بما فعل غیره. (الدرالمختار ۴:۴۷۳ کتاب الدعوي)

## د زنانه د نکاح د انعقاد نه انکار باندې طریق فیصله

**طریق فیصله** : په باره د نکاح د ناهیده مقام جلبئ

**مدعي** : زدان شاه ولد قلندر شاه

**مدعی علیه** : ناهیده لور د اعتبار شاه

**بیان مدعي** : ما د مولوی صاحب د نکاح تړلو په وخت ګواهان لیږلې وو، او اجازت مې طلب کړې وو او دې زنانه د نکاح د انعقاد په وخت انکار نه وو کړې.

**بیان مدعی علیه** : (ناهیده) : (کومه چې حد بلوغ شپاړسو کالو ته تقریبا رسیدلې ده) ما د نکاح د انعقاد نه انکار کړې وو.

**طریق فیصله** : د دې بیاناتو په وجه باندې طریقه فیصله دا ده چې که دې جینئ مسماة ناهیده د اعتبار شاه لور او دې هلک مسمی زدان شاه سره باقاعده شهادت انکار یا اجازت نه وی نو دې جینئ مسماة ناهیده ته به قسم ورکولې شي، چې د خبر ملاویدو په وخت تا انکار او نکاح رد کړې ده، که دې زنانه قسم اوخوړلو نو دا به آزاده متصور کولې شي او که د قسم نه ئې انکار وکړو نو منکوحه به متصور وی. **ماخوذ از شرح تنویر علی هامش رد المحتار ۲/۳۰۶**(1) **وهوالموفق**

---

(1) قال العلامة الحصکفي : قال الزوج للبکر البالغة بلغک النکاح فسکت وقالت رددت النکاح ولا بینة لها علي ذلک ولم یکن دخل بها طوعا في الاصح فالقول قولها بیمینها علي المفتي به وتقبل بینته علي سکوتها لانه وجودي بضم الشفتین ولو برهنا فبینتها اولي الا ان یبرهن علي رضاها او اجازتها. (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۲:۳۲۸،۳۲۹ کتاب النکاح باب الولي)

## په نهر باندې د مدعیان ملکیت ترمینځه فیصله

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د اوبو نهر د زید په ځمکه کې دې او عمرو په هغې باندې خپله ځمکه خړوب کوله. زید هم په دې نهر باندې د ملکیت دعوی وکړه او عمرو هم، په دې کې به شرعی گواهان د زید معتبر وی یا د عمرو؟ بینواتوجروا

**المستفتی:** شریف الله کوکاړئ ضلع سوات.... ۱۵ اگست ۱۹۷۹ء

**الجواب:** د شرح مجلة وغیره نه معلومیږی کله چې مدعی به معروف او مشهور نه وی، نو ذکر د حدود وغیره ضروری دې، خو د ټول نهر حدود وغیره ذکر کول ضروری نه دی، د متنازع فیه مقدار حدود وغیره ذکر کول ضروری دی، کله چې معروف او مشهور نه وی (۱) بله دا چې ټولو فقهاء کرامو تصریح کړې ده چې د دعوی د صحت نه پس به طلب بینة وغیرها کولې شی. (۲)

په ظاهر کې زید او عمرو دواړه د ملک او ید مدعیان دی، پس په صورة مسئوله کې چې کوم طرف د بینة نه عاجز وی هغه اوبائیلله، او که دواړه عاجز شو نو نهر به په خپل حال وی، او که دواړو شهادت پیش کړو نو د

---

۱) وفي شرح المجلة: اذا كان المدعيٰ به عقارا يلزم ذكر بلده وقريته ومحلته وزقاقه وحدوده الاربعة اوالثلاثة واسماء اصحاب حدوده... لا يشترط بيان حدود العقار اذا كان مستغنيا عن التحديد لشهرته في الدعوي... والنهر لا يصلح حدا والأصح انه يصلح كالخندق وهل يشترط ذكر طول النهر وعرضه الأصح انه لا يشترط.

(شرح المجلة: ۵:۳۱ المادة: ۱۶۲۳ كتاب الدعوي)

۲) وفي الهندية: فان صحت الدعوي سأل المدعيٰ عليه عنها فان اقر او انكر فبرهن المدعي قضي عليه والا حلف بطلبه.

(هندية ۴:۱۳ كتاب الدعويٰ الباب الثالث في اليمين)

شرکت په شان معامله به کولې شی (۱) وهوالموفق

## فیصله د مسجد د تولیت او امامت په باره کښې

**فیصله شرعی**: ١٦ رجب المرجب ۱۳۹۹ء

**محترم جناب السلام علیکم!**

د سلام نه پس عرض دا دې چې مورخه ۱ جون ۱۹۷۹ء باندې مسجد اخون اباد نمبر ۳ کې د مسجد د امامت او تولیت په باره کې د شرعی فیصلې دپاره طرفین مولوی محمد اسماعیل او حاجی سید غلام حاضر شو، مولوی محمد اسماعیل بغیر د چا د شرکت نه د مسجد د بانی کیدو دعوی وکړه، خو دا اعتراف ئې هم وکړو چې د خاص مقدار نه علاوه ځمکه ما اخستلې نه ده. بلکې هغه حاجی سید غلام ورکړې ده، او حاجی سید غلام وویل چې ما د کوارټر ځمکه خرڅه کړې ده. آبادی مې نه ده خرڅه کړې او دا ئې هم وویل، چې زه هم بانی یم ما هم په آبادئ کې حصه اخستلې ده او دا ئې هم وویل چې اهل محله د مولوی محمد اسماعیل په امامت باندې خوشحاله نه دی

**فیصله**: چونکې د دې مقدمې بنیاد د درې خبرو په تعین باندې دې ۱: د واقف تعین، ۲: د بانی تعین، ۳: د اهل محله تعین، لهذا طرفین ته په ۱۳

---

(۱) وفي شرح المجلة: فاذا اقام كل منهما البينة علي ذلک ثبت يدهما معاً علي العقار فيشتركان فيه واذا اظهر احدهما العجز عن اثبات وضع يده واقام الآخر البينة علي كونه واضع اليد يحكم بكونه ذا اليد ويعد الآخر خارجا وان لم يثبت احد من الخصمين كونه ذا اليد يحلف كل منهما بطلب الآخر علي عدم كون خصمه ذا اليد في ذلک العقار ويشتركان فيه، وان حلفا معاً فلا يحكم لاحد منهما بكونه ذا اليد ويوقف العقار المدعي به الي ظهور حقيقة الحال.

(شرح المجلة ۵:۴۳۶ المادة: ۱۷۵۵، الباب الرابع في باب التنازع بالايدي)

جون ۱۹۷۹ء باندې د شهادت پیش کولو متعلق هدایات ورکړې شو، په ۱۳ جون ۷۹ء باندې طرفین حاضر شو.

د امر اول متعلق د اعتراف مطابق دوه وقف کونکی اوګنلې شو او هم د دې په بناء حق د مشری، هم د فریقین حق ومنلې شو.(۱)

د دویم امر متعلق فریقینو شهادت قائم کړو نو هم د دې په وجه باندې حق امامت هم د فریقین حق ومنلې شو، یعنی فریقین به په اتفاق سره امام مقرر کوی(۲) او د اختلاف په صورت کې به حکومت یا محکمه اوقاف د امام تقرری کوی ځکه چې د دې مسجد متقرره محله مشکوکه ده نو په اکثریت باندې فیصله کول ناممکن دی. وهوالموفق

## د معتمد ګواه نه بغیر په معلق بالشرط اقرار باندې فیصله کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام ددې مسئلې په باره کې چې یو سړی د حیوان سره غیر انسانی او غیر فطری عمل وکړو، صرف یو سړی چې د مذهب په لحاظ شیعه دې هغه په داسې کولو باندې اولیدو او هیڅ د سترګو لیدلې ګواه ئې نشته، هغه فیصله یو عالم ته یوړه، ملزم صفا انکار وکړو، ملزم وویل چې دا ګواه دې قسم وکړی نو چې کومه سزا وی زه تیار یم، آخر ګواه (مذهبا شیعه) قسم وکړو، په دې باندې فیصله وکړې شوه چې د ملزم په وینا باندې ګواه قسم کړې دې په دې وجه دې د ملزم مخ تور کړې شی او په خر

---

۱) قال العلامة الحصكفي: جعل الواقف الولاية لنفسه جاز بالاجماع وكذا لو لم يشترط لاحد فالولاية له عند الثاني وهو ظاهر المذهب نهر وعليه الفتوي.

(الدرالمختار ۳:٤۲۱ كتاب الوقف: مطلب في اشتراط الواقف الولاية لنفسه)

۲) قال العلامة الحصكفي: الباني للمسجد اولي من القوم بنصب الامام والمؤذن في المختار.

(الدرالمختار ۳:٤٥٤ كتاب الوقف، قبيل مطلب في الوقف المنقطع الاول الخ)

باندې سورولو سره دې په ټول کلی کې وګرځولې شی او حیوان دې ذبح کړې شی، نو دغه شان وکړې شو. او حیوان ذبح کولو سره دفن کړې شو. آیا پورته ذکر شوې فیصله شرعا صحیح ده یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی**: احمد نواز سکنه کراری کوٹ تحصیل بھکر ضلع میانوالی.. ۱٦ جولائی ۱۹۷۳ء

**الجواب**: واضحه دې وی چې دا پورته ذکر شوې فیصله صحیح نه ده ځکه چې نه دوه معتمد ګواهان موجود دې او نه د متهم د طرف نه اعتراف او اقرار موجود دې، ځکه چې اقرار معلق بالشرط نامنظور وی. **کما فی شرح المجلة م۱۵۸۴: ۸۷۲ الاقرار المعلق بالشرط باطل، والمراد بالشرط هنا ما کان علی خطر کما تقدم وکقوله ان حلفت فلك ما ادعیت فلو حلف لا یلزمه ولو دفع بناءً علی انه یلزمه فله ان یسترد المدفوع کما فی البحر**(۱). **وهوالموفق**

## د وصیت نامې د مدعی په خپله ګواه کیدل

**سوال**: څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ۱: د میان مسرت شاه ښځې په خپل ژوند کې د خپل ځان دپاره په جائیداد کې یو کور سره د خالی ځمکې په پیښور ښهر کې سره د شرعی ګواهانو په موجودګئ کښې خپل یو هلک مسمی عصمت شاه باندې په قیمت خرڅ کړې وو، او ذکر شوې کور ئې عصمت شاه ته حواله هم کړو. ګواهان لا تر اوسه پورې ژوندی دی چې د هغې لیک په ۹ فروری ۱۹۸۱ء باندې ولیکلې شو د شریعت په رڼا کې د دې بیع څه حیثیت دې؟

۲: د خاوند میان مسرت شاه نور وارثانو د هغه د وفات نه پس یو تحریری

---

(۱) (شرح المجلة ۸۷۲ المادة: ۱۵۸۴ المطبعة الادبیة بیروت)

وقال العلامة ابن نجیم: (ولو وصل اقراره بان شاء الله بطل اقراره) وکذا کل اقرار علق بشرط علي خطر ولم يتضمن دعوي اجل کإن حلفت فلک ما ادعيت به.

(البحر الرائق ۲۵۲:۷ کتاب الاقرار، باب الاستثناء وما في معناه)

وصیت نامه راویستله چې په هغې کې دا مذکوره کور تقسیم کړې شوې دې په ذکر شوې لیک باندې خپله مدعیان شته د شریعت په رڼا کې دې وصیت قانوني پوزیشن څه دې؟ بینواتوجروا

المستفتي: میان عصمت شاه..... ۱۵ مارچ ۱۹۸۷ء

**الجواب:** په غیر محفوظ کاغذاتو باندې فیصله نه شي کیدې (۱) خو په شهادت شرعیه باندې فیصله کول اصولي امر دې، پس که د وصیت نامې ګواهان خپله مدعیان وی نو دا شهادت به کالعدم وی.(۲) او که په بیع نامه باندې شهادت معتبره موجودوی نوبیع نامه به واجب العمل وی(۳) وهوالموفق

## د ملک مطلق او د اشتراک د مدعیانو ترمینځه د فیصلې طریقه

**د فیصلې طریقه** د متنازعه دکانونو په باره کې: ۷ جولائی ۱۹۸۵ء

**فریق اول**: مسمی داد مے ولد اختر جان، مسمی شهزاد ګل ولد حمزه ګل

**فریق ثاني**: مسمیٰ فیروزخان ولدحاجی بډول، مسمی جمیل ولد حاجی بډول

**دعوی**: په باره د دوه دکانونو کې چې یو غټ دې او یو وړوکې

د **فریق اول** د دعوې خلاصه دا ده چې وړوکې دکان صرف د اختر جان دې او لوئې دکان د حمزه ګل او فیروز خان ترمینځه مشترک دې.

---

۱) وفي شرح المجله: لا یعمل بالخط والختم فقط ولکن اذا کان سالما عن شبهة التزویر والتصنیع یکون معمولا به یعني یکون مدارا للحکم لا یحتاج الي الثبوت بوجه آخر. (شرح المجلة ۵:۳۸٤ المادة: ۱۷۳۶)

۲) قال العلامة الحصکفي: لا تقبل شهادة الانسان لنفسه. (الدرالمختار ٤:٤۲۲ کتاب الشهادة، باب القبول وعدمه)

۳) وفي الهندیة: فان اقر او انکر فبرهن المدعي قضي علیه. (هندیة ٤:۱۳ کتاب الدعوي، الباب الثالث في الیمین الخ)

**د فریق ثاني** د بیان خلاصه دا ده چې په دې دکانونو کې د فریق اول هیڅ حق نشته، په دې کې مونږ تصرف کړې دې او مونږ په کرایه ورکړې دی او کرایه مو وصول کړې هم ده.

**طریق د حکم شرعي**: دا دې چې چونکې د فریق اول سره شهادت شرعي موجود نه دې، لهذا دویم فریق دې دا قسم وکړي چې د دې فریق اول په دې دکانونو کې هیڅ شراکت او حصه نشته. (۱)

**نوټ**: که فریق اول شهادت شرعیه قائم کړو نو فیصله به د فریق اول په حق کې کولې شي. **وهوالموفق**

**د مالک دعوی ناقابل سماع کیدو سره به د مشتري دعوی هم ناقابل سماع وي**

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ما د خپلې ځمکې په حد کې کوم چې په سرکاری کاغذاتو کې موجود دی، څه حصه خپل ورور ته پرېښودلو سره په باقي حصه کې بنیادونه قائم کړل، چې په هغې کې مې یو بنیاد صرف د نخښې په طور او باقي پوره دیوالونه جوړ کړې شو، د پوره دیوال او د نخښې د بنیاد ترمینځه مې دخپل ورور دپاره لاره پرېښودله او د هغې د حدود مې خپل ګاونډیانو چې هغه وخت مالکان وو هغوی له په موقع راوستلو باندې بنیاد کېښودلې وو، کلونه پس زما خواته ګاونډی مالکانو خپله ځمکه په بل چا باندې خرڅه کړه اوس هغه موجوده مالک دعوی کوی چې زما د اخستلې شوې ځمکې حد ستا د دننه کېښودلې بنیاد (پوره دیوال) پورې دې او کوم چې بهر د د بنیاد نخښه ده

(۱) وفي المشكوة: عن النبي ﷺ قال البينة على المدعي واليمين على المدعىٰ عليه، رواه الترمذي. (مشكوٰة المصابيح ۳۲۷ باب الاقضية والشهادات)

وقال العلامة ابن نجيم: (قوله والاحلف بطلبه) اي وان لم يكن للمدعي بينة حلف القاضي المدعىٰ عليه بطلب المدعي لقوله عليه الصلوٰة والسلام للمدعي ألک بينة فقال لافقال لک يمينه.

(البحر الرائق ۷:۲۰۳ كتاب الدعوىٰ)

هغه زما د ځمکې په حد کې دې نو آیا د دې دعوی کونکی دعوی صحیح کیدې شی یا غلط؟ حال دا چې هغه سابقه مالکان موجود دی هغوی د دې نه مخکې ماته هیڅ هم نه دی ویلی چې ستاداد بنیاد نخښه غلطه ده؟بینواتوجروا

المستفتی: باغ علی شاه سکنه بختئے لاهور کینټ.....٤مارچ ١٩٧٤م

**الجواب:** دا مشتری د اصل مالک قائم مقام دې او چونکې په صورت مسئوله کې د اصل مالک دعوی ناقابل سماعت ده لهذا د مشتری دعوی به هم ناقابل سماعت وی. یدل علیه ما فی رد المحتار٥/٦٤٨ ویه علم ان مجرد السکوت عند الاطلاع علی التصرف مانع الخ(١) وهوالموفق

## د دشمنۍ د وجې نه د غائبیدونکی مدعی د دعوې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید او بکر دواړه وروڼه دی، د خپلو خپلوانو سره په یو کلی کې اوسیږی په کور کې د پلار د جائیداد مالکان دی، په ۱۹۲۳ء کې زید حکومت ته درخواست وکړو چې زمونږ د پلار جائیداد دې سرکاری طور په مونږ کې تقسیم کړې شی، چونکې مونږ د جائیداد اصل وارثان وو لهذا جائیداد سرکاری طور تقسیم کړې شو، عابد یو غیر سړې دې د زید او بکر سره ئې لرې رشته هم نشته، د حکومت په کارکنانو کې ئې تعلق دې، هغه په ۱۹۷۰ء کې د متعلقه حکام سره یوځای کیدو باندې د زید او بکر پوره جائیداد په پټه په خپل نوم باندې کړو او په ۱۹۷۵ء کې ئې د زید او بکر په پوره جائیداد باندې دعوی وکړه، خو عابد سره د مضبوط جواز د نه کیدو په وجه باندې انګریزی قانون زید او بکر د جائیداد اصل وارثان ومنل. اوس عابد خپله او د حکومت د ملازم په ذریعه زیداو بکر لره تنګوی، بیا په ۱۹۷۲ء کې عابد سره د ځامنو او ملګرو د زید او بکر سره په جنګ شو او په دې جنګ کې د عابد ځوئې قتل شو، نو د قتل کیس شروع شو، چونکې په حکومت کې عابد تعلق ډیر لرلو او د حکومت افسران د هغه طرفدار وو نو حکومت

---

(١) (ردالمحتار ٥:٥٢٤ مسائل شتي)

هغوی دوارو ته پهانسی ورکړه او باقی رشته دار ئې جلاوطن کړل، او د هغوی په جائیداد باندې عابد خپله قبضه وکړه، او د زید او د بکر رشته دارو د ویرې د وجې نه دعوی ونکړې شوه بیا د زید او بکر لمسو په ١٩٧٩ء کې حکومت پاکستان ته درخواست ورکړو خو هیڅ جواب ئې رانغلو، او د هغې نه پس د ایوب خان په دور کې د زرعی اصلاحاتو په موقع باندې ئې منډه تړره اووهله، خو هغه اصلاحات هم د عابد د اهل و عیال په اثر او رسوخ سره په هغه علاقه کې نافذ نه شو، او معامله هم هغه شان پاتې شوه، د دې نه علاوه د زید او بکر خپلوانو د ١٩٨٥ء پورې عدالتی مقدمات چلولې وو، او فیصله هم د هغوی په حق کې وه خو د هغې باوجود هم هغوی دا جائیداد حاصل نه کړې شو تاسو ته درخواست دې چې د دې مسئلې حل کولو سره په دوارو جهانو ثواب حاصل کړئ؟ بینواتوجروا

المستفتی: شماس خان کلیاس تحصیل چارسده.... ١٣ جولائی ١٩٧٣ء

**الجواب:** په صورت مسئوله کې د زید او د بکر د لمسو دعوی محکم یعنی یو عالم ته صحیح ده، اګر چې د قاضی او حاکم په نزد ناقابل سماعت ده، خصوصا کله چې دا مدعی ډله د دشمنئ د وجې نه غائب وو.

فی رد المحتار: الثانی ان النهی حیث کان للقاضی لاینافی سماعها من المحکم ٤:٣٤٣ وفیه ایضا قال المتاخرون من اهل الفتوی لا تسمع الدعوی بعد ستة وثلاثین سنة الا ان یکون المدعی غائبا او صبیا او مجنونا ولیس لهما ولی اوالمدعی علیه امیر جائر ٤:٣٤٤ (١) ویؤیده ما فی الاشباه ان الحق لایسقط بتقادم الزمان (٢) قلت ومنع الفقهاء عن السماع انما هو للقضاة دون المحکمین فافهم وکذا کل متغلب فی حکم الامیر الجائر. وهوالموفق

---

١ ) (ردالمحتار ٣٨٢، ٣٨١: ٤ مطلب هل یبقی النهی بعد موت السلطان)

٢ ) (الاشباه والنظائر ٢٢٢ کتاب القضاء والشهادات والدعوی)

## د ملک مطلق او د شاملات د مدعیانو ترمینځه فیصله

**فیصله**:په باره دځمکې دحضرت خان اوحضرت عمرترمینځه ۳۱دسمبر ۱۹۲۸ء

**فیصله** : د لیکلي او زباني بیان نه معلومه شوه چې حضرت خان د ځمکې د دې حصې د ملکیت مدعی دې او حضرت عمر وغیره د دې شاملات د حصې (موات) مدعی دي او په زباني بیان سره معلومه شوه چې حضرت خان او د هغه پلار به په دې حصه کې د ګیا او د اونو د پرې کولو تصرف کولو، پس په صورت مذکوره کې که حضرت خان په خپل ملکیت باندې حجت قائم نه کړو نو د حضرت عمر وغیره په حضرت خان باندې دعوی صحیح نه ده.(۱) ځکه چې حضرت خان د هغوی هیڅ حق شرعي نه دې ضائع کړې. بیشکه د حضرت خان د حجت قائمولو نه مخکې هغه ته د نورو کسانو یعني حضرت عمر وغیره دتصرف نه منع کول ناجائز دي او په حضرت خان باندې ضروري ده چې کومه صلح د هغوی ترمینځه واقع شوې ده په هغې باندې ثابت قدم پاتې شي چې قتل او جنګ ته پکې خبره او نه رسیږي. (۲) **فقط**

## د وراثت او د اشتراک مدعیان خارج اود ذوالید ترمینځه طریق فیصله

**سوال**: څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زه جبار ګل د ګلا جان بن سلطان جان بن عبدالله جان ځوئې یم د دې عبدالله جان دوه ځامن سلطان جان، میرعجان وو، د دې دوارو ځامنو دپاره چې د پلار نه کوم میراث پاتې شوې وو په هغې کې څه میراث هغوی تقسیم کړې وو، او

---

۱ ) وفي شرح المجلة: يلزم اثبات وضع اليد بالبينة في العقار المنازع فيه... اعلم ان الحكم بالملكية في العقار لا يكون الا بعد اثبات وضع اليد بالبينة.
(شرح المجلة ۴: ۲۳۳ المادة: ۱۷۵۴ الباب الرابع في باب التنازع بالايدي)

۲ ) وقال العلامة سليم رستم باز : يجوز لكل واحد الانتفاع بالمباح ... ليس لواحد قبل اخذ الشيئ المباح واحرازه ان يمنع الآخر عنه.
(شرح المجلة ۶۸۱ المادة: ۱۲۵۵، ۱۲۵۴ الفصل الثالث في احكام الاشياء الخ)

څه مشترک وو، اوس ګلا جان ولد سلطان جان وائي چې دا مشترک میراث دې مهربان ولد میرعجان ما سره تقسیم کړي، او مهربان ولد میرعجان وائي چې زه دا مشترک میراث نه تقسیموم ځکه چې دا ماته د والد صاحب د طرف نه ملاؤ شوې دې، په دې کې ستاسو هیڅ حق نشته، ګلا جان وائي چې زمونږ پلارانو چې څه مشترک پرېښودلې وو هغه اوسه پورې مشترک دی، زما او ستاسو ترمینځه د هغې تقسیم نه دې شوې، او ماته په مشترک حصه کې هیڅ حصه نه ده ملاؤ شوې، او حق، د زمانې په تیریدلو سره نه ساقط کیږي، که مهربان سره څه شرعي ګواهان په دې تقسیم باندې موجود وي چې ګلا جان خپله حصه اخستلې ده نو هغه دې پیش کړي، که نه وي نو بیا دې دا مشترک حصه تقسیم کړي ځکه چې دا زمونږ مشترک نیکهٔ وو مونږ ته دهغه په میراث کې برابر حصه ملاویږي، اوس تاسو صاحبان په دې کې د مدعی او مدعی علیه تعین وکړئ چې څوک دې؟ ځکه چې ګلا جان په ظاهر کې د تقسیم نه منکر دې، او وائي چې مونږ نه دې تقسیم کړې اوس زه تقسیمول غواړم، ځکه چې میراث زمونږ د نیکهٔ وو، د بل خای نه نهٔ دې راغلې، مهربان وائي چې ماته د پلار نه ملاؤ شوې دې که یو قاضي، ګلا جان لره مدعی علیه او مهربان لره مدعی جوړ کړي په دې بناء باندې چې مهربان هم د دې ځمکې د وارث کیدو دعوی کوي بغیر د دلیل شرعي نه، ځکه چې ګلا جان د خپلې حصې د پوره اخستلو نه منکر دې، چې ماته پوره حصه میراث نه دې ملاؤ شوې، که ملاؤ شوې وي نو مهربان دې هغه ماته اوښائي ددې قاضي دا مسئله صحیح ده یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: جبار ګل پاره چنار ....... ۲۷ جولائی ۱۹۷۸ء

**الجواب:** په دې ځمکه متنازع فیه کې به نیمه مهربان ته ورکولې شي، او په باقي نیمه کې به د هغه سړي قول منظور وي کوم چې باقاعده شهادت پیش کړي. (۱) او که دواړه شهادت پیش کړي نو د خارج قول به

---

۱) وفي شرح المجلة: واذا عجز احدهما عن الاثبات واثبت الاخر يحكم له بكون ذلك العقار ملكه مستقلا لان البينة اقوي من وضع اليد. ...[بقيه بر صفحه آئنده...

منظور وی (۱) او که دواړه پیش نه کړې شي نو ذوالید به قسم کوی (۲) ماخوذازمجلة وتکمله.....وهوالموفق

## د بیع د مدعی او د هغې د منکر ترمینځه طریق فیصله

### شریعت نامه

**فریق اول**: حاجی شهزاد لنډی کوتل

**فریق ثانی**: شیخ مجان وملئ لنډی کوتل

**کیفیت**: اول فریق دا دعوی کوی چې مونږ دا ځمکه د دویم فریق نه په بیع اخستلې ده او دویم فریق انکاری دې.

**طریق فیصله**: که فریق اول سره سرکاری محفوظ کاغذونه نه وی نو فریق اول دې کم از کم دوه معتمد ګواهان پیش کړی چې دا جائیداد دویم فریق په فریق اول باندې خرڅ کړې دې، نو په دې تقدیر باندې به ئې اول فریق اوګټی او دویم فریق به ئې بائیلی.
او که اول فریق د داسې ګواهانو د پیش کولو نه عاجز وی نو دویم فریق ته به په قرآن کریم وغیره باندې قسم ورکولې شي چې تاسو دا ځمکه په فریق اول

---

...بقیه ازحاشیه گذشته]
(شرح المجلة ۵:۴۴۷ المادة: ۱۷۵۶ الفصل الثاني في ترجيح البينات)

۱ ﴾ وفي التكملة: ادعيا ملكا ارثا لابيه والعين في يد احدهما لم يؤرخا يقضي للخارج.
(تكملة ردالمحتار ۲:۱۵ باب دعوي الرجلين)

۲ ﴾ وفي شرح المجلة: ان اقر المدعي عليه صاحب اليد للخارج المدعي بالملكية يحكم عليه برده له وان انكر فعلي حسب شرح الفقرة الآنفة تطلب البينة من الخارج فان اثبت اخذ العقار والا يحلف المدعي عليه ذواليد فان نكل يحكم للمدعي الخارج وان حلف يترک في يده. (شرح المجلة ۵:۴۳۹ المادة: ۱۷۵۵)

باندې نه ده خرڅه کړې؟ پس که دویم فریق قسم وکړو نو هغه به ئې اوګټي، او که د حلف نه انکاری شو نو وبه ئې بائیلي. (مأخذ فیصله حدیث ﴿البینة علی المدعی والیمین علی من انکر﴾(۱) وشرح المجلة ۱۱۷۹ مادة : ۱۸۱۸ تا ۱۸۲۰. (۲) وهوالموفق

## صرف په کاغذونو باندې فیصله کول بې قاعدې امر دی

دوزیرستان د قوم فیصله......۱اپریل ۱۹۸۵ء

بسم الله الرحمن الرحیم

واضحه دې وی چې د دې متعلقه لیکلو په بناء باندې مسمی غازی ذوالید قابض دې او مسمی زار خان خارج او مدعی دې، اودا دې هم واضحه وی چې مسمی غازی د دې مدعی به د پلارنیکه د ملکیت دعوی کوی او په تصرفاتو باندې تمسک کوی پس چونکې ډیر کرته په سرکاری کاغذونو کې لیکلې شوې مالک څه حصه خرڅوی یا ئې هبه کوی او د بل سړی په نوم باندې انتقال نه شی لیکلې، لهذا صرف په کاغذاتو باندې فیصله کول بې قاعدې امر دې، او ذوالید ته قسم ورکول ضروری دی چې دا ځمکه مونږ

---

۱ ﴾ ( سنن الترمذي ۱۶۰ ابواب الاحكام: باب ماجاء في ان البينة علي المدعي واليمين علي المدعي عليه)

۲ ﴾ وفي شرح المجلة: اذا اثبت المدعي دعواه بالبينة حكم الحاكم بذلک وان لم يثبت يبقي له حق اليمين فان طلبه كلف الحاكم المدعي عليه اليمين، فان حلف المدعي عليه او لم يحلفه المدعي منع الحاكم من المعاوضة للمدعي عليه، اذا نكل المدعي عليه عن اليمين حكم الحاكم بنكوله.

(شرح المجلة ۱۱۲، ۱۱۰، ۱۰۷، ۶: المادة: ۱۸۲۰، ۱۸۱۹، ۱۸۱۸)

سره په سوال نه ده، بلکې د پلار نیکهٔ ملکیت دي، خو مسمی غازی باندې ضروري ده چې مالکانه تصرفات په مشاهده یا بینه سره ثابت کړي. (۱)

**نوټ**: که زارخان سره معتمد غیر جانبدار شهادت وي نو هغه د غازي په قسم باندې مقدم دی. (۲) وهوالموفق

## په مړي باندې د قرض د دعوی فیصله

**طریق فیصله**: په باره د دوه ډلو کې د لنډي کوتل ........ ۵ مئی ۱۹۸۳ء

محترم المقام جناب تحصیلدار صاحب لنډي کوتل السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

**اما بعد!** پس واضحه دې وي چې چونکې طرفین یعنی اختر جان او فیروز خان وغیره په مقرر تاریخ باندې په یو وخت حاضر نه شو. لهذا مثل واپس کولې شي، او طریق فیصله لیکل مناسب معلومیږي او هغه دا دي چې:

د کالي خان شرعي وارثان دوه دي لور او د ترهٔ ځوئې اختر جان او فیروز خان د عصبه بعیده کیدو د وجې نه وارث نه دې، خو که دا فیروز خان د دوه معتمد غیر جانبدار ګواهانو په ذریعه په کالي خان متوفی باندې قرض ثابت کړي نو هغه به د دې قرض مستحق شي. (۳) او د باقاعده شهادت نه کیدو په صورت کې به اختر جان ته قسم ورکوی. وهوالموفق

---

۱ ﴾ قال العلامة سلیم رستم باز: یلزم اثبات الید بالبینة في العقار المنازع فیه. (شرح المجلة ۱۱۰۸ المادة: ۱۷۵۴ الباب الرابع في التنازع بالایدي)

۲ ﴾ قال العلامة سلیم رستم باز: واذا عجز احدهما عن الاثبات واثبت الآخر حکم له بان ذلک العقار ملکه بالاستقلال. (شرح المجلة ۱۱۱۵ المادة: ۱۷۵۶ الفصل الثاني في ترجیح البینات)

۳ ﴾ وفي شرح المجلة: اذا ادعي احد من الترکة کذا دینا وشهدت الشهود بان للمدعي في ذمة المیت مقدار ما ادعي من الدین یکفي. ...[بقیه بر صفحه آئنده...

## د وراثت نه محرومې لونړې د اوږدې

## مودې نه پس هم دعوی کولې شي

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د یو وفات شوي سړي صرف څلور لونړې دی او وارثانو میراث غصب کولو سره دا لونړې محرومه کړې، اوس ئې درې لونړې مړې شوې دی او یوه ژوندئ ده آیا هغه د شریعت او اسلامی حکومت په ذریعه خپل حق غوښتلې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد یوسف مفتی دار العلوم حقانیه اکوړه خټک ......٦ جولائی ۱۹۷۲ء

**الجواب:** دا ژوندئ لور او ابناء البنات باقاعده دعوی کولې شی او خپل شرعی حق حاصلولې شی اګر چې سل کاله پس وی،

لان الحق لا یسقط بتقادم الزمان (اشباه) (۱) ولان الترک لایمکن الا عند تحقق القاضی المامور بالسماع فالبلاد التی جرت فیها غصب المیراث وقضاتها یحکمون بالرسوم المعروف لا بد من سماع الدعوی بعد زوال شوکة امراءهم لان هذا التاخیر لایسمی ترکاً. وهوالموفق

---

...بقیه ازحاشیه گذشته]

(شرح المجلة ۲۴۱:۵، المادة: ۱۶۹۴)

وایضا قال العلامة محمد خالد الاتاسي: وفي البحر الرائق وحاصل ما ذکره الصدر في دعوي الدین علي الوارث ان القاضي یسئل المدعي علیه اولاً عن موت ابیه لیکون خصما فان اقر به یستو فیه المدعي من نصیبه فقط، وان انکر فبرهن المدعي استوفاه من التر کة والا وطلب یمینه استحلفه القاضي علي العلم فان حلف انتهت والا قضي علیه. (شرح المجلة ۴۱۶:۵ المادة: ۱۷۴۸)

۱) (الاشباه والنظائر ۲۲۲ کتاب القضاء والشهادات والدعوي)

## د څمکې په فیصله کې شرعي طریق کار

### طریق فیصله

دحاجي قریب خان او گل زمان وغیره ترمینځه د دې تنازعه فیصله دا ده چې اول دې دټولې مدعی په ځمکې تعین وکړې شي. (۱)

دویم دې دا ثابته کړې شي چې خارج څوک دې او ذوالید څوک دې چې په فیصله کولو کې آساني وي. (۲)

دریم دې دا ثابته کړې شي چې آیا د سماعت نه مانع امر موجود دې یا نه؟

څلورم دې دا وکتلې شي چې مدعی علیه د دفع او ابراء وغیره دعوی کوي یا نه؟

پنځم اثبات دفع یا اثبات اصل مدعٰی کې دې دبینه او حلف نه کار واخستلې شي. وهوالموفق

## په مشترکه چینه باندې آبادي کونکې ذوالید نه دې

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په یوه چینه باندې د څلورو قبیلو دعوی ده چې دا زمونږه ده او گواهان چا سره هم نشته او هره قبیله په دې باندې قسم هم خوري.

---

۱) قال العلامة الحصكفي : وشرطها معلومية المال المدعي...ويشترط التحديد في دعوي العقار كما يشترط في الشهادة عليه.

(الدرالمختار ۴:۴۶۷،۴۶۹ كتاب الدعوي)

۲) وفي شرح المجلة : اعلم اولا ان معرفة الخارج من ذي اليد عند التنازع بالايدي مهم جداً لان بذلک يتميز المدعي من المدعي عليه ويترتب علي ذلک تعين المحل الذي تطلب فيه اليمين ومن يكون خصما في الدعوي ومن لا يكون وفي اي حالة يقضي قضاء ملک واستحقاق وفي اي حالة يقضي قضاء ترک الي غير ذلک من الاحكام.

(شرح المجلة ۵:۴۳۱ الباب الرابع في باب التنازع بالايدي)

۲: دا چینه تقریبا د یو سل ځلوېښتو کالو نه غیر آباد ده نن هم په دې باندې د چا آبادی نشته.
۳: زمونږ د غر هر طرف ته حدود معلوم دی او زمونږ دا درې قبیلې منی چې دا غر مشترک دې او دا چینه په دې غر کې ده.
۴: یوې قبیلې په دې باندې آبادی شروع کړه او بلې هغه آبادی را وغورځوله، اوس به په دې سره اوله قبیله ذوالید ثابتیږی یا نه؟ **بینوا توجروا**

المستفتی: ملا عبدالستار ۳۰ اگست ۱۹۷۵ء

**الجواب:** چونکې په دې چینه باندې نه د چا ید موجود دې. او نه د ملکیت گواهان موجود دی او نه په ملکیت خاصه کې ظاهره شوې ده. لهذا دا چینه به شریکه ساتلې شی. او دا آبادی کونکې به ذوالید نه وی.

یدل علیه مافی التکملة (۲: ۱۱) ولو غصب ارضا وزرعها فادعی رجل انها له وغصبها منه فلو برهن علی غصبه واحداث یده یکون هو ذا ید والزارع خارجا ولو لم یثبت احداث یده فالزارع ذو ید والمدعی هو الخارج، بیده عقارا احدث الآخر علیه یده لا یصیر به ذا ید فلو ادعی علیه انك احدثت الید وکان بیدی فانکر، یحلف اه وبه علم ان الید الظاهر لا اعتبار بها (۱) انتهی مافی التکملة. فافهم

## په اجاره باندې د اخستلې شوې ځمکې په غاصب باندې د مستاجر دعوی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د مسمی میردل سره د شهاب الدین ځمکه په قلنک باندې ده یعنی د ځمکې مالک ته د کال څه نقدې پیسې د اجارې په شکل ورکوی، اوس میردل په خپل گاونډی نذیر احمد باندې دعوی کوی چې تا زما د قلنگی ځمکې څه حصه په خپله

---

(۱) (تکملة ردالمحتار ۱۲: ۲ کتاب الدعوی مطلب من اهم مسائلة دعوی الرجلین معرفة الخارج من ذی الید)

اخستلې شوې ځمکه کې شاملولو سره قبضه کړې ده، نذیر احمد وائي چې ته د ځمکې اصل مالک نه ئې، او نه د ځمکې د مالک وکیل او مختار ئې بلکې اصل مالک شهاب الدین دې. زه ستا د دې دعوې هیڅ جواب نه درکوم ته قلنګی ئې نو د نذیر احمد دا خبره چې زه د مدعی سره هیڅ فیصله نه کوم صحیح ده یا غلطه؟ بینواتوجروا

المستفتی: نذیر احمد باړه.......۲۵ اګست ۱۹۷۵ء

**الجواب**: په صورت مسئوله کې د میردل دعوی صحیح ده، او د نذیر احمد دفع باطل ده، کما فی شرح المجلة ۹۴۱: ولکن اذا غصب الودیعة اوالمستعار اوالماجور اوالمرهون فللودیع والمستعیر والمستاجر والمرتهن ان یدعی بها علی الغاصب وحده ولایلزم حضور المالك(۱). وهوالموفق

## د مقدمې په دوران کښې د مدعی د وفات کیدو حکم

**سوال**: څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې عبدالشکور او عبدالقدیر وغیره مدعیان د نوټس ۲۴ مارچ ۵۱، په ذریعه، او فیصله ۱۸ جون ۵۳ په ذریعه او فیصله ۱۸ مارچ ۲۰، په ذریعه د مدعی په حیثیت مدعی مقتضی اظهار حقیقت صداقت او تصدیق دی.
درخواست په نوم د قیصر خان ۲۵ اګست ۴۷، او فیصله ۱۹۵۲ء، او دخول نصیر الدین په ذریعه د سروے رجسټر ۵۵، او فیصله د ۲۲ جون ۱۹۲۹ء مدعا علیه

---

(۱) (شرح المجلة ۹۴: ۵المادة: ۱۶۳۷، کتاب الدعوي)
وفي الهندیة: واذا ادعي المستأجربغیر حضرة الآجر تسمع دعواه کذا في المحیط... آجر داره وسلمها ثم غصبها من المستاجر غاصب لا تصح دعوي المالک علي الغاصب بلا حضور المستأجر.
(فتاوي عالمګیریة ۴:۳۷ الباب الخامس فیمن یصلح خصما لغیره)

جناب عالی! دا مقدمه د سماعت دپاره د سول جج صاحب په عدالت پېښور کې زیر بحث ده خو په دوارو مقدمو کې مدعی عبدالقدیر فوت شو او عدالت ته د مدعی د وفات خبر په وخت اونه شو په دې وجه باندې عدالت مقتضی د سماعت نه دې، نو عرض دې چې د مدعی وفات او قاضی ته د عدم اطلاع او د سماعت په حقیقت باندې څه اثر پرېوځی یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: عبدالشکور

**الجواب:** که د مدعی څوک قائم مقام موجود وی مثلا وکیل یا وصی وغیره نو سماعت او فیصله مشروع ده.

کمایقتضیه مافی الدر المختار: ولا یقضی علی الغائب ولاله الا بحضور نائبه أی من یقوم مقام الغائب حقیقة کوکیله ووصیه، وفی ردالمحتار (۴: ۶۳۳) فان المیت غائب ووصیه قائم مقامه حقیقة الخ(۱). فقط

## قضاء علی الغائب بغیر د ضرورت نه ناجائز ده

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د دوه سړو ترمینځه مقدمه شروع شوه، قوم دا فیصله وکړه او یو سړی ته ئې وویل چې که تاسو په فلانی تاریخ باندې د مقدمې دپاره حاضر نه شوئ نو ستاسو دعوی به ابراء کولې شی هغه دا وعده هم وکړه چې زه به دعوی ابراء کوم دا

---

۱ ﴿ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۳۷۳: ۴ مطلب في القضاء علي الغائب)

وفي شرح المجلة: ومنها لوقامت البينة علي المورث فمات وحضر وارثه او قامت البينة علي وارث فغاب وحضر وارث آخر يقضي علي الذي حضر بتلك البينة ومنها الوصي سواء كان وصي الميت فهو نائب عن الميت بانابته أو وصي القاضي فبانابة الشرع يحكم عليه بالبينة التي أقيمت علي الميت قبل موته.

(شرح المجلة ۱۳۸: ۶ المادة: ۱۸۳۰ الفصل الأول في بيان شروط الحكم)

دعوی د ابراء په مذکوره صورت کې په شرط د تعلیق قضاء صحیح ده یا نه؟
**بینواتوجروا**

**المستفتي:** مولوی محمد اکبر. واله کیمپ ویره اسماعیل خان

**الجواب:** دا سړې د وعدې په وجه باندې نیولې کیدې شی (¹) په حقیقت کې فیصله نه ده شوې ځکه چې دا په حقیقت کې د قضاء علی الغائب طرف ته راجع کیږی کوم چې د احنافو په نزد (بغیر د ضرورت نه) ناجائزده. (²) وهوالموفق

## د پلار نیکهٔ د وخت نه په مقبوضه ځمکه باندې دعوی ناقابل سماعت ده

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په یو کلی کې یو مسجد دې او د هغې جائیداد (سیرئ) ده. په دې مسجد باندې دوه قبیلې آبادې دی. ۱: خواجه خیل، ۲: بابا خیل. بیا دا دواړه په پنځو پنځو ورو ورو قبیلو کې تقسیم دی، نو ټولې لس قبیلې جوړیږی، تقریبا د پنځه اویا کالو نه بلکې د دې نه هم مخکې دې قوم (یعنی پنځو قبائلو خواجه خیل او څلور قبائلو بابا خیل یعنی کل نهه قبائلو) خپله حصه سیرئ یو امام صاحب ته قطعی طور باندې ورکړې وه او په باباخیل کې یوې قبیلې خپله لسمه حصه

---

۱) وفي التفسير المظهري: (واوفوا بالعهد) اي بما عاهد كم الله من تكاليفه وما عاهدتم الناس عهداً مشروعا (ان العهد كان مسئولاً) أي مطلوبا يطلب من العاهد ان لا يضيعه ويفي به أو مسئولاً عنه فيسأل عن الناكث ويعاتب عليه.
(التفسير المظهري ۴:۲۴۶ سورة الاسراء آيت: ۳۴)

۲) وفي الهندية: القضاء بالبينة علي الغائب أو للغائب لا يجوز الا اذا كان عنه خصم حاضر اما قصدي وذلک بتوكيل الغائب اياه واما حكمي وذلک بأن يكون المدعي علي الغائب سببا لثبوت المدعي علي الحاضر لا محالة أو شرطا له.
(فتاوي عالمگيرية ۳:۴۳۳ الباب الحادي والثلاثون في القضاء علي الغائب)

وفي شرح المجلة: اعلم أو لاً أن القضاء علي الغائب وله لا يجوز عندنا الا اذا حضر من يقوم مقامه حقيقة أوحكما.
(شرح المجلة ۶:۱۴۶ الفصل الثاني في بيان الحكم الغيابي)

سیرئ بل امام ته ورکړې وه، دغه شان وخت تیریدلو کله چې حکومت پاکستان زمونږ په علاقه کې د ځمکې پیمائش شروع کړو نو هغه امام (کوم ته چې لسمه حصه یوې قبیلې ورکړې وه) دعوی وکړه چې د دې ځمکې په سیرئ کې زما نیم حق دې خو قوم وویل چې تاسو سوا د لسمې حصې حقداران نه یئ په دې وجه باندې هغه د خپلې دعوې نه واپس شو. هغه وخت په پیمائش کې لسمه حصه سرکاری طور سره د هغه امام صاحب په نوم باندې ولیکلې شوه، او باقي نهه حصې د بل امام صاحب په نوم باندې سرکاری طور سره ولیکلې شوې، اوس د هغه امام صاحب چې د هغه ۱/۱۰ حصه ده دوباره دعوی کړې ده چې زه په دې ځمکه (سیرئ) کې د نیمې حصې حقدار یم مهربانی وکړئ تفصیلی جواب راکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد شفیع ۲۵ جون ۱۹۷۵ء

**الجواب:** که دا مدعی علیه امام صاحب د دې نهو حصو د پلار نیکه د زمانې نه قابض او متصرف وی نو بیا به د مدعی امام دعوی ناقابل سماعت وی، کما فی ردالمحتار ۴۴۹:۵ **وفی الحامدیة عن الولوالجیة رجل تصرف زماناً فی أرض ورجل آخر یری الأرض والتصرف ولم یدع ومات علی ذلک لم تسمع بعد ذلک دعوی ولده فتترك علی ید المتصرف اه والظاهر أن الموت غیر قید(۱)**. وهوالموفق

## د درې سوه کالو نه مقبوضه ځمکې باندې د دعوی حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ یوه ځمکه ده چې د هغې اکثر حصه په ځنګلو باندې مشتمل ده کوم چې تقریباً د درې سوه کالو نه زمونږ په قبضه کې ده. چې په هغې باندې پنځه پشتونه قابض پاتې شوې دی د هغې آمدنی بغیر مونږ د شریک نه حاصل کړې ده اوس زمونږ په پنځم پشت کې یو رشته دار دعوی کوی چې زمونږ په دې ځنګلو

(۱) (ردالمحتار ۵۲۴:۵ مسائل شتی)

کې حصه ده اول خو هغه په عدالت کې دعوی وکړه، بیا ئې د هغې نه پس د خپلې غلطۍ اعتراف وکړو، اوس هغه ته دوباره د دعوی کولو حق حاصل دې یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: سید مظفر شاه.....۲ اپریل ۱۹۷۴ء

**الجواب:** دا دعوی ناقابل سماعت ده، یدل علیه مافی ردالمحتار ۵:۴۴۹: رجل تصرف زمانا فی أرض ورجل آخر یری الأرض والتصرف ولم یدع ومات علی ذلك لم تسمع بعد ذلك دعوی ولده فتترك علی ید المتصرف (۱). وهوالموفق

## محفوظ خطوط حجت وی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په ۱۳۵۲ء کې د دیر د نواب په زمانه کې د ځمکې بیع قطعی شوې وه او د بیع نامه په وخت کې چې کوم ګواهان موجود وو هغوی مړه شوې دی صرف په بیع نامه کې د نواب دستخط او د دیر د تحصیلدار مهر موجود دې، نو آیا د وخت د حاکم مهر او دستخط به معتبر وی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد مرزا.....نهاګ دره، واړی ضلع دیر..... ۲۷ مارچ ۱۹۸۵ء

**الجواب:** محفوظ خطوط حجت وی او غیر محفوظ حجت نه شی کیدې (شرح مجلة) (۲) وهوالموفق

---

۱) (ردالمحتار ۵:۵۲۴ مسائل شتّي)
وفي شرح المجلة: اذا ترک احد الدعوي بلا عذر ووجد مرور الزمان فكما لا تسمع تلک الدعوي منه في حياته كذلک لا تسمع من ورثته بعد مماته أيضا.
(شرح المجلة ۵:۱۸۷ المادة: ۱۶۶۹ الباب الثاني في حق مرور الزمان)

۲) وفي شرح المجلة: لا يعمل بالخط والختم فقط ولكن اذا كان سالما عن شبهة التزوير والتصنيع يكون معمولا به يعني يكون مدارا للحكم لا يحتاج الي الثبوت بوجه آخر.
(شرح المجلة ۵:۳۸۴، ۱۷۳۶)

...أبقیه برصفحه آئنده...

## د خارج د ذوالید په ځمکه باندې د میراث د دعوی حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید په عمر باندې دعوی وکړه چې دا کومه ځمکه ستاسو په لاس کې ده دا مانه زما د پلار په میراث کې ملاو شوې ده او اې ذوالید! نه د ګانې د وجې نه د دې ځمکې پیداګیر خورې، او دې مدعی علیه دا دعوی کړې ده چې دا مانه زما د پلار په میراث کې ملاو شوې ده او زما پلار تر سلو کالو پورې خوړلې ده؛ او چا هم په دې باندې دعوی نه ده کړې نو دا دعوی به عند الشرع مسموع وي یا نه او که مسموع وي نو بینة پیش کول د چا په ذمه دي؟ **بینوا توجروا**

المستفتي: عبدالمستعان مهمندي.. متعلم دار العلوم حقانیه... ۳جولائي ۱۹۸۶ء

**الجواب:** دا دعوی د حکم سره نا قابل سماعت دي

کما ورد في ردالمحتار: وفي الحامدية عن الولوالجية رجل تصرف زماناً في ارض ورجل آخر يرى الأرض والتصرف ولم يدع ومات على ذلك لم تسمع بعد ذلك دعوى ولده فتترك على يد المتصرف اه والظاهر أن الموت غير قيد بدليل أنهم لم يقيدوه به هٰهنا، ردالمحتار ۵: ۶۴۹ (۱)؛ البینه محکم سره قابل د سماعت ده. كما في ردالمحتار ۴: ۳۴۳ (۲). وهو الموفق

---

...بقیه ازحاشیه گذشته]

وقال العلامة ابن عابدين: وان ابن شحنة وابن وهبان جزما بالعمل بدفتر الصراف ونحوه لعلة امن التزوير كما جزم به البزازي والسرخسي وقاضي خان ،قال ان هذه العلة في الدفاتر السلطانية أولي . (ردالمحتار ۵:۴۳۵ مطلب في العمل بما في الدفاتر السلطانية)

۱ ﴾ (ردالمحتار ۵:۵۲۴ مسائل شتّي)

۲ ﴾ قال العلامة ابن عابدين: الثاني أن النهي حيث كان للقاضي لا ينافي سماعها من المحكم بل قال المصنف في معين المفتي أن القاضي لا يسمعها من حيث كونه قاضيا فلو حكمه الخصمان في تلك القضية التي مضى عليها المدة المذكورة فله أن يسمعها. (ردالمحتار ۴:۳۸۱ قبيل مطلب اذا ترك الدعوي ثلاثا وثلاثين سنة لا تسمع)

## د عذر د وجې نه د ویرې زمانې نه پس د دعوې کولو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړي د بل سړي جائیداد قبضه کړې دی. غریب سړي د ویرې د وجې نه په دې باندې دعوی او نه کړه، وروستو څه وارثان په دې باندې دعوی کوي آیا دعوی دخیلې ځمکې یا جائیداد دعوی کولې شي؟ بینواتوجروا

المستفتي: محمد حاجي، مسجد شاه منصور صوابي ...... ۲٦ ستمبر ۱۹۷۲ء

**الجواب:** دا سړې په دې غاصب باندې دعوی کولې شي،

أما عند المحکم فواضح (١) وأما عند القاضي فلما في شرح المجلة ١٩٩٠: المعتبر في هذا الباب انما هو مرور الزمان الواقع بلا عذر أما الزمان الذي مر بعذر شرعي كما لو كان المدعي صغيرًا او مجنونًا اومعتوهًا أو كان في ديار بعيدة مدة سفر أو كان خصمه من المتغلبة فلا يعتبر الخ (٢). وهو الموفق

## د اورېدې مودې د تیریدلو نه پس د خارج په دوالید باندې د ځمکې دعوی

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې پنځه پنځوس کاله مخکې زما والد صاحب د اوبو والا ځمکه په بیع قطعی سره اخستلې وه، دې دوران کې چا هم څه قسم دعوی نه وه کړې او زما والد صاحب تقریبا دولس کاله شوې دی وفات شوې دې او پورته ذکر شوې ځمکه ماته په میراث کې ملاؤ شوه، اوس یو سړی دعوی وکړه چې دا ځمکه زما حق دې

---

١) قال العلامة ابن عابدين: الثاني أن النهي حيث كان للقاضي لا ينافي سماعها من المحكم بل قال المصنف في معين المفتي أن القاضي لا يسمعها من حيث كونه قاضيا فلو حكمه الخصمان في تلك القضية التي مضي عليها المدة المذكورة فله أن يسمعها. (ردالمحتار ٤: ٣٨١ قبيل مطلب اذا ترك الدعوي ثلاثا وثلاثين سنة لا تسمع)

٢) (شرح المجلة ٥: ١٧٦، ١٧٧ المادة: ١٦٦٢ الباب الثاني في حق مرور الزمان)

او د دعوې اصل دا دې چې زمونږ ځمکې ته نږدې د دعوی کونکې څرخه کړې ځمکه باندې مونږ د شفعې دعوی وکړه او د زمیندارو او کرونده کونکو په شرارت سره مدعی د دعوې خلاف وکړل چې حق شفعه ساقط شی لهذا د پورته ذکر شوې مسئلې په باره کې مفصل جواب سره د حوالې ولیکئ؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولوی فضل مولی ....... علاقه میدان ۲۸ اپریل ۱۹۷۵ء

**الجواب:** دا دعوی د زائد المیعاد کیدو د وجې نه ناقابل سماعت ده کما فی ردالمحتار: رجل تصرف فی ارض زماناً ورجل آخر یری تصرفه فیها ثم مات المتصرف ولم یدع الرجل حاله حیاته لاتسمع دعواه بعد وفاته(۱). وهوالموفق

## په اشارې سره د معلومې ځمکې په حدود کې غلطی کول نقصانی نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ما د ځمکې څه حصه په ۱۹۴۲ء کې اخستلې وه، چې په هغې کې د چا هم شرکت نه وو، هغه وخت مونږ خپل استامپ پرچې لیکلې وو، خو د لیکلو په وخت د ځمکې په حدود اربعه لیکلو کې معمولی شان غلطې وشو، مونږ خلور کرته خو اوس زما وریرونو هم د دې غلطۍ نه فائده اوچتولو سره په ځمکه باندې دعوی کړې ده، آیا د هغوی دا دعوی صحیح ده یا نه؟ او په استامپ پرچې کې چې کوم ګواهان لیکلې شوې دی په هغې کې صرف یو سړې ژوندې دې باقی ټول وفات شوې دی نو که هغه د ګواهۍ ورکولو نه انکار وکړی نو بیا به څه حکم وی؟ بینواتوجروا

المستفتی: غلام محمد

**الجواب:** که دا ځمکه په اشاراتو سره معلومه وه، نو د حدود په ذکر او عدم ذکر او هغې کې غلطی نقصانی نه دې، لما فی الدرالمختار: لایشترط ذلك

(۱) (ردالمحتار ۴: ۵۲۴ مسائل شتی)

(معرفة قدر ووصف) في مشار اليه لنفي الجهالة بالاشارة (۱) فافهم.....او که دا استامپ پرچې حکومت سره محفوظ نه وي نو دوه ګواهان په ضروري دي (۲) وهوالموفق

## په دعوی کې بغیر د عذر نه تاخیر کول د سماعت نه مانع ده

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې که په یو معامله کې د دیرشو یا څلویښتو کالو پورې تاخیر وکړې شي نو زائد المیعاد کیدو سره شرعا دا دعوی قابل سماعت ده یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتي: محمد مرزا، واړی ضلع دیر.... ۲۷ مارچ ۱۹۸۵ء

**الجواب:** په دعوی کولو کې تاخیر بغیر د عذر نه د سماعت نه مانع دي شرح مجلة (۳)

---

۱) (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۴:۲۴ کتاب البيوع)

۲) وفي شرح المجلة: لا يعمل بالخط والختم فقط ولكن اذا كان سالما عن شبهة التزوير والتصنيع يكون معمولاً به يعني يكون مداراً للحكم لا يحتاج الثبوت بوجه آخر... الي أن قال بعد ورقة يعمل أيضا بسجلات المحاكم اذا كانت قد ضبطت سالمة عن الفساد... وان لم تكن كذلک لا يومن من وقوع تصنيع أو تزوير فلا يعمل بها حينئذ الا اذا شهد الشهود علي أن الحاكم حكم بمضمونها عند المرافعة بحضورهم.
(شرح المجلة ۳۸۷، ۳۸۴:۵ المادة ۱۷۳۸، ۱۷۳۶)

۳) وفي شرح المجلة: النوع الثالث السكوت بمعني ترک الدعوي مدة طويلة بغير عذر... وقد اختلف الفقهاء في تحديد هذه المدة فقيل هي ثلاث سنوات وهو قول مهجور لا ينفذ القضاء به... وقيل هي ثلاثون سنة وقيل ثلاث وثلاثون وقيل ست وثلاثون سنة ونقل في التنقيح عن جامع الفتاوي أن المتأخرين من أهل الفتوي قالوا لا تسمع بعد ست وثلاثين سنة الاأن يكون المدعي غائبا أو صبيا أو مجنونا وليس لهما ولي أو المدعي عليه اميراً جائراً يخاف منه. (شرح المجلة ۱۶۷، ۱۶۶:۵ الباب الثاني في حق مرور الزمان)

شامي (۱) وغيره.... وهوالموفق

## ظالم حاکم څوک دي

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ظالم حاکم څوک دي په دلائل شرعیه سره د دې وضاحت وفرمایئ؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد علي المهاجر، ابوظهبي.....٨٠٠٤١..... ٢٨ شعبان ١٤٠٢هـ

**الجواب:** ﴿ومن لم يحكم بما انزل الله فأولئك هم الظالمون﴾ (۲) وهوالموفق

## د غیر آباد ځمکې ترمینځه د ملکیتي ځمکې حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د زید د جائیداد سره متصل یو غیر آباد ځمکه ده کومه چې به دهغه پلار نیکهٔ به طور د چراګاه استعمالوله. مذکوره ځمکې ته نژدې د عمر نیکهٔ راتلو سره آباد شو، وروستو د نسل د ترقۍ په وجه باندې د عمر اولاد یو خوا بل خوا غیر آبادې ځمکې آبادولو سره په هغې باندې قبضه وکړه. تردې چې مذکوره ځمکې ته خواوشا ځمکې ئې هم آبادې کړې، صرف د زید جائیداد سره متصل ځمکه هغه خلقو آباده نه کړې شوه، اوس د زید د غریبۍ او بې وسۍ د وجې نه پورته ذکر شوی موصوف حضرات په دې ځمکه باندې هم قبضه کول غواړي او په دلیل کې وائي چې د متنازعه ځمکې درې واړو طرفونو ته زمونږ د حق د احاطې باوجود په مینځ کې ځای د زید حق کیدل عجیبه دی.

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: فانه لو طالت مدة دعواه بلا عذر ثلاثا وثلاثين سنة لا تسمع كما افتي به في الحامدية أخذا مما ذكره في البحر في كتاب الدعوي عن المبسوط اذا ترك الدعوي ثلاثا وثلاثين سنة ولم يكن مانعا من الدعوي ثم ادعي لا تسمع دعواه.
(ردالمحتار ٥:٣٨٢ مطلب اذا ترك الدعوي ثلاثا وثلاثين سنة لا تسمع)

۲) سورة المائدة آيت: ٤٥)

د شریعت په رڼا کې متنازعه ځمکه یقینا د زید حق دي یا که د عمر د اولاد دعوی صحیح ده حال دا چي دا خبره یقینا ثابت ده چې د زید نیکونه د دې علاقې اصل اوسیدونکی دی او د عمر نیکهٔ وروستو استوګنه اختیار کړې ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبید الله متعلم حقانیه......... یکم اپریل ۱۹۷۵

**الجواب:** په شرط د صدق او ثبوت په دا ځمکه د زید حق وی. الااذاثبت أنهاً موات فتكون لمن أحياها(۱) يدل على المراد مافي تنقيح الفتاوى ۱: ۱۲۱ ولاينزع شيئ من يد أحد الابحق ثابت معروف(۲). وهوالموفق

## په مملوکه او غیر مملوکه ځمکه کې د لګولې شوو اونو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د یو سړی مثلا زید ما سره جهګړه ده او جهګړه دا ده چې زما په قبضه کې څه ونې دی بعض ونې د پاکستان نه مخکې او بعض د پاکستان جوړیدو نه پس. اوس زید د دې اونو متعلق دعوی ظاهر کړې ده.

**د دعوی خلاصه:** دوه نالې (نهرونه) بالکل یوځای بهیږی یوه ناله خاص زموږ د جرندې ده او دویمه ناله د عام خلقو ده او د دې نالو ترمینځه او په غاړو باندې دا ونې دی او د دې اونو پرې کول او حفاظت زما د نیکهٔ د وخت نه ما پورې تړلې دې او د دې نالو دواړو طرفونو طرف ته سرکاری ځمکه ده، اوس د دې ځمکې کروندہ کونکې (زید) د کروندې د وجې نه د حفاظت او جوړولو د ذمه داری نه بغیر د دې اونو دعوی کوی ځمکه تر اوسه پورې د

---

(۱) وفي شرح الجملة: اذا أحيي شخص ارضا من الأراضي الموات بالاذن السلطاني صار مالكالها.
(شرح المجلة ۴: ۲۰۴ المادة ۱۲۷۲ الفصل الخامس في احياء الموات)

(۲) (تنقيح الفتاوى الحامدية ۱: ۱۲۱ كتاب الوقف)

ګورنمنټ (حکومت) په نوم پاندې ده. جناب عالي! دا دعوی صحیح ده یا نه؟ د پاکستان د جوړیدو نه مخکې د دې ځمکې مالک هندو وو او هندو زما نیکه ددې اونو د جوړولو نه منع نه کړو او دا وني قدرتی ځور پیدا شوي وې او مونږ په د پیداوار سره د هغې حفاظت هم کولو، لهذا تاسو د دې مسئلې جواب راولیږئ چې آیا دا وني زمونږ دی یا که د دې سرکاری زمیندار راړید؟ ټولې اوکه بعض؟ یا که د حکومت په اختیار کې دی ځکه چې ځمکه د حکومت ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی محمد شیر ګل، ټانک ډیره اسماعیل خان..... ۹ جولائی ۱۹۷۵ء

**الجواب**: واضحه دې وی چې که د دې اونو کرلو والا معلوم نه وی یا هغه ونې خودرو وی نو دا ونی به د ځمکې تابع وی یعنی د ځمکې د مالک مملوک به وی. (ماخوذ از رد المحتار ۱۱۰/٤) (۱) والهندیة ٤٥٥/٢ (۲) او که دا ځمکه په کومې چې ونې شوي دی د چا ملک نه وی نو تاسو د تصرف د

---

(۱) قال العلامة ابن عابدين: والشجر له ساق فلا تدخل فيه حتي يجوز بيعها اذانبتت في أرضه لكونها ملكه. (شامي ۱۲۳: ٤ قبيل مطلب صاحب البئر لا يملك الماء)

وفي شرح المجلة الاشجار النابتة بلا غرس في ملك احد هي ملكه ليس لآخر ان يحتطب الا باذنه. (شرح المجلة ۱۸۲: ٤ المادة ۱۲٤٤)

(۲) وفي الهندية: مقبرة عليها أشجار عظيمة فهذا علي وجهين اما ان كانت الأشجار نابتة قبل اتخاذ الأرض مقبرة أو نبتت بعد اتخاذ الأرض مقبرة ففي الوجه الأول المسألة علي قسمين اما ان كانت الأرض مملوكة لها مالك أو كانت مواتا لامالك لها واتخذ أهل القرية مقبرة ففي القسم الأول الأشجار بأصلها علي ملك رب الارض يصنع بالاشجار واصلها ماشاء وفي القسم الثاني الاشجار باصلها علي حالها القديم وفي الوجه الثاني المسألة علي قسمين اما ان علم لها غارس أو لم يعلم ففي القسم الأول كانت للغارس وفي القسم الثاني الحكم في ذلك الي القاضي ان رأي بيعها أو صرف ثمنها الي عمارة المقبرة فله ذلك. (فتاوي عالمگيرية ٤٧٤،٤٧٣: ٢ والمسائل التي تعود الي الاشجار في المقبرة)

وجې نه ذوالید یئ او دا مدعی خارج دی، پس اولاً دا دعوی زائد المیعاد ده، ناقابل سماعت ده.(١) او دې مدعی سره د علم بالتصرف تاخیر کړی دی، او ثانیاً په هغه باندې دا ضروری ده چې په شهادت سره ملکیت یا غرس ثابت کړی. (٢) وهوالموفق

## مملوکه، موات او سرکاری ځمکه کې د اونو د ملکیت مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی مثلاً زید سره زما دا جهګړه ده چې زما په قبضه کې څه ونې دی او زید په هغې اونو باندې دعوی کړې ده، د دعوې خلاصه دا ده چې دوه لختی متصل روان دی، یو لختې خاص زمونږ د جرندې دې، او دویم د عام خلقو دې او د دې نالو دواړو طرفونو ته سرکاری ځمکه ده، په هغې کې څه ونې دی اوس د دې سرکاری ځمکې زمیندار (چه زید دې) په دې اونو باندې دعوی کړې ده او د هغه اونو حفاظت ئې زما د نیکهٔ نه اخستلې دې کوم چې ته پورې مسلسل راروان دې او بعض ونې په هغې کې د هندوانو د زمانې دی، او د دې ځمکې هندو مالک زما نیکهٔ په دې اونو کې د تصرف کولو نه نهٔ وو منع کړې، خو دا ونې قدرتی طور د ځمکې پیدا کیږی او مونږ به په خپل پیداوار سره د دې حفاظت کولو، اوس د ځمکې زمیندار زید د کروندې په

---

(١) قال العلامة ابن عابدين : فانه لو طالت مدة دعواه بلا عذر ثلاثا وثلاثين سنة لا تسمع كما أفتي به في الحامدية أخذا مما ذكره في البحر في كتاب الدعوي عن المبسوط اذا ترک الدعوي ثلاثا وثلاثين سنة ولم يكن مانعا من الدعوي ثم ادعي لا تسمع دعواه (ردالمحتار ۵:۳۸۲ مطلب اذاترک الدعوي ثلاثا وثلاثين سنة لا تسمع)

(٢) وفي شرح المجلة : يلزم اثبات وضع اليد بالبينة في العقار المتنازع فيه... اعلم أن الحكم بالملكية في العقار لا يكون الا بعد اثبات وضع اليد بالبينة. (شرح المجلة ۵:۴۳۳ المادة ۱۷۵۴)

ذریعه په ما باندې د ټولو اونو دعوی کړې ده او زه د وجې د قبضې او حفاظت نه مدعی علیه یم. لهذا دا ونې زمونږ حق دې یا که دا د زید کرونده کونکی دی او که د حکومت ملکیت دې؟ بینواتوجروا

المستفتي: مولوی محمد شیر ګل. ټانګ ویره اسماعیل خان .... ۲۳ اپریل ۱۹۷۵ء

**الجواب:** دا ونې به د ځمکې تابع وی او که دا ځمکه مملوک وی نو د دې ځمکې مالکان به د دې اونو هم مالکان ګڼلې شی او که دا ځمکه موات وی نو قابض سره به برقرار ساتلې شی او که دا ځمکه سرکاری وی نو دا ونې به هم سرکاری ګڼلې شی. والاصل مسطورفی شرح الهدایة(١) **فقط وهوالموفق**

## د شرعی فیصلې نه د انکار کونکی حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام ددې مسئلې په باره کې چې یو سړې د شرعی فیصلې نه انکاری دې د داسې سړی دپاره شرعی حکم څه دې؟ بینواتوجروا

المستفتي: عمل دین. پیش امام قوم عباس خیل

موضع اسماعیل خیل نوښار ١١ مئی ۱۹۷۲ء

**الجواب:** دا سړې مومن نه دې (قال الله تعالی: فلا وربك لا یؤمنون حتی

---

(١) قال العلامة ابن الهمام : فان الأشجار والبناء اذا كان في عقار وقفه دخلت في الوقف تبعا ولو نبتت فيها بعد الوقف ان علم غارسها كانت للغارس وان لم يعلم فالرأي فيها للقاضي ان رأي بيعها وصرف ثمنها علي عمارة المقبرة فله ذلك وتكون في الحكم كأنها وقف ولوكانت قبل الوقف لكن الأرض موات ليس لها مالك فاتخذها اهل القرية مقبرة فالأشجار علي ما كانت عليه قبل جعلها مقبرة.

(فتح القدير شرح الهداية ٥:٤٤٩ كتاب الوقف، قبيل الفصل الأول في المتولي)

(ومثله في خلاصة الفتاوي ٤:٤١٩،٤٢٠ كتاب الوقف، الفصل الثالث في صحة الوقف)

یحکموك فی ما شجر بینهم الایة (۱) وفی الهندیة ۲۹۹/۲ قال بالفارسیة بامن بشرع اوقال خصمه پیاده بیارتا برپے جبرنروم یکفرلانه عاند الشرع الخ (۲) وهوالموفق

## په دعوی کښې د تناقض حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چې یو سړې په رڼا ورځ باندې قتل کړې شو، د مقتول وارثانو د دوه سړو سوال او سیدا جان په نوم باندې د قتل دعوی وکړه، تر یو کال پورې ئې د هغوی خلاف عدالت کښې مقدمه اوچلوله. بیا ئې هغوی سره په راضی نامه وکړه او د دې نه پس ئې هغوی دواړه پریښودل او معاف یې کړه او د هم هغه کلی په یو بل سړی بخت محمد باندې ئې د قتل دعوی وکړه

د شرعی قانون په رڼا کې د دې وارثانو د بخت محمد خلاف دعوی صحیح ده یا نه؟ او کله چې دا وارثان اقرار وکړی چې هغوی واقعی اول په سوال او سیدا جان باندې دعوی کړې وه او وروستو ئې هغوی پریښودل او د بخت محمد خلاف ئې دعوی وکړه، مهربانی وکړې ددې متعلق بادلیل فتوی لیکلو سره د شکریه ویلو موقع راکړئ. بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم

**الجواب:** چونکې مدعی متناقض ده لهذا د هغوی دعوی ناقابل التفات او مردود ده. وفی الخلاصة: وفی الفتاوی الصغری التناقض کما یمنع الدعوی لنفسه یمنع الدعوی لغیره (۲: ۲۵۶) (۳) وفی الهندیة ۶۳:۴: متی ثبت عند الحاکم تعارض القولین المتضادین المتناقضین من المدعی فی الدعوی یمنع استماع الدعوی کذا فی محیط السرخسی انتهی (۴) وهکذا فی غیر واحد من الفتاوی فقط. وهوالموفق

---

۱ ) (سورة النساء آیت: ۶۵)

۲ ) (فتاوی هندیة ۲: ۲۷۱ الباب التاسع فی أحکام المرتدین، ومنها ما یتعلق بالعلم والعلماء)

۳ ) (خلاصة الفتاوی ۴: ۹۰ کتاب الدعوی، الفصل الأول جنس آخر فی التناقض)

۴ ) (الفتاوی الهندیة ۴: ۶۳ کتاب الدعوی، الباب الثامن ... [بقیه برصفحه آئنده...

## د شپیتو کالو نه د تصرف لاندې ځمکه باندې د ګاڼې دعوی او په هغې باندې د غاصبانه قبضې قضاءً او دیانةً حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ۱: یوه ځمکه ده، کومه چې د زید د نیکهٔ نه د عمرو نیکهٔ ته منتقل شوې ده، او د هغه د طرف نه د زید نیکه ته څه پیسې وصول کیدل هم معلوم دی. چې د هغې زید خپله هم اقرار کوی او هم دا ځمکه د عمر د نیکهٔ پورې شپیته اویا کاله د تصرف لاندې پاتې شوې ده هم په دې زمانه کې نه خو د زید پلار او نه د هغه ترهٔ د ګاڼې دعوی کړې ده او نه زید د دیرشو کالو پورې د دې ګاڼې دعوی دائر کړې ده. اوس دومره موده پس زید د ګاڼې دعوی وکړه. آیا د دې ځمکې په باره کې د ګاڼې دعوی کول د شریعت په نزد مسموع ده؟

۲: که بغیر د ثبوت او اثبات نه زید په دې ځمکه باندې قبضه وکړه نو آیا دا قبضه به د شریعت په نزد ظلم او غصب وی او که نه؟ مهربانی وکړئ دا مسئله په شرعي دلائلو او فقهي جزئیاتو سره واضحه کړئ، او د دار العلوم په مهر سره ښکلي کولو باندې هم د شکریه موقع راکړئ! بینوا توجروا

المستفتی: میاں ضیاء الدین، دار العلوم اشاعت التوحید والسنة

کریم پوره پیښور ښهر. ۲۳ ربیع الثانی ۱۳۹۰ھ

**الجواب:** ۱: د زید د ګاڼې کولو دعوی (ملکیت) حکم پ بادشاه سره منظور ده، خو قاضي او حاکم سره نامنظور ده في الدر المختار: ویتخصص (القضاء) بزمان ومکان وخصومة حتى لو أمر السلطان بعدم سماع الدعوى بعد خمسة عشر سنة فسمعها لم ینفذ(۱) (وفي رد المحتار ۵: ۴۴۹) وفي الحامدية عن

---

...بقیه از حاشیه گذشته] فیما یقع به التناقض الخ)

وفي شرح الوقاية: اعلم ان التناقض انما یمنع صحة الدعوي اذا كان الكلام الأول قد ثبت لشخص معین حقا.

(شرح الوقاية ۳:۱۴۴ مسائل شتی)

۱) (الدر المختار علي هامش رد المحتار ۴:۳۸۰ كتاب القضاء)

الولوالجية رجل تصرف زمانا فى أرض ورجل آخر يرى الأرض والتصرف ولم يدع ومات على ذلك لم تسمع بعد ذلك دعوى ولده فتترك على يد المتصرف انتهى(۱) وفى ردالمحتار ۴ :۳۴۳ : الثانى أن النهى حيث كان للقاضى لا ينافى سماعها من المحكم (۲) وفى الاشباه ان الحق لا يسقط بتقادم الزمان ويجب عليه (السلطان) سماعها(۳).

۲ : قضاء ظلم او غصب دي خو فيما بينه وبين الله د ظلم او غير ظلم دواړو احتمال لرى. وهوالموفق

## د قاضى د خپل مذهب خلاف فيصله کول

**سوال:** څه فرمائى علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د مدعى او مدعى عليه ترمينځه يو قاضى شرعى فيصله وکړه. بيا يو جيد عالم او معتمد مفتى د هغه شرعى فيصلې د غلط کيدو فتوى ورکړه. اوس نور علماء دين اوهغه قاضى په خپله هغه فتوې ته صحيح وائى د هغې باوجود د خپلې شرعى فيصلې غلط کيدل نه منى او د هغې دليل دا وايي چې په فيصله کې به اول د قاضى اعتبار وى آيا د شريعت مصطفوى ﷺ په رڼا کې د هغه د قضاء اعتبار کيدلې شى، حال دا چې مفتى صاحب په واضح الفاظو کې د هغه فيصلې ته غلط ويلې دى؟ بينواتوجروا

المستفتى :........نامعلوم

**الجواب:** چونکې دا قول په کوم باندې چې قاضى اعتماد کړې دې نه قول صحيح دې او نه قول ضعيف، بلکې دا د يو امام مسلک نه دې. لهذا دا به قضاءً نا منظور وى لما فى الدرالمختار، قضى من ليس مجتهدًا كحنفية

---

۱) (ردالمحتار ۴ ۵:۵۲۴ مسائل شتى)

۲) (ردالمحتار ۴:۳۸۱ قبيل مطلب اذا ترک الدعوى ثلاثا وثلاثين سنة لا تسمع)

۳) (الأشباه والنظائر ۲۲۲ كتاب القضاء)

زمانناً بخلاف مذهبه عامدًا لا ينفذ اتفاقًا وكذا ناسياً عندهما ولو قيده السلطان بصحيح مذهبه كزماننا تقيد بلا خلاف لكونه معزولا عنه، (وفي ردالمحتار ۴:۳۳۵) والفتویٰ علی قولهما الخ(۱). فقط وهوالموفق

## د شاه جم خان او قوم ملک دیناني ترمینځهٔ د ځمکې فیصله

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې يو دعوی د قوم ملک دينائی ده، قوم ملک دينائی په تنگی کې پيړۍ په پيړۍ آباد راروان دی چې د هغې تفصيل دا دې: ۱: زمونږ نيکهٔ مون خيل ملک دينائی،

۲: عظمت بن مون خيل، ۳: خلوت بن عظمت، ۴: شهاب الدين بن بهوت،

۵: کليم گل بن شهاب، ۲: نصر الله بن قاسم گل.

د موسی مون خيل ملک دينائی وراثت پيړۍ په پيړۍ راتلو سره نصر الله ته سپارلې شوې دې، اوس موجوده آبادی د نصر الله د دور پورې په څلويښتو کورونو باندې مشتمل ده د ملکيت حدود لاندې ليکلې شی:

۱: مشرق طرف ته زمونږ حدود د مداد خيل او سينې اتمزائی د حدود سره ملاويږي. ۲: دمغرب طرف ته زمونږ حدود د مسته خيل حدودو سره ملاويږي.

۳: د شمال طرف ته د قوم مداد خيل سره يوځای کيږي.

۴: په شمال مشرق کې زمونږ حدود کوکټ خيل او دانی خيل شمکئ د حدود سره ملاويږي، د دې حدود ترمينځه ملکيت زمونږ دې، گاجی خيلو د آخری خلقو مخکې ابرا کړې ده.

ميراحد عمرون، د عمر ولد مير، د مير ولد عياشاه، د عياشاه ولد زار خان،

---

(۱) (ردالمحتار مع الدرالمختار ۵:۳۷۲ مطلب حكم الحنفي بمذهب أبي يوسف أو محمد حكم بمذهبه)

وقال العلامة المرغيناني: لو قضى في المجتهد فيه مخالفا لرأيه ناسيا لمذهبه نفذ عند أبي حنيفة وان كان عامدا ففيه روايتان... وعندهما لا ينفذ في الوجهين... وعليه الفتوى. (هداية ۳:۱۴۲ كتاب أدب القاضي)

آیا د هغې نه پس باقي ورونو ته په دې ملکیت کې د حصه دارئ حق ملاویدې شي، (حال دا چې پلار د هغه په نوم باندې په خپل ژوند کې د:هبې دپاره تصدیق کړې وو) یا نه شي ملاویدې، شرعي فیصله څهٔ ده؟ بینواتوجروا

المستفتي: محمد نواز ډاک، بانډه کرک. یکم ذي قعده۱٤۰۱ھ

**الجواب:** په صورت مسئوله کې به دا وروکې ځوئې په قسم یا شهادت سره په تملیک باندې فائز وي، که د دې مدعیانو سره د میراث شهادت موجود نه وي نو بناء په حدیث باندې. البینة علی المدعی والیمین علی من انکر (۱) وبناء علی ان بینة الدفع معتبرة من المدعی علیه.....دا دافع (وروکې ځوئې) دې اولا په هبه او تملیک باندې شهادت قائم کړي، که شهادت نه وي نو دې مدعیانو ته دې قسم ورکړي که دا مدعیین قسم وکړي نو د هغې نه پس دې دا مدعیین شهادت علی الارث قائم کړي او که شهادت په ارث نه وي نو دې مدعی ته دې قسم ورکړې شي. (شرح المجلة. ۹۳۱. م ۱۶۳۲) (۲) فلیراجع. وهوالموفق

## د مصالح عامه د وجې نه د تقادم زمان نه پس به دعوی مسموع نه وي

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د فقه په کتابونو کې لیکلې شوې دي چې د زمانې تیریدل د دعوی د سماع نه مانع دي حال دا چې بل سړې په ځمکه کې د لږې مودې نه تصرف کوي، او په خزانة المفتین کې د اقوال فقهاء مخالف جزئیة راغلې ده او هغه دا ده:

المدعی اذا ترک دعواه یترک ولا یجبر علیه ولم تسقط بالتاخیروان مضت مدة

(۱) (سنن الترمذي ۱۶۰، أبواب الاحکام، باب ماجاء في أن البینة علي المدعي الخ)

(۲) وفي شرح المجلة: اذاا ثبت من ادعي دفع الدعوي دفعه تندفع دعوي المدعي والا یحلف المدعي الأصلي بطلب صاحب الدفع فان نکل المدعي عن الیمین ثبت دفع المدعي علیه وان حلف تعود دعواه الأصلیة.

(شرح المجلة ٥:٧٥ المادة: ۱۶۳۲)

مديدة وان مات المدعى ينتقل الى الورثة وان سفل وماذهب بعض الناس أنه قال ومن له حق فى الدار فلم يخاصم صاحب الحق سنين وهو فى المصر فى تلك المدة بطل حقه لأن هذا القول ليس فى الأرض فلا ينفذ فيه قضاء القاضى لأنه خالف الكتاب لأنّ الميراث حق ثابت بالنص للوارث فلا ينتقل ولا يصير ملكا لغيره الا بتمليكه كذا فى جامع الرموز وبه يفتى. خزانة المفتين ۲۳۳. بينوا توجروا

المستفتی: مولوی زلفی خان ... ۲۷ اگست ۱۹۸۶ء

**الجواب:** أرباب التحقيق من أهل الافتاء والقضاء ذهبوا الى أن حق المدعى لا يسقط بتقادم الزمان ومروره كما صرح به الشامى (۱) وابن نجيم (۲) لكن لا يسمع دعواه ببعض المصالح العامة وقالوا يتحمل الضرر الخاص لدفع الضرر العام من فتح باب الحيل والتزوير (۳) فافهم. وهوالموفق

## د وعدې دعوٰی ناقابل سماعت او د بیع وغا دعوٰی قابل سماعت ده

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زما د ځمکې سره نژدې لګیدلې دوه نیم کناله ځمکه خرڅیدله، هغه وخت زه موجود نه اوم، نو زما مهربان وروړ زما د طرفه وکیل جوړیدو سره زما دپاره هغه ځمکه واخستله چې د هغې په سرکاری کاغذاتو کې انتقال شوې دې، زما وروړ ماته صرف دا وویل چې ستا دپاره ما ځمکه اخستلې ده او انتقال ئې هم شوې دې، د دې الفاظو نه علاوه ئې نور هیڅ هم او نه ویل، د دې نه پس

---

۱) في ردالمحتار: ان الحق لا يسقط بتقادم الزمان.
(ردالمحتار ۴: ۳۸۱ مطلب هل يبقي النهي بعد موت السلطان)

۲) (و مثله في الأشباه والنظائر ۲۲۲)

۳) وفي شرح المجلة: يتحمل الضرر الخاص لدفع الضرر العام... وهذه قاعدة مهمة من قواعد الشرع مبنية علي المقاصد الشرعية في مصالح العباد.
(شرح المجلة ۱: ۶۶ المادة: ۲۶)

زما ورور تقریبا اته لس کاله ژوندې وو، اوس زما د ورور د وفات پنځه کاله شوې دی، اوس د ځمکې مالک په ما باندې دعوی کړې ده چې ستا ورور ماسره دا اقرار کړې وو کله چې تاته توفیق ملاؤ شی او دا پیسې ماته واپس کړې نو مونږ به تاته ځمکه واپس کړو، لهذا اوس مونږ پیسې در واپس کوو او تاسو ځمکه واپس کړئ.
اول خو مدعی ته ګواهان نه ملاویدل، خو اوس په څه طریقه باندې هغه ته ګواهان هم ملاؤ شوې دی که رشتینې وی یا دروغژن، اوس مسئله حل طلب دا ده چې آیا د ورور اقرار په ما باندې لازم دې یا نه؟ حال دا چې ماته د دې اقرار هیڅ علم نشته.؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولانا احمد سعید، ټانک دی آئی خان..... ۵ جمادی الثانی ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** که دا سړې صرف د وعدې کولو مدعی وی نو د وعدې کولو دعوی ناقابل سماعت ده، وعده د قاضی د قضاء د لاندې نه داخلیږی، (شرح المجلة ۵۶) (۱) او که د بیع وفا مدعی وی، نو د هغه ګواهان منظور دی. (شرح المجلة ۱۱۳۳) (۲) والله‌اعلم

## د ځوی دپلار د وفات نه پس د غیر مقبوض هبه دعوی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې عبدالرحمن په خپلو دوه ځامنو عبدالرحیم او محمد امین کې خپل جائیداد په ۱۹۵۲ء کې تقسیم کړې وو، څه موده پس یو ځوی (فضل الرحیم) وفات شو نو عبدالرحیم واپس په ذکر شوې جائیداد باندې قبضه وکړه، دوه کاله پس عبدالرحیم هم هغه جائیداد د فضل الرحیم ځوی عبدالرزاق او محمد امین ترمینځه په

---

(۱) وفي شرح المجلة: المواعيد اذا اكتست بصور التعاليق تكون لازمة... اعلم أن الوعد المجرد لا يلزم الوفاء به شرعاً. (شرح المجلة ۵۶ المادة: ۸۴)

(۲) وفي شرح المجلة: ترجيح بينة البيع علي بينة الهبة والرهن والاجارة... لو اختلفا في البيع البات والوفاء فبينة مدعي الوفاء أولي.
(شرح المجلة ۱۱۳۳:۵ المادة: ۱۷۶۴)

۱۹۲۱ء کې دوباره تقسیمولو نه پس سره د قبضې نه حواله کړو، څونې محمد امین ئې د ۱۹۲۱ء په اقرار نامه کې مقر او بیانی دې چې کوم تقسیم زمونږ پلار زما او زما د ورور دپاره کړې دې، د بیا دپاره زمونږ خپل مینځ کې دعوی پاتې نه شوه، اوس محمد امین په عبدالرزاق باندې د پاؤ باندې دوه ګزه ځمکې دعوی کوی چې د فضل الرحیم د خوی په حصه کور کې زما پلار عبدالرحیم پاؤ باندې دوه ګزه لار مقرر کړې وه، حال دا چې:

۱: چې محمد امین په فضل الرحیم باندې د ۱۹۵۶ء د تقسیم نه پس دعوی نه وه کړې ۲: په ۱۹۲۱ء کې د دوباره تقسیم په وخت محمد امین مې پلار عبدالرحیم ته نه وو ویلی ۳: په دوباره تقسیم کې عبدالرحیم د عبدالرزاق د کور په حصه کې د محمد امین دپاره د لارې استثنا، نه وه کړې

۴: د محمد امین سره داسې هیڅ شهادت نشته چې هغه د ۱۹۵۲ء د اول تقسیم کوم چې د فضل الرحیم او محمد امین خپل مینځ کې شوې وو، په یو خاص معین ځای باندې ګواهی ورکړې نو اوس به د محمد امین دا دعوی د شریعت په رڼا کښې څنګه حل کیږی چې د نوی سر نه نۀ محمد امین سره قبضه شته او نه په معین او مقرر ځای باندې مستقل شهادت پیش کولې شی، او نه د ۱۹۲۱ء په دویم تقسیم کې د هغه دپاره پاؤباندې دوه ګزه لاره مقرر شوې ده. ۵: محمد امین چې د کوم کور دپاره د پاؤ باندې دوه ګزه لارې دعوی کوی هغه کور هغه په بیع قطعی سره خرڅ کړې دې، اوس د هغه ملکیت هم نه دې. بینواتوجروا

المستفتی: عبدالرزاق، امام مل خیل اله ډهنډ ډهیری ملاکنډ ایجنسی. ۱۲ ربیع الاول ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** ومنه الصدق والصواب: د پلار په اولاد باندې تقسیمول په حقیقت کې هبې وی، او د هبې پوره کیدل په قبض باندې موقوف وی پس کله چې پلار (عبدالرحیم) دې خوی (محمد امین) ته د پاؤ باندې دوه ګزه ځمکې قبضه نه وه ورکړې نو دې شرعی مالک نه شو، او د هغه دعوی غلطه او

ناقابل سماعت ده، يدل عليه مافي التكملة ۲:۳۹۲:منهاأن يكون الموهوب مقبوضا حتى لا يثبت الملك للموهوب له قبل القبض وأن يكون الموهوب مقسوما الخ(۱). والله أعلم

## د مصالحت او ابرا نه پس دعوی کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام ددې مسئلې په باره کې چې زيد د بکر نه ځمکه واخستله چې دهغې انتقال په محکمه مال کې وکړې شو،دوه مياشتې پس عمر هم د بکر نه په باقی ځمکه کې څه حصه ځمکه واخستله چې دهغې انتقال هم وکړې شو اوبکرفوت شو، په زيدباندې چې کومه ځمکه بکر خرڅه کړې وه هغه د يو دريم سړی سره ګانه وه، کله چې بکر وفات شو، نو عمر مرهونه ځمکه واپس کولو سره قبضه حاصل کړه، زيد هغه ته ووېل چې دا ځمکه زما ده، دا ما اخستلې ده، عمر دا خبره رد کړه او وې نه منله، په دې باندې د زيد او عمر ترمينځه مقدمه شروع شوه او عدالت د زيد په حق کې فيصله وکړه، بيا عمر په عدالت کې صلح نامه وليکله چې د دې ځمکې قبضه ما زيد ته حواله کړه وروستو هيڅ جهګړه پاتې نه شوه، د څو ورځې تيريدلو نه پس عمر د قبضې پريښودلو نه انکار وکړو، آيا د شريعت په رڼا کې عمر بيا د دې ځمکې دعويدار کيدې شی يا نه؟ بينواتوجروا

المستفتی: محمد ايوب، سکنه جبر مانسهره ..... ۲۱ ربيع الثانی ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** ومنه الصدق والصواب: د مصالحت او د ابراء د دعوې حق ساقط کړی، لمافي شرح المجلة ۸۴۵ اذا تم الصلح فليس لواحد فقط من الفريقين

---

(۱) (تکملة ردالمحتار ۲:۳۲۸ کتاب الهبة)

وفي الهندية: ومنهاأن يكون الموهوب مقبوضا حتي لا يثبت الملک للموهوب له قبل القبض وأن يكون الموهوب مقسوما اذا كان مما يحتمل القسمة.

(فتاوي عالمگيرية ۴:۳۷۴ كتاب الهبة، الباب الأول في تفسير الهبة وركنها وشرائطها)

الرجوع عنه(۱)... وفیه ۸۴۷ اذا قال واحد لیس مع فلان دعوی أو نزاع... فیکون قد أبرأه... واذا أبرأه واحد آخر من حق سقط ذلك الحق ولا یبقی له أن یدعی به(۲). وهو الموفق

## په مړی باندې دعوی کې د فیصلې په وخت د یو وارث موجودیدل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د یو پلار څلور ځامن دی، د هغوی په ځمکه باندې اختلاف واقع شوې دې، یو د هغوی نه قاضی سره حاضر وو او باقی درې د فیصلې په وخت موجود نه وو او نه ئې هغه ته اختیار نامه ورکړې وه، آیا د وړوکی ورور په حاضریدلو باندې د باقی دریو حق (د ځمکې حصه) ضائع کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: میاں گل جان..... سکنه دیر..... ۲۹ اپریل ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** په ظاهره کې دا فیصله صحیح ده هرکله چې دعوی دغصب د هغوی په والد صاحب باندې شوې وی، لما فی شرح المجلة ۹۴۷: یصح أن یکون أحد الورثة خصمًا فی الدعوی التی تقام علی المیت أو له(۳). وهو الموفق

## د غیر قابض (د خارجین) په یو بل باندې دعوی کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په یو ځای کې د زید او عمر اختلاف دې او په هغوی دواړو کې هر یو هغه د خپل پلار ملکیت او په هغې باندې د خرچ کولو دعویدار دې، او بل طرف ته بکر په هغه متنازعه فیه ځای باندې تقریبا د شپاړسو کالو نه قابض دې، بلکه دا چې

---

۱) (شرح المجلة ۵۶۹:۴، المادة ۱۵۵۶ الباب الرابع في بیان أحکام الصلح والابراء)

۲) (شرح المجلة ۵۷۵:۴، المادة ۱۵۶۱ الفصل الثاني في بیان المسائل المتعلقة بأحکام الابراء)

۳) (شرح المجلة ۱۰۶:۵ المادة ۱۶۴۲)

وقال العلامة ابن عابدین: (قوله وکذا بعض الورثة) أي یقوم مقام جمیعهم فیما للمیت أو علیه. (ردالمحتار ۴۴۴:۳ مطلب فیمن ینتصب خصما عن غیره)

د هغوی دوارو په شان هغه هم د خپل پلار د ملکيت او په هغې باندې د خرج کولو دعوی لری، نو آيا د بکر نه د تپوس کولو نه بغير زيد او عمر په دې ځای باندې فيصله کولې شی. يا د دريم په دعوی باندې هغه د هغوی نه د تپوس کولو نه بغير په شريعت کې فيصله کولې شی؟ بينواتوجروا

المستفتی: سلطان محمد وزيرستانی..... ٢ ذی القعده ١٤٠٢ھ

**الجواب:** چونکې خصم ذواليد وی نه غير ذواليد، کمافی شرح المجلة ٩٣٨: الخصم فی دعوی العين هوذواليد فقط (١) پس د دې دوارو خارجين په يو بل باندې دعوی کول بې قاعدې امر دې. والله تعالی اعلم

## صرف په قبضه او تصرف سره يو سړی د بل د ځمکې مالک نه شی جوړيدې.

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې يوه حصه د ځمکې په حکومت کې د مدعيان حاجی نصر الله، شير احمد او غلام محمد په نوم باندې ليکلې شوې ده، ماليه وغيره هم مدعيان مذکور حکومت ته ورکوی خو په دې ځمکه باندې قبضه د مدعی عليهم شيرعلی خان او حاجی عبدالله ده، اوس کله چې مدعيانو ته پته ولګيده چې زمونږ په ځمکه باندې هغوی قبضه کړې ده نو هغوی په مدعی عليهم باندې د ځمکې قبضه ختمولو سره د هغې د حواله کولو مطالبه وکړه نو هغوی په جواب کې ووېل چې په دې ځمکه باندې د کافی مودې نه زمونږ قبضه راروانه ده د دې قبضې د وجې نه دا ځمکه ستاسو د ملکيت نه خارج شوې ده او اوس د قبضې د وجې نه زما شوې ده، مدعيان وائی چې مونږ ته علم نه وو کنه نو مونږ به تاسو قبضې کولو ته نه وئ پرېښودلې، اوس د پوښتنې خبره دا ده چې آيا په قبضې سره څوک د بل د ځمکې مالک کيدې شی؟ که کيدې شی نو د هغه

---

١ (شرح المجلة ٥:٨٩ المادة ١٦٣٥)

وقال العلامة المرغيناني: وذكر أنه في يد المدعي عليه لابد منه لأنه انما ينتصب خصماً اذا كان في يده. (الهداية ٣:٢٠٢ كتاب الدعوى)

دپاره څه موده معین ده یا نه؟ د اصل مالک عدم علم د هغه په مالک کیدو باندې اثر انداز کیدې شی یا نه؟ او آیا په بعض ځمکه باندې قبضه کولو سره د ټولې ځمکې مالک کیدې شی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: ابراهیم شاه ویروی ...... ۱۶ مئی ۱۹۷۲ء

**الجواب:** واضحه دې وی چې څومره مقدار په ځمکه کې مدعی علیه تصرف کړې دې نو په هغه مقدار باندې د مدعی دعوی د حاکم سره ناقابل سماعت ده، وفی الخلاصة: رجل تصرف فی أرض زمانا ورجل آخر یری تصرفه فیها ثم مات المتصرف ولم یدع الرجل حال حیاته لا تسمع دعواه بعد وفاته، (تنقیح الحامدیة ۲:۳ وفیه بعد أسطر والظاهر أن الموت لیس بقید وأنه لا تقدیر بمدة مع الاطلاع علی التصرف لما ذکره فی تنویر الأبصار وشرحه الدر المختار فی مسائل شتی الخ وفیه أیضاً ۲:۴ ثم اعلم أن عدم سماع الدعوی بعد مضی ثلثین سنة أو بعد الاطلاع علی التصرف لیس مبنیا علی بطلان الحق فی ذلك وانما هو مجرد منع للقضاة عن سماع الدعوی مع بقاء الحق لصاحبه حتی لو أقر به الخصم یلزمه الخ(۱)

البته د محکم او ثالث په نزد قابل سماعت ده. وفی رد المحتار: الثانی ان النهی حیث کان للقاضی لا ینافی سماعها من المحکم. (۳۴۲/۴) (۲)

اوس که مدعی علیه دا اعتراف وکړو چې دا ځمکه د مدعی ملک دې خو د قبضې او تصرف د وجې نه زه دهغې مالک شوې یم نو د دې اعتراف په وخت به د مدعی دعوی قابل سماعت وی، کما تدل علیه العبارة الثالثة وصرح به فی رد المحتار ۳۴۳/۴ (۳) او د دې عبارت نه دا هم معلومیږی چې

---

۱) (تنقیح الفتاوی الحامدیة ۴،۳:۲ کتاب الدعوی)

۲) (ردالمحتار ۳۸۱:۴ مطلب هل یبقی النهی بعد موت السلطان)

۳) وفی ردالمحتار: الثالث عدم سماع القاضی لها انما هو عند انکار الخصم فلواعترف تسمع (ردالمحتار ۳۸۱:۴ مطلب هل یبقی النهی بعد موت السلطان)

مدعی علیه په تصرف او قبضې سره مالک نه جوړیږي او په آخرت کې به په دې باندې ماخوذ وي. فی رد المحتار ۶٤٩/۵ فلاتسمع الدعوی فی هذه المسائل مع بقاء الحق للآخرة ولذا الواقربه الخصم یلزمه(١) او دا دې هم واضحه وي چې تاخیر بغیر د عذر نه د سماعت نه مانع دې خو فقهاء کرامو عدم علم په عذر کې نه دې شمار کړې، فلیراجع الی ردالمحتار ٤/٣٤٣، ٣٤٤ (٢) وهوالموفق

## د حکومت په ورکړې شوې ځنګل کې د شرکت دعوی

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو کلې د بیوړی بالا په نوم باندې مشهور دې په هغې کې یو لوئې ځنګل دې حکومت دا فیصله کړې ده چې د ځنګل په آمدنۍ کې به شپیتۀ فیصده د قوم وي او باقي څلویښت فیصده به د حکومت وي، په ذکر شوې کلی کې د ځنګل مارکنګ شوې دې نو د پیسو په باره کې د درې کلو والا د استحقاق دعوی کوی صورت حال دا دې چې د هغوی ترمینځه ځمکه او علاقه تردې چې ځنګل هم منقسم دې ددې مدعیانو د مدعی علیهم په حصه کې څه اشتراک هم نشته او هغه ځنګل په کوم کې چې مارکنګ (په اونو باندې نخښې) شوې دی هلته د بیوړی بالا ځمکې واقع دی بعض حصه د هغه ځنګل د نهر نه لاندې ده او بعض حصه ئې په نهر دپاسه ده او هغه هم تقسیم شوې ده او د بیوړی بالا والو حصه ده څنګه چې د ځمکو حدود متعین دی دغه شان د ځنګل هم حدود متعین دی انګریزانو هم په علاقائی تقسیم کې دا متنازع فیه علاقې نه د بیوړی والو حصه ویلې ده تر اوسه پورې د ځنګل د حفاظت په سلسله کې هم هغوی نه ذمه دار ویلې شوې دی او په ځنګل کې د نقصان راتلو په صورت کې د هغوی نه حکومت جرمانه وصول کړې ده یا ئې معاف کړې ده

---

١) (ردالمحتار ۵:۵۲۴ مسائل شتّي)

٢) قال العلامة ابن عابدین : لا تسمع الدعوي بعد ست وثلاثین سنة الاآن یکون المدعي غائبا أو صبیا أو مجنونا ولیس لهما ولي أو المدعي علیه امیراً جائراً اه.
(ردالمحتار ۴:۳۸۲ مطلب اذا ترک الدعوي ثلاثا وثلاثین سنة الخ)

او د نامعلوم قتل په صورت کې ئې هم د هغوی نه دیت وصول کړې دې چې دا قتل ستاسو په حصه کې شوې دې، سره ددې کله چې د رقم د حصول دپاره باقی دري کلو والا مدعیان جوړ شو چې په دې ځنګل کې زمونږ حصه ده دغه شان قانون دیر، کوهستان، سوات او هزاره کې هم رائج دې چې کوم ځنګل کومې علاقې ته نزدې وی نو د رائلټی پیسې هم د هغې په خلقو باندې تقسیم کړې شی. نو بیوړی والا د نورو دعوی منلو ته بالکل تیار نه دی بلکې د اشتراک په صورت کې د قتل او قتال خطره ده. لهذا تاسو ته درخواست کولې شی چې په دې باره کې فتوی ورکولو سره د شکریه موقع راکړئ چې دفتنې او فساد نه محفوظ شو بینواتوجروا

المستفتی: عبدالله...... دار العلوم سرحد

**الجواب:** که دا شرکت د مدعی علیهم په نزد منلې شوې نه وی او نه باقاعده په شهادت سره ثابت شوې وی نو چونکې عرف د مدعی علیهم دپاره موئد دې لهذا قول به د هغوی معتبر وی او قسم به په هغوی باندې وی. لان الاعتبار لقول من یشهد له الظاهر کما صرحوا به(۱) وهوالموفق

## د اوبو پخوانئ لارې بندول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د زید د شاړې ځمکې نه د اوبو چینه راوځی او د هغه ځای نه اوبه لاندې راځی لاندې په څه فاصله باندې عمر نومې سړی په دې اوبو باندې نهر تړلې دې او د پیرو نه ئې په دې اوبو باندې هم دا ځمکه خړوب کوله او زید هم په اوبو کې دا تصرف لیدلو او هیڅ قسم مداخلت ئې نه کولو، اوس زید د عمر په اوبو کې د تصرف حق منع کوی او وائی چې دا اوبه زما په ځمکه کې راوځی، زه ئې نه پریږدم، او عمر وائی چې د دومره مودې پورې تاسو خاموش ولې وې، لهذا درخواست دې چې د دې اوبو منع کول څنګه دی؟

---

۱) وفي شرح المجلة: البينة لاثبات خلاف الظاهر واليمين لابقاء الأصل... ثم انه يؤخذ من هذه القاعدة أن كل من يتمسک بالظاهر القول قوله بيمينه.
(شرح المجلة ۲۱۹،۲۱۸: ۱ المادة ۷۷)

په دې صورت کې به د زيد دعوی ثابت وي يا نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: قاري عبدالوحيد خطيب، جي ايچ کيو (G.H.Q) پنډۍ. ۱۹ رجب ۱۴۰۱هـ

**الجواب:** د عاريت يا غصب د باقاعده ثبوت نه بغير به عمر د تصرف نه نهٔ شي منع کولې، لان الاصل بقاء ما کان علی ما کان ..... (شرح المجلة ۲۰/۵) (۱) وهوالموفق

## د پرمټ د جعلي کيدو د دعوی طريق فيصله

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې دوه ډلې، چې په هغې کې د يوې نوم سهراب وو او د بلې نوم حاجي عازل، حاجي عازل په مسمی سهراب باندې دا دعوی کړې ده چې د هغې خلاصه دا ده :

**حاجي عازل:** ما د سهراب نه د پنځه اويا زرو پرمټ (ديرويشت زره ريال) د فی نفر په حساب سره واخستلو، چې د هغې په بدله کې ما سهراب ته (اووهٔ اتيا زره ريال) نقد ورکړل او سهراب ماته پرمټ راکړو، ما پنځه اويا کسان پنډۍ ته ورسول چې هغوی ابوظهبي ته د هوائي جهاز په ذريعه باندې ورسوم، خو پرمټ صحيح نه وو په دې وجه زما هغه پنځه اويا کسانو ته د تلو اجازت ملاؤ نه شو او په هغوی باندې زما يو لاک روپۍ د خپل جيب نه خرچ شوې د پرمټ ماته اصلي کاپي ملاؤ نه شوه بلکې فوټو سټيټ وو. په دې وجه پنځه اويا کسان پاتې شو، او تقريبا يو لاک روپۍ خرچه وشوه، او زه د سهراب نه اووهٔ اتيا زره رياله او تقريبا يو لاک روپۍ د شريعت رڼا کې غواړم.

مدعی عليه سهراب : حاجي عازل باندې ما پرمټ خرڅ کړې دې او اووهٔ اتيا زره ريال مې وصول کړې دی، خو پرمټ صحيح وو، ځکه چې هغه پرمټ حاجي عازل ډيرو خلقو ته ښودلې دې او حکومت هم د هغې تصديق کړې وو، ددې نه علاوه پنځويشت بنګاليان په دې پرمټ باندې ابو ظهبي ته رسيدلې دی، او د دې نه علاوه د پرمټ د صحيح کيدو ما سره دوه ګواهان

---

۱ ﴾ وفي شرح المجلة : الأصل بقاء ما كان على ما كان يعني ان الذي ثبت على حال في الزمان الماضي ثبوتا أو نفيا يبقى على حاله ولا يتغير مالم يوجد دليل يغيره. (شرح المجلة ۱:۲۰ المادة۵)

حاجی عمر دره آدم خیل قوم ثانی خیل او دویم گواه دلاور حسین علی زئی قوم احمد خیل دې، ما حاجی عازل ته صحیح پرمټ ورکړې دې په دې وجه باندې د اووۀ اتیا زره ریال نه علاوه د پرمټ باقی پاتې پیسې هم تر اوسه پورې هغه نه دی ادا کړې، کومې چې تقریبا دوه لاکه روپئ پاکستانئ جوړیږی حال دا چې هغوی په پنډئ کې د ادا کولو وعده کړې وه او دا ئې هم ویلې وو چې که په پنډئ کې ئې درنکړم نو مهران هوټل پیښور ته به ئې د فلانی سړی په نوم باندې پنځه ورځې پس در ولیږم، د وعدې د خلاف ورزئ د وجې نه دې هغه ماته نورې دوه لاکه روپئ راکړی، سهراب حاجی عازل ته د یو لاک خرچ متعلق داسې وائی چې ما د یو لاک هیڅ وعده نه وه کړې.

حاجی عازل ته د مدعی علیه سهراب په ګواهانو باندې اعتراض دې چې دا دواړه په کاروبار کې د سهراب سره شریک دی او په پنډئ کې ما دوه لاکه روپئ نه دی تسلیم کړې، شرعی حکم بیان کړئ. بینواتوجروا

**المستفتی**: مولوی محمد شریف صاحب، ټل ضلع کوهاټ..... ۲۵ جمادی الاول ۱۴۰۱ھ

**الجواب**: په صورت مسئوله کې طریقه فیصله دا ده چې ۱: دا مدعی حاجی عازل دې په شهادت شرعیه سره ثابته کړی چې دا عیب د بائع سهراب سره موجود وو. ۲: که شهادت نه وی نو سهراب به قسم وخوری چې دا عیب ماسره موجود نه وو. ۳: او که دا سهراب د قسم نه انکار وکړی نو دا پرمټ به هغه ته واپس کولې شی، او صرف اووۀ اتیا زره ریال به واپس کوی.

(ماخوذازکتاب العیب، شامی (۱) هدایة (۲) وغیرہ. وهوالموفق

---

(۱) قال العلامة الحصكفي: ادعي عيبا موجبا لفسخ أو حط ثمن بعد قبضه المبيع لم يجبر المشتري علي دفع الثمن للبائع بل يبرهن المشتري لاثبات العيب أو يحلف بائعه علي نفيه ويدفع الثمن ان لم يكن شهود ... ولزم العيب بنكوله أي البائع عن الحلف.

(الدرالمختار ۴:۹۷ كتاب البيوع، باب خيار العيب)

(۲) قال العلامة المرغيناني: ومن اشتري عبدا فقبضه فادعي عيبا لم يجبر علي دفع الثمن حتي يحلف البائع أو يقيم المشتري البينة أما اذانكل الزم العيب.

(الهداية ۳:۴۵ باب خيار العيب)

## په کومو علاقو کې چې شرعي قاضي موجود نه وي نو هلته هر وخت د دعوی سماع کیدې شي

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید بائع خپله ځمکه د دوه ګواهانو مخکې په عمر باندې خرڅه کړه اوس بکر مدعی دعوی کړې ده چې د زید خرڅه کړې ځمکه کې زما حصه ده، تقریبا د دوه سوه کالو د میراث دعوی ده او دا زما د مور (کومه چې د زید د نیکهٔ د پلار لور جوړیږي) نه په میراث ملاؤ شوې ده او تر اوسه پورې دا ځمکه د زید د تصرف لاندې ده، اوس عرض دا دې چې (۱): عمر د زید نه ځمکه اخستلې ده او بکر مدعی جبرا هغه په ځمکه کې د تصرف کولو نه منع کړې دې آیا په ځمکه خرڅولو سره بائع ذوالید جوړیدې شي یا نه؟ ۲: بکر مدعی که شریعت کوی نو د مشتری سره به کوی که د بائع سره. ۳: د بکر مدعی عیني شاهد نشته ځکه چې د مخکې زمانې خبره ده نو آیا په تسامع سره شهادت ورکولې شي یا نه؟ ۴: په بکر مدعی باندې عیني شاهد سره د خپل مورث ملک ثابتول ضروري دي یا نه؟ ۵: آیا د شپیتو اویا کالو پورې د یک طرفه تصرف باوجود اوس د بکر دعوی قابل سماع ده یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتي:** سراج الدین... ۱۲ ربیع الثاني ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** په صورت مسئوله کې بکر مدعی د میراث دې، او خارج دې او عمر مشتری مدعی علیه دې او په ظاهر کې ذوالید دې. **وفي شرح المجلة ۹۳۸م۱۶۳۵: الخصم في دعوی العین هو ذوالید فقط** (۱) پس دا مدعی علیه چې دافع دې، په شهادت سره دې دا ثابته کړي چې دا اخستلې شوې ځمکه صرف د زید ملکیت وو په هغې کې د بکر د مور ارث نه وو او که داسې

---

۱) (شرح المجلة ۸۹:۵ المادة: ۱۶۳۵)

شهادت نه وی نو بکر ته به قسم ورکولې شی که بکر د قسم خوړلو نه انکار وکړو نو معامله ختم شوه او که قسم ئې اوخوړلو نو د هغې نه پس به بکر د میراث شهادت د مور نه پیش کوی او که شهادت نه وی نو قسم دې ورکړی. (ماخوذ از شرح المجلة ۹۳۱) (۱)

**نوټ**: په کومو علاقو کې چې شرعی قضاة نه وی نو هلته هر وخت د دعوې سماعت کیدې شی. (۲) بله دا چې د زمانې تیریدل د سماعت نه نهٔ مانع کیږی. (۳) والله اعلم

## د اجیر د مستاجر دپاره کور جوړولو سره

## په هغې باندې د ملکیت دعوی کول

**سوال**: څه فرمائی علماء کرام ددې مسئلې په باره کې چې مدعی په خپله رضاباندې د مدعی علیه سره تعاون کولو باندې په یوه محدوده ځمکه کې د مدعی علیه دپاره داستوګنې کورونه جوړکړل، د ډیروکلونوتیریدلونه پس د مدعی په دې ځمکه باندې دحقدارئ دعوی صحیح کیدې شی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: بابوفضل ربانی، سکنه چترال.....۲۲جون۱۹۷۰ء

**الجواب**: کور جوړول د تملیک دلیل نه دې بلکې کله د اعارې او اجارې په

---

(۱) وفي شرح المجلة: اذا أثبت من ادعي دفع الدعوي دفعه تندفع دعوي المدعي والا يحلف المدعي الأصلي بطلب صاحب الدفع فان نكل المدعي عن اليمين يثبت دفع المدعي عليه وان حلف تعود دعواه الأصلية.
(شرح المجلة ۷۵:۵ المادة ۱۶۳۲)

(۲) قال العلامة ابن عابدين: الثاني أن النهي حيث كان للقاضي لا ينافي سماعها من المحكم. (ردالمحتار ۳۸۱:۴ قبيل مطلب اذا ترک الدعوي ثلاثا وثلاثين سنة لاتسمع)

(۳) قال العلامة ابن عابدين: ان الحق لا يسقط بتقادم الزمان اه، ولذا قال في الأشباه أيضا ويجب عليه سماعها.
(ردالمحتار ۳۸۱:۴ قبيل مطلب اذا ترک الدعوي ثلاثا وثلاثين سنة الخ)

طورهم د جوړولو اجازت ورکولې شی لهذا دعوی صحیح ده.(١) وهوالموفق

## په ځمکه کې بوټی لګول د ملکیت دلیل نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یوه محدوده ځمکه څو کرته په سیلاب سره تباه شوې ده، مدعی علیه په خپل اخراجات او محنت سره هغه ځمکه آباده کړې ده او په هغې کې ئې بوټی لګولې دی، نن صبا هغه بوټی لوئې لوئې ونې دی، مدعی د بوټو لګولو په وخت مدعی علیه ته هیڅ او نه ویل، ځمکه او ونې د مدعی علیه په قبضه کې دی، او د هغې نه فائدې حاصلوی، څو کاله پس د مدعی دعوی په دې ځمکه کې صحیح کیدې شی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: بابو فضل ربانی، سکنه چترال.... ۲۲ جون ۱۹۷۰ء

**الجواب:** چونکې بوټی د اعارې او اجارې په طور هم لګولې شی لهذا دا مقدار د تصرف د ملکیت دلیل نه شی کیدې، یعنی دا مالکانه تصرف نه دې.(٢) وهوالموفق

---

١) قال العلامة ابن عابدين: والحاصل أن رواية الجامع أن الاستيام والاستيجار والاستعارة ونحوها اقرار بالملک للمساوم منه والمستأجر منه ورواية الزيادات أنه لا يكون ذلک اقرار بالملكية وهو الصحيح كذا في العمادية وحكي فيها اتفاق الروايات علي أنه لا ملک للمساوم ونحوه فيه وعلي هذا الخلاف ينبغي صحة دعواه ملكا لما ساوم فيه لنفسه أو لغيره... ونقل السائحاني عن الأنقروي ان الأكثر علي تصحيح مافي الزيادات وأنه ظاهر الرواية قلت فيفتي به لترجحه لكونه ظاهر الرواية. (ردالمحتار ۴:۵۰۴ كتاب الاقرار)

٢) قال العلامة ابن عابدين: والحاصل أن رواية الجامع أن الاستيام والاستيجار والاستعارة ونحوها اقرار با لملک للمساوم منه والمستأجر منه ورواية الزيادات أنه لا يكون ذلک اقرار بالملكية وهو الصحيح كذا في العمادية، وحكي فيها اتفاق الروايات علي أنه لا ملک للمساوم ونحوه فيه وعلي هذا الخلاف ينبغي صحة دعواه ملكا لما ساوم فيه لنفسه أو لغيره... عن الأنقروي أن الأكثر علي تصحيح ما في الزيادات وأنه ظاهر الرواية: قلت فيفتي به لترجحه لكونه ظاهر الرواية. (ردالمحتار ۴:۵۰۴ كتاب الاقرار)

## آیا ښځه د میراث د وصولولو نه پس په یو کال تیریدلو باندې څه دعوی کولې شی؟

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د یو مړی دوه کندې ښځې وی، د عدت پوره کیدو تر وخت پورې په هغوی کې چا هم څه دعوی ونکړه، د قرآن او سنت مطابق چې هغوی ته څه ملاویدل هغه ئې وصول کړل ددې نه کال پس څه دعوی صحیح کیدې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: شوکت علی، خیبر ایجنسی پیښور.... ۲۷ اگست ۱۹۷۵ء

**الجواب:** کنده د ثمن یا ربع (۱) او هم دغه شان د مهر مستحق ده. (۲) اگر که وادهٔ نه کوی یا وادهٔ د داسې سړی سره وکړی چې هغه سره د اولیاء الزوج مرضی نه وی. وهوالموفق

## د مستعیر په عاریت باندې اخستلې شوې ځمکه باندې د ملکیت دعوی کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی د بل نه مخصوص جائیداد عاریة طلب کړو، ددې إستعارې نه پس په جائیداد باندې د حقدارئ دعوی صحیح ده یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: بابو فضل ربانی، سکنه چترال ۲۲ جون ۱۹۷۰ء

---

۱) قال الله تبارک وتعالي: ولهن الربع مما ترکتم ان لم یکن لکم ولد، فان کان لکم ولد فلهن الثمن مما ترکتم من بعد وصیة توصون بها اودین.
(سورة النساء آیت: ۱۲)

۲) وقال العلامة المرغیناني: ثم المهر واجب شرعا ابانة لشرف المحل.
(هدایة ۲:۳۲۳ باب المهر)

**الجواب:** صحیح ده (۱) په داسې حال کې چې د بل سړی د غاصب کیدو یا د هغه نه په بیع اخستل ثابت کړي. **وهوالموفق**

## د واهب په خپل ژوند کې د جائیداد تقسیمول او د هغه د وفات نه پس د وارثانو خپل مینځ کې اختلاف کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د یو سړی اووهٔ ځامن دی پلار د هغوی ترمینځه په خپل ژوند کې ټول جائیداد تقسیم کړو او ټول په دې تقسیم باندې راضی شو، د پلار د وفات نه پس تر پنځه دیرشو کالو پورې هر یو په خپله ځمکه کې تصرف وکړو، اوس ئې یو ورور وفات شو، د هغه په ځامنو باندې ترونو دعوی وکړه چې مونږ تاسره په فلانۍ ځمکه کې شریک یو، اوس شریعت د دې په باره کې څه وائی؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی:** مولوی صاحب، مدرس شواډګی، ډاکخانه زیم بنګله

چارسده.....٤ جون ۱۹۹۰ء

**الجواب:** د پلار په ژوند کې تقسیمول په حقیقت کې هبه ده او فقهاء کرامو فرمائیلې دی چې د قبض نه پس او د مرګ نه پس هبه لازمیږی، خصوصاً کله

---

(۱) قال العلامة ابن عابدین: والحاصل أن رواية الجامع أن الاستيام والاستيجار والاستعارة ونحوها اقرار بالملک للمساوم منه والمستأجر منه ورواية الزيادات أنه لايكون ذلک اقرار بالملكية وهو الصحيح كذا في العمادية وحكي فيها اتفاق الروايات علي أنه لا ملک للمساوم ونحوه فيه وعلي هذا الخلاف ينبغي صحة دعواه ملكا لما ساوم فيه لنفسه أو لغيره... ونقل السائحاني عن الأنقروي أن الأكثر علي تصحيح ما في الزيادات وأنه ظاهر الرواية: قلت فيفتي به لترجحه لكونه ظاهر الرواية.
(ردالمحتار ۴:۵۰۴ كتاب الاقرار)

چې محارم وی، صرح به فی رد المحتار(۱) والبحر(۲) والهداية(۳) وغيرهما.....
لهذا دا وروته تول په تول مالکان جوړ شوي دي چاته چې د کوم مقدار قبضه ملاؤ شوې ده هغه د هغه ده. (۴) په دې باندې دعوی نامنظور ده بیشکه که پلار د څه ځمکې وغیره تقسیم نه وی کړې یا ئې قبضه نه وی ورکړې نو هغه مشترکه ده. **فقط**

**نوټ**: د دعوې د تاخير د وجې نه نامنظور کيدل د حکم په مخکښې مراد نه دی بلکې د حاکم او قاضی په مخکښې مراد دی. صرح به فی رد المحتار... ۳۴۳/۴ (۵) وهوالموفق

---

۱ ) قال العلامة الحصكفي : ويمنع الرجوع فيها حروف دمع خزقه ...والميم موت احد العاقدين بعد التسليم فلو قبله بطل... والقاف قرابة فلو وهب لذي رحم محرم منه نسبا ولو ذمياأو مستأمنا لايرجع.
(الدر المختار ۵۷۸،۵۷۶،۵۷۴ : ۴ باب الرجوع في الهبة)
۲ ) قال العلامة ابن نجيم : ومنع الرجوع دمع خزقه...والميم موت أحد العاقدين... والقاف القرابة فلو وهب لذي رحم محرم منه لايرجع لحديث الحاكم مرفوعاً اذاكانت الهبة لذي رحم محرم لم يرجع فيها وصححه.
(البحر الرائق ۲۹۴،۲۹۲،۲۹۱ : ۷ باب الرجوع في الهبة)
۳ ) (الهدايه ۲۹۰،۲۸۹ : ۳ باب ما يصح رجوعه وما لا يصح)
۴ ) وفي شرح المجلة : يملک الموهوب له الموهوب بالقبض.
(شرح المجلة ۳۸۱ : ۳، المادة : ۸۶۱)
۵ ) قال العلامة الشامي : الثاني أن النهي حيث كان للقاضي لا ينافي سماعها من المحكم.
(ردالمحتار ۳۸۱ : ۴ كتاب القضاء مطلب هل يبقي النهي بعد موت السلطان)

## په یو عدالت کې د هبې دعوی کولو سره په بل عدالت کې د تملیک دعوی کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې که هبه او تملیک جدا جدا وی یعنی هبه خاص او تملیک عام وی نو یو سړې په اسلامی عدالت کې د هبې دعوی وکړی او په بل عدالت کې د تملیک دعوی وکړی نو آیا د هغه په دعوی کې تناقض شته؟ بینواتوجروا

المستفتی: بابو فضل ربانی، سکنه تحصیل و ضلع چترال... ۲۲ جون ۱۹۷۰ء

**الجواب:** هیڅ تناقض نشته (۱) وهوالموفق

## د حقوق مجهوله نه ابرا کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې مسمیٰ خالد په خپله خور باندې په محکمه شرعیه کې دا دعوی کړې ده چې زه خپلې خور د خپلې دعوې نه بری الذمه کړې یم، آیا دا د مجهول د دعوې نه ابراء شرعا صحیح ده یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: نثار احمد چترالی، ضلع پیښور علاقه ډبگری غلام مسجد ۵ اپریل ۱۹۷۳ء

**الجواب:** په شرط د ثبوت دا ابرا صحیح ده، فی شرح المجلة ۸۵۳. ولکن الابرا عن الحقوق المجهولة جائزة (۲). وهوالموفق

---

(۱) وفي شرح المجلة: قال السيد الحموي اعلم أن التمليك يكون في معني الهبة ويتم بالقبض واذا عري عن القبض والتسليم اختلف العلماء فيه فقيل يجوز وقيل لا يجوز قياساً علي الهبة.

(شرح المجلة ۳:۳۵۱ الماده ۸۳۸)(ومثله في تكملة ردالمحتار ۲:۳۸۶ مطلب في معني التمليك)

(۲) (شرح المجلة لسليم رستم باز: ۸۵۳ المادة: ... [بقيه بر صفحه آئنده...

## د شفیع او دافع ترمینځه طریق فیصله

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې شیروان، حیدر زمان او حاجی سید محمد په یوه ځمکه کې داسې شریک دی چې دا ځمکه د شیروان او حیدر زمان موروثی ده او سید محمد د یو خاص کردار په حیثیت سره د ځمکې د زمینداریٔ څه حصه د قادر جان وغیره نه اخستلې ده، اوس د سید محمد هم دا فرائض دی چې مذکوره ځمکې له کرولو سره هغوی دواړو ته د خپلو حاصلاتو نیمه حصه ورکړې.

اوس شیروان او حیدر زمان د خپل جائیداد ملکیت یو ځلورم سړی محمد صادق ته په طور د هبې بغیر د عوض نه ورکړې دې، پس ددې ځمکې نه محمد صادق تر دوه کالو پورې باقاعده طور حاصلات د شیروان او حیدر زمان په ځای وصول کړی دی، بیا دوه کاله پس سید محمد خپل ځان شفیع اود ځمکې نه مشاع جوړه کړه، اوس د سید محمد دعوی په مشاعیت په محمدصادق باندې صحیح ده یا نه؟ حال دا چې شیروان او حیدر زمان اوس هم په خپله هبه باندې د موهوب له دپاره قائل دی، او هغوی وائی چې موهوب له محمد صادق زمونږ په ځای باقاعده مالک دې.

۲: ډاکټر محمد صادق د اخستلو نه مخکې د ځمکې موهوب له خلیط مالک هم وو او حاجی سید محمد صرف ګاونډی وو، په دې شفعه کې حق اولیت دچا دپاره دې؟ ۳: د طرفین نه مدعی او مدعی علیه څوک څوک دی؟ مهربانی اوکړئ په شرعی دلائلو سره فیصله وکړئ چې دا موهوبه ځمکه د فساد نه بچ شی، د طرفین دعوې او جوابونه منسلک دی. **بینواتوجروا**

**المستفتی: ډاکټر محمد صادق، ضلع دیر..... یکم جولائی ۱۹۷۵ء**

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] ۱۵۶۷ الفصل الثاني في المسائل المتعلقة بأحكام الابراء)...

وقال العلامة الشامي :فهو مثل الابراء عن المجهول فانه جائز عندنا.

(ردالمحتار ۲۲۲: ۴ باب الاستحقاق)

**الجواب:** په صورت مسئوله کې حاجی سید محمد (شفیع) دې اوډاکټر محمد صادق مدعی علیه او دافع دې، یعنی دعوی د هبې د وجې نه دفع کوی، پس که په دې دواړو کې یو کس شهادت قائم کړو نو هغه به فائز وی او که دواړو ګواهان قائم کړل نو په ترجیح کې اختلاف دې، کما فی الهندیة ۲۱۰/۵ **فلیراجع** (۱) او د مدعی دا قول چې دا هبه ده د مشاع او دا غیر مشروع ده د شفیع د پاره مفید نه ده، کچېرته دې د پاره دلائل بیان کړی مثلاً ارث یا شراء یا تصدق یا قبول وصیت وغیره اسباب شرکت باندې ئې منور کړی. **وهوالموفق**

## مزارع د قبضې او ګرداوری د وجې نه مالک نه جوړیږی

**الجواب:** زبانی استفتاء:

هیڅ مزارع د قبضې او ګرداوری د وجې نه مالک نه جوړیږی د هغه مالک جوړیدل د ډیرو وجوهاتو په بناء باطل دی:

۱: دا چې د ځمکې مالک بالاتفاق شرعی مالک دې، نو په دې زیر بحث دفعه باندې ایمان لرونکو باندې ضروری ده چې هغوی په دې دفعه باندې شرعی دلائل پیش کړی؛ چې په دې قبضه او تصرف سره د سابق ملک ملکیت ختم شو، او د مزارع ملکیت حاصل شو.

---

(۱) وفي الهندية: ولو قال المشتري وهب لي هذا البيت مع طريقه من هذه الدار ثم اشتريت بقيمتها وقال الشفيع لا بل اشتريت الكل فللشفيع الشفعة فيما أنه اشتري ولا شفعة فيما ادعي من الهبة وايهما أقام البينة قبلت بينته وان أقاما جميعا البينة فالبينة بينة المشتري عند ابي يوسف رحمه الله تعالي لانها تثبت زيادة الهبة وينبغي أن تكون البينة بينة الشفيع عند محمد رحمه الله تعالي لأنها تثبت زيادة الاستحقاق. (فتاوي عالمگيرية ٥:١٨٩ الباب العاشر في الاختلاف الواقع بين الشفيع والمشتري والبائع والشهادة في الشفعة)

(ومثله في بدائع الصنائع ٤:١٤٠ كتاب الشفعة، بيان حكم اختلاف الشفيع والمشتري)

۲: دا چې اوبو اوړونکې مملوکه ځمکې لره د آبادولو او د کروندې د قابل کولو او په هغې کې د کروندې کولو نه د مالک ملکیت نه زائل کیږي،
کما فی کتاب الخراج ۹۲ ولوان رجلا أحیی من ذلک شیئا (أی من أجمة أوبحر أو بر شیئا) قد کان له مالک قبله رددت ذلک الی الأول ولم أجعل للثانی فیه حقا(۱) پس د آبادۍ او کروندې قابلې ځمکې نه به ئې په طریق اولی ملکیت نه زائل کیږي.
۳: دا کله چې مزارع د ځمکې د مالک د اعتراض په صورت کې د فصل حقدار نه جوړیږي نو د ځمکې مالک کیدل به څنګه جائز شي. رسول الله ﷺ فرمائي: من زرع فی أرض قوم بغیر اذنهم فلیس له من الزرع شیئ وله نفقته، رواه ابوداؤد والترمذی (مشکواة شریف ۲۷۸)(۲). وهوالموفق

## د سیرۍ متعلق یو شرعي فیصله

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د نن نه تقریبا یو سل لس کاله مخکې د سرخ ډهیرۍ د میاګانو نیکهٔ میاں برهان الدین زمونږ نیکهٔ ته د ځمکې یو ټکړه او د کور دپاره څو مرلې ځمکه ورکړې وه، په دې خیال سره چې دا خلق به زمونږ امام وي، پس هم هغه امامت اوس پیړۍ په پیړۍ راروان دې، دې دوران کې زمونږ نیکهٔ د ارټ دپاره په دې موهوبه ځمکه کې یو کوهۍ آباد کړو، او قبرستان ئې هم جوړ کړو، دې سره سره مونږ یو نیم پخته کهنډر جوړ کړو، بل طرف ته په لالی یکر کنبې تقریبًا زمونږ مشرانو اول کچه آبادي جوړه کړه او پنځه مرلې ځمکه کې د کور دپاره

---

۱ )(کتاب الخراج ۲۰۰ في الجزائر في دجله والفرات والغروبه)
۲ )(مشکوٰة شریف ۲۵۷ باب المساقات والمزارعة)
وفي الهندیة: غصب من آخر أرضا فزرعها ونبت فلصاحبها أن یأخذ الأرض ویأمر الغاصب بقلع الزرع تفریغا لملکه فان أبي أن یفعل فللمغصوب منه أن یفعله بنفسه فان لم یحضر المالک حتي أدرک الزرع فالزرع للغاصب وللمالک أن یرجع علي الغاصب بنقصان الأرض. (فتاوي هندیة ۱۴۳:۵ الباب العاشر في زراعة الأرض المغصوبة)

بیا ئې د ضرورت په بناء باندې پخه آبادي وکړه چې د هغې اتلس کاله شوي دي، اوسه پورې ئې هم دا قبضه بغیر معاوضې وه او د هغه خلقو د موجودګئ او کتلو باوجود وه، اوس چونکې مذکوره ځمکه شاړه پاتې شوې ده، اوکلی ته د نژدې کیدو د وجې نه د کروندې قابله پاتې نه شوه، او زما ځامنو ته په هغې کې د آبادئ ضرورت محسوس شو، پس اوس مونږ اراده کړې ده چې په هغې کې آبادي وکړو نو هغوی مونږ د قانون په جال کې ګیر کړو، ځکه چې دا خلق د انګریزانو د دور نه مالی لحاظ سره طاقتور دی او د حکومت په ادارو کې په لوئې لوئې منصبونو باندې فائز دی په دې وجه تاسو ته درخواست دې چې شرعی نقطه نظر سره د دې موهوبه شرعی حیثیت اوښایئ. بینواتوجروا

**المستفتی:** مولوی محمد عاشق، مقام سرخ ډهیرئ ضلع مردان .....۲۶ محرم ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** د فریق اول دعوی په فریق ثانی (د برهان الدین په اولاد) باندې ناقابل سماعت ده، ځکه چې فریق اول سره د دې ځمکې عاریت یا وقف علی المسجد کیدو دپاره ګواهان موجود نه دی، لکه چې دویمې ډلې سره د هبې او تملیک ګواهان موجود نه دی او د عرف سابق په بناء به دې ته هبة او تملیک ویلې شی ځکه چې زمونږ په صوبه کې امام وغیره ته ځمکه په طور د تملیک په دې اعتماد باندې ورکولې شوه چې دا خلق به زمونږ پیړئ په پیړئ امام وی، او د داسې تملیک متعلق (شامی ۵۲۰/٤ (۱) بحر (۲) او

---

۱) قال العلامة الحصكفي: (جاز العمري) للمعمر له ولورثته بعده لبطلان الشرط،

وقال العلامة ابن عابدين: العمري هي أن يجعل داره له عمره فاذا مات ترد عليه. (شامي ۵۸۰: ۴ كتاب الهبة، فصل في مسائل متفرقة)

۲) قال العلامة ابن نجيم: ومن وهب أمة الا حملها أو علي ان يردها عليه أو يعتقها أو يستولدها أو دارا علي أن يرد عليها شيئا منها أو يعوضه منها شيئا صحت الهبة وبطل الاستثناء والشرط ... والهبة لا تبطل ... بالشروط الفاسدة ... وصح العمري للمعمر له حال حياته ولورثته بعده. (البحر الرائق ۲۹۵،۲۹۶: ۷ كتاب الهبة، قبيل كتاب الاجارة)

عالمګیری (۱) په کتاب الهبة کې لیکلې شوې دی چې هبه نافذ کیږی او د
شرط ضرری نه دې، بله داچه شرعا هغه دعوی کومه چې د مالکانه تصرفاتو
نه د خبریدو باوجود وروستو کړې شوې وی، ناقابل سماعت وی.

كما في ردالمحتار ۵:۴۴۶: في الحامدية عن الولوالجية رجل تصرف زمانا
في أرض ورجل آخر يرى الأرض والتصرف ولم يدع ومات على ذلك لم تسمع
بعد ذلك دعوى ولده فتترك على يد المتصرف اه والظاهر أن الموت غير قيد
بدليل أنهم لم يقيدوه به هنا، وبه علم أن مجرد السكوت عند الاطلاع على
التصرف مانع الخ(۲). وهوالموفق

**د میراث په دعوی کونکو کې به د چا په ګواهانو باندې فیصله وی؟**

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زما (عبدالجبار)
مقام خادګزئی معروف باداره کې درې جیربه ځمکه د پلار نیکهٔ ملکیت دې
تقریبا دیرش، څلویښت کاله مخکې زما پلار د قتل او دشمنئ په سلسله
کې قید شوې وو، د قید نه په آزادیدلو باندې وفات شو، مسمیان حمد
خان، محمد زرین، اسم خان، ایراسان، عبدالمتین، سیب خان سکنه تنګی
په ټول جائیداد باندې قابض وو، زما د پلار میراث ټول جائیداد څلور
جریبه ځمکه وه، په ذکر شوې جائیداد کې عبدالمتین چې زما د ترهٔ ځوئې
دې هغه درې جریب ځمکه قبضه کړې ده، په ذکر شوې ځمکه کې یو جریب
ځمکه د چالوان نه واپس شوې ده، او درې جیربه ځمکه عبدالمتین سره
باقی پاتې شوه، تقریبا دیارلس کاله مخکې کله چې عبدالمتین وفات شو
نو ذکر شوې درې جیربه ځمکه د حزب الله خان سره ګانه وه، چونکې
عبدالمتین او حزب الله رشته دار وو، حزب الله خان وروستو جائیداد حمد

۱) (هكذا في الفتاوى الهندية ۴:۳۹۶ الباب الثامن في الشرط في الهبة)
۲) (ردالمحتار ۵:۵۲۴ مسائل شتى)

خان ته حواله کړو، او د حمد خان نه ئې د ګور او کفن نه د زیاتی رقم مطالبه وکړه، نو ذکر شوې رقم حمد خان حواله نه کړو، د غلام محمد د عبدالمتین سره نزدې رشته وه، په دې وجه غلام محمد صرف اولس سوه روپئ ورکولو سره په ذکر شوې ځمکه باندې قبضه وکړه، چونکې اوس زه د عبدالمتین رشته داریم نو د عبدالمتین د جائیداد حقدار زه یم. (بیان مدعی عبدالجبار)

**د غلام محمد جواب دعوی :**

**المستفتی: ۱: مدعی علیه غلام محمد ولد فقیر سکنه باغ تحصیل تیمر گره ضلع دیر**

۲: اراضی چې دعوی پرې شوې ده دا زما د پلار نیکهٔ موروثی جائیداد دې چې په هغې باندې زه مسلسل د جد امجد د زمانې نه قابض او متصرف یم، د نیکهٔ، د پلار او پخپله زه د درې زمانو نه قابض او متصرف راروان یم چې د هغې تصدیق او توثیق کې زه څو ګواهان نه بلکې د پوره علاقې په عوام الناس باندې، د نیکه نه په تواتر سره زما د موروثی جائیداد او قبضې او تصرف ګواهان او شاهدین دی. چونکې دا جائیداد څو کرته مونږ خپل مینځ کې تقسیم کړې دې، د ډیرو کلونو نه مونږ په دې باندې مزارعین لګولې دی او تر اوسه پورې زما په قبضه او تصرف کې دی.

۳: د مدعی مذکور په دعوی کې بنیادی تناقض او تضاد بغیر د شک او شبهې نه موجود دې ځکه چې مدعی مذکور یو کرت خو د پلار نیکهٔ د وراثت دعوی کوی او په دویم کرت د تره د ځوی عبدالمتین خان د وراثت دعوی کوی.

۴: مدعی په خپل بیان کې د څلویښتو کالو پورې د جائیداد نه محرومیدل بیانوی او د هغه په جائیداد کې دومره اوږدې تبدیلئ او مقدمې کیږی څومره چې هغه په خپل بیان کې ښکاره کوی نو په دې موجوده ترقی یافته زمانه کې ئې څه بندوبست ولې ونکړو؟ په دې وجه دا په مونږ باندې یو زائد المیعاد او دروغژنه دعوی ده.

۵: په حقیقت کې دا مقدمه د یو بې بنیاده سازش د وجې نه زما خلاف روانه کړې شوې ده. کنه نو زه په مخکې زمانه کې د حکومت د سزا د وجې نه

جلاوطن ووم او زما ټول جائیداد بې وارثه موجود وو، نو که دا د بل چا وې نو هغه بغیر د څه مزاحمت نه په هغې باندې قبضه ولې ونکړه؟
لهذا د عدالت شرعیه نه التماس کوم چې که د مدعی مذکور دعوی د اصول شرعیه مخالف وی نو د هغه نه احقر ته خلاصې ورکولو سره د دواړو جهانو ثواب حاصل کړئ. **بینوا توجروا**

**المستفتی:** ۲: غلام محمد ولد فقیر، سکنه باغ تحصیل تیمرګره ضلع دیر. ۶ فروری ۱۹۷۲م

**الجواب:** د مدعی مسمی عبدالجبار د بیان خلاصه دا ده چې دا جائیداد زما ملکیت دې اول خو په دې وجه چې دا ماته زما د پلار نه په میراث کې ملاؤ شوې دې، دویم په دې وجه چې (که بالفرض دا د عبدالمتین جائیداد وی) نو زه د عبدالمتین وارث یم او د مدعی علیه مسمی غلام محمد د بیان خلاصه دا ده چې دا ځمکه ماته د پلار نیکۀ نه په میراث کې ملاؤ شوې ده، پس دواړه فریقین د میراث مدعیان دی او په هغوی کې عبدالجبار خارج او غلام محمد ذوالید دې لهذا چې د کوم فریق ګواهان موجود وی هغه به کامیاب وی. (۱) او که د دواړو ګواهان موجود وی نو د عبدالجبار ګواهان به منظور وی. **ولو ادعیا ملکا ارثا لابیه ان کانت العین فی ید احدهما ولم یورخا اوارخا سواء یقضی للخارج** (تکملة ۲/ ۱٤) (۲) **فقط**

**نوټ:** د محکم په مخکښې د تاخیر د وجې نه دعوی نه ناقابل سماعت کیږی. (رد المحتار ٤/ ٤ باب القضاء) (۳) **وهوالموفق**

---

۱) وفي شرح المجلة: واذا عجز أحدهما عن الاثبات وأثبت الأخر يحكم له بكون ذلک العقار ملكه مستقلا لأن البينة أقوي من وضع اليد.
(شرح المجلة ۴۴۷: ۵، المادة: ۱۷۵۶، الفصل الثاني في ترجيح البينات)
۲) (تكملة ردالمحتار ۱۵: ۲ باب دعوي الرجلين)
۳) قال العلامة ابن عابدين: الثاني أن النهي حيث كان للقاضي لاينافي سماعها من المحكم
(ردالمحتار ۳۸۱: ۴ قبيل مطلب اذا ترک الدعوي ثلاثا وثلاثين الخ)

## د شریعت او د قانون په رڼا کې د ځمکې د ملکیت مستحق څوک دي؟

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې حکومت د محمد علي خان ځمکه د خلقو په نوم باندې الاټ کړې ده د چا دپاره چې حکم وو چې د چا سره قبضه وي، د هغه حق دې د دې وجې نه زید یوه ټکړه د ځمکې اتۀ کاله مخکې یوځل ئیوه (هل) کرځولو سره د مزارعت دپاره یو فصل استعمال کې راوستلو، او ناقص او ناقابل زراعت نه کیدو د وجې نه ئې پریښودله، اتۀ کاله تیر شو او وروستو حکومت هم دا ځمکه د بکر په نوم باندې الاټ کړه، او د الاټمنټ په دوران په دې باندې د چا هم قبضه نه وه او زید او بکر دواړه د خان موصوف اجاره دار وو، خو د دې حصې نه علاوه د ځمکې نوره حصه د اجارې په خط محمد علی خان کرې، په شرعی حکم سره به قبضه د چا دپاره ثابت وي؟ **بینواتوجروا**

المستفتي: محمد شیر، مردان...... ۲۵ جمادی الثانی ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** د شریعت په رڼا کې دا ځمکه د هغه سړي ملکیت دې چا ته چې محمد علی خان مالک اوائی، خو د قانون په رڼا کې هغه سړې مالک دې چې د چا په نوم باندې الاټمنټ (لیکل شوي) وي. (۱) **وهوالموفق**

## د دعوې د عدم سماعت د مودې تعین کول د حکومت ذمه داری ده

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید د خپلې ځمکې یوه حصه په ژوند باندې خرڅه کړه، بیا وفات شو، چې کوم سړي اخستلې ده هغه سړې اوسه پورې په هغې باندې قابض دې، د دیرشو کالو نه زیاته موده ئې شوې ده، د دیرشو کالو پورې ئې وارثان خاموش وو د هغې نه

---

(۱) قال العلامة الحصكفي: اعلم أن اسباب الملك ثلاثة، ناقل كبيع وهبة وخلافة كارث واصالة، وقال العلامة ابن عابدين: (قوله ناقل) أي من مالك الي مالك.
(شامي ۵:۳۲۹ كتاب الصيد)

پس هغوی دعوی وکړه، اوس آیا په اسلامی قانون کې دا دعوی صحیح کیدې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عباس خان.... دیر.....۶ اپریل ۱۹۸۴ء

**الجواب**: د عدم سماعت د مودې تعین د حکومت ذمه داری ده، دا په هر دور کې مختلف کیږی، خو فقهاء کرامو د دیرشو کالو د مودې تعین کړې دی فلیراجع الی شرح المجلة ۹۸۲ (۱) وهوالموفق

## د قوم سرګره او زخیل ترمینځه د څمکې د اوبه خور فیصله

**سوال**: څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د قوم زخیل مانده لرې ده کوم چې د عادت په لحاظ سره د هغوی ملک دې کنه نو قوم زخیل کنده نه ده کړې، په عرف کې هغې ته مانده وائی، په دې مانده کې اوبه دی او د قوم سرګره او زخیل یو مشترکه کاریز د دې مانده غاړې ته راځی قوم سرګره لاندې دې، او د فریقین په اقرار سره او د سرګره د پلار نیکهٔ نه ددې مانده اوبه په خپل کاریز کې یوځای کولو سره خپلې څمکې اوبه کړې دی اوس اختلاف دا دې چې قوم زخیل وائی چې کاریز خو مشترک جوړ شوې دې خو مانده زمونږ په څمکه کې ده، سرګره لاندې دی د هغوی هیڅ حق نشته. شپیتهٔ کاله چې سرګره کوم استعمال کړې دې هغه زمونږ احسان دې کنه نو د هغوی څه لازم حق نه دې

**نوټ**: د قوم سرګره د مانده د اوبو نه د کروندې څمکې موجود دی او د قوم

---

(۱) وفي شرح المجلة: وقد اختلف الفقهاء في تحديد هذه المدة فقيل هي ثلاث سنوات وقيل هي ثلاثون سنة وقيل ثلاث وثلاثون وقيل ست وثلاثون سنة... ثم لما كثر الفساد في الزمان وفشي التزوير والتحيل في كل مكان صدر الأمر السلطاني من لدن سيدنا أمير المؤمنين كما اشعرت به المادة الآتية وذلک تبعا لأوامر أسلافه الكرام من خلفاء آل عثمان العظام بمنع القضاة عن سماع كل دعوي تركها المدعي خمس عشرة سنة بلا عذر.
(شرح المجلة ۱۶۷،۱۶۶: ۵الباب الثاني في حق مرور الزمان)

زخیل تر اوسه پورې لاره استعمال نشته. بینواتوجروا

المستفتي: مولوی عبیدالله عرف گل خان، لور آلائی......۲۸ رجب ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** که دا قوم زخیل د یو ثالث قوم په شهادت سره د هغه دور نه د قوم سرگړه او به خور لره حادث او احسان ثابت نه کړې شي نو ﴿القدیم یترك علی قدمه﴾(شرح المجلة ۲۱) (۱) په بناء به دا کوهې د مخکې په شان استعمالولې شي، او په ملک خاصه یا مشترکه باندې د اقامت بینة نه مخکې به دا کوهې د هغوی مملوک وی چاته چې باقاعده قسم ورکړې شو. وهوالموفق

## د تقسیم او بیع منکر اود مدعی ترمینځه طریق فیصله

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې نوشید او صالح رحمن دواړه ورونه دی د هغوی پلار په ژوند کې نوشید ته یو محدود ځمکه په تقسیم کې ورکړې وه. نوشید څه موده په هغې کې تصرف وکړو بیا هغه په اکرم خان باندې ځمکه خرڅه کړه، بیا نوشید مړ شو او ځمکه د اکرم خان په تصرف کې وه، د اکرم خان د وفات نه پس د هغوی په وارثانو کې جائیداد تقسیم کړې شو نو دا ځمکه د اکرم خان د ځوی حبیب الله په حصه کې راغله، اوس هغه هم وفات شوې دې او ذکر شوې ځمکه د حبیب الله د ځامنو سره ده، او مدعی صالح رحمن د تقسیم او بیع منکر دې، نو په دې صورت کې به گواهان د چا معتبر وی؟ په داسې حال کې چې مدعی خارج او مدعی علیه قابض دې؟ بینواتوجروا

المستفتي: محمد رسول، شاټ کس تحصیل و ضلع دیر ... ۱۷ جمادی الاول ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** د شرعی قواعدو په رڼا کې د صالح رحمن دعوی ناقابل سماعت ده، ځکه چې دې د مالکانه تصرفاتو نه د خبریدلو باوجود خاموش پاتې

---

۱ ﴾(شرح المجلة ۲۳: ۱ المادة: ۶)

شوې دي. لما في شرح التنوير ۶۴۹/۵ : باع عقارا او حيوانا اوثوبه وابنه اوامراته وغيرهما من أقاربه حاضر يعلم به ثم ادعى الابن مثلا انه ملكه لا تسمع دعواه (۱) خو دا ذواليد به دا دفع په بينه سره منور کوي، او د بينه په عدم موجودګئ کې به دې مدعى خارج ته د تقسيم او بيع په وقوع باندې قسم ورکولې شي، که قسم ئې اوخوړلو نو دا خارج به اصل دعوې لره په شهادت سره منور کوي. كما في شرح المجلة ۹۳۰ فليراجع (۲) وهوالموفق

## د ښځې په کالو باندې اخستلې شوې ونې به د چا وي

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زما پلار زما د مهر کالي خرڅولو سره په هغې باندې شپيتۀ د مالتو بوټي واخستل، او باغ ئې ولګولو، خو مور مې ورته د کالو پيسې هبه وغيره نه کړې، د پلار د فوت کيدو نه پس مې مور وائي چې هغه شپيتۀ د مالتو بوټي زما دي لهذا شرعي حکم به څه وي؟ بينواتوجروا

المستفتي: حميد الرحمٰن، ضلع دير.....۸ رجب ۱۴۰۱هـ

**الجواب:** که پلار ئې دا اعتراف کړې وي چې دا بوټي د فلانئ بي بي په پيسو اخستلې شوې دي نو دا به د هغه فلانئ (مور) وي. (۳) او که دا بوټي

---

۱) (الدرالمختار ۵:۵۲۴ مسائل شتّى)

۲) وفي شرح المجلة : اذا أثبت من ادعي دفع الدعوي دفعه، تندفع دعوي المدعي والا يحلف المدعي الأصلي بطلب صاحب الدفع، فان نكل المدعي عن يمين يثبت دفع المدعٰي عليه وان حلف تعود دعواه الأصلية. (شرح المجلة ۵:۷۵ المادة ۱۶۳۲)

۳) قال العلامة خير الدين : ولو قال يعني في صحته جميع ما هو داخل في منزلي لامرأتي غير ماعلي من الثياب ثم مات فادعي ابنه أن ذلک ترکة أبيه قال أبوالقاسم ههنا حکم وفتوي فالحکم اذا ثبت هذا الاقرار وجب القضاء لها بما کان في الدار يوم الاقرار وفي الفتوي اذا علمت المرأة أن الزوج صادق في اقراره وأن جميع ذلک کان لها ببيع أوهبة أو ما أشبه ذلک فهي في سعة من أن تمنع ذلک عن الوارث. ( فتاوي خيرية علي هامش تنقيح الحامدية ۲:۱۵۴ کتاب الاقرار)

پلار د خپل ځان دپاره اخستلې وي نو مور به پکې صرف د مهر په مقدار مستحقه وي، په دې شرط چې مور ورته کالی د تملیک په طور نه وي ورکړې. وهوالموفق

## د مقبوضه غرونو او ځنګلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام ددې مسئلې په باره کې چې په ځنګلو کې چې کوم قومونه دپخوا زمانې نه آباددي دهغوی ترمینځه د پخوا زمانې نه دخپل رسم مطابق حد بندی واقع ده، حدی بندی په نالو وغیره سره وی اول د لویو لویوقومونوتقسیم دې بیا هریوقوم په خپلو خاندانونوکې تقسیم کوی داقوم اوقبیلې په خپلو حدودوباندې قابض وی، بعض وخت داخلق په ټیکدارانو باندې په کمیشن خرڅوی نو آیا د شریعت په نزد دا تصرفات معتبر دی یا نه،او ددې مقبوضه غرونو او ځنګلو په شریعت کې څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد شفیع عفا الله عنه ضلع ډیره اسماعیل خان....٢٦ جمادی الثانی ١٤٠١ھ

**الجواب:** د دې تصرف او تمانع نه ظاهرا دا معلومیږی چې د ځمکې دا حصه د دې قوم مشترکه ملکیت دې. کما یدل علیه ما فی الخلاصة ٢: ٢٦٠: والید فی الأجمة والغیضة انما یثبت بقطع الشجر وبیعها فی غیر منازع (١) وفی الهندیة ٥: ٤٢١: ولو کان أجمة أو غیضة فقطع قصبها أو أشجارها فسواها فهو احیاء، (٢) وفی ردالمحتار ٣: ٣٥٤: الید دلیل الملك (٣)

پس ترڅو پورې چې د دې نه قوی دلیل معارض موجود نه وی هم په دې

---

١ ) (خلاصة الفتاوی ٤: ٩٥ کتاب الدعوی ،الفصل الثانی فی دعوی الضیاع الخ)

٢ ) الفتاوی الهندیة ٥: ٣٨٧ کتاب احیاء الموات، الفصل الأول)

٣ ) (ردالمحتار ٤: ٤٩٣ کتاب الدعوی قبیل باب دعوی النسب)

وقال العلامة ابن عابدین: فان الأصل بقاء الملکیة والید أقوی دلیل علیها فلا تزول الا بحجة ثابتة. (ردالمحتار ٣: ٢٨١ مطلب فیما وقع من الملك الظاهر بیبرس من ارادته انتزاع العقارات الخ)

ظاهر باندې په عمل کولې شي. وهوالموفق

## د موات د آبادولو نه پس په هغې باندې جاري اوبه بندول

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د يو سړي په ځمکه کې کومه چې پيړئ په پيړئ آباده او اوبو والا وه دهغې اوبو دارومدار په متصل غير آباد غريزو چينو باندې وو کوم چې دوه درې ځايه د دې غر نه راوځي اوس دا غير آباد غر يو سړي د حکومت په اجازت باندې د کروندې دپاره آباد کړې دې او اوس هغه دا اوبه په اول سړي باندې بندوي خپله اوچه ځمکه آبادوي او نورې آبادې ځمکې شړوي او وائي چې دا زما د ځمکې نه راوتلې دي، شرعي حکم څۀ دې؟ بينواتوجروا

المستفتي: ماسټر نذير. ثمرباغ ضلع دير .... ۲۵ رمضان ۱۴۰۲هـ

**الجواب:** ﴿القديم يترك على قدمه﴾(۱) په بنياد باندې دا دويم سړې د دې اوبو د بندولو مجازنه دې، بله داچې داحياء الموات د وجې نه د چا حق نه شي ضائع کولې نظيره مافي الهندية۵:۳۸۷ رجل احيى أرضاميتة ثم جاء انسان وأحيا أراضي حولها حتى أحاط الاحياء بجوانبها الأربعة كان له ان يتطرق الى أرضه من الأرض التي أحياها آخر،انتهى ووجه الالحاق ان الأول صار مالكا قبل الثاني والشرب والطريق ممايتوقف عليهما الانتفاع فافهم(۲). وهوالموفق

## په پخوانئ غير آباد او شړې ځمکې باندې د قبضې حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ کلي اضاخيل بالا د کافي زمانې نه آباد شوې دې د دې کلي اوسيدونکي د شروع نه دلته راتلو سره په خپله خوښه باندې چېرته چې ئې غوښتل کور جوړولو سره آباد شوې دی چېرته چې ئې غوښتل مسجداوحجره ئې جوړه کړې ده، او

۱) (شرح المجلة ۲۳:۱ المادة:۶)

۲) (فتاوي عالمگيرية ۵:۳۸۷ الباب الأول في تفسير الموات، كتاب احياء الموات)

څه ځای ئې د فصل کرلو دپاره برابر کړو، اوپه څه غیرآبادې ځمکې باندې ئې هم داسې قبضه وساتله، کومه چې اوس دهغوی اولاد آبادوی او څه غیر آباد ځمکه اوس هم په خپل سابقه حالت باندې موجود ده او د هغه خلقو اولاد په هغې باندې قابض دي، اودا درې واړه قسمه ځمکې دمیراث په طور څو کرته تقسیم شوې دی، او د هغې مطابق هغه حصې هم د هغه خلقو په نوم باندې د مال په سرکاری کاغذونو کې لیکلې کیدې، او هغوی ته سپارلې شوې ده، تاسو مهربانی کولو سره د دې شرعی حیثیت واضح وفرمایئ چې دا آبادې او غیر آبادې ځمکې د هغوی ملکیت شوې دې یا نه؟ بعض خلق دې وخت کې دا تقسیمول غواړي لهذا د دې شرعی وضاحت وفرمایئ. **بینواتوجروا**

**المستفتي**: مولوی عاشق حسین صاحب، اضاخیل بالا نوښار. ۲۰ فروری ۱۹۸۶ء

**الجواب**: د صاحب بدائع (۱) د قاعدې په بناء دا متعلقه اراضی که موات وی نو هر سابق لاحق آباد کونکې به د دې مالک وی، او که مملوکه وی نو په ټول کلی اضاخیل بالا کې چې څومره حصې دی په دې ټولو حصو باندې دا ټول سابق لاحق غیر آبادی ځمکه تقسیم کړې شی، پس چا چې د خپلې حصې نه زیاتی آباد کړې وی (د پټی یا کور دپاره) ئې آباد کړې وی هغه دې زیاتی واپس کړی او که مقامی خلقو ته جزوی طور سره نه حصې معلومې وی او نه د موات ځمکې یا د مملوکه کیدو نه خبر وی نو مونږ د دې قابض کیدو او غاصب کیدو فتوی نه شو ورکولې. (۲) **وهوالموفق**

---

(۱) دا ضابطه په بدائع جلد ۵ کې ده: (والمملوكة نوعان عامرة، خراب) وبيان حكم كل نوع منها وأما الأراضي المملوكة العامرة فليس لأحد أن يتصرف فيها من غير اذن صاحبها لأن عصمة الملك تمنع من ذلك وكذلك الأرض الخراب الذي انقطع مائها ومضي علي ذلك سنون لأن الملك فيها قائم وان طال الزمان حتي يجوز بيعها وهبتها واجارتها وتصير ميراثا اذا مات صاحبها. (۵:۲۸۱ كتاب الأراضي) ...رشيد احمد عفى عنه

(۲) قال العلامة الحصكفي: اذا أحيا مسلم أو ذمي أرضا غير منتفع بها وليست بمملوكة لمسلم ولا ذمي فلو مملوكة لم تكن مواتا ... فلو لم يعرف ...[بقيه بر صفحه آئنده...

## په خپله ځمکه کې د تصرف د وجې نه ګاونډی ته نقصان رسول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د شیر محمد ځمکه د غرۀ په لمن کې د اتیا کالو نه آباده ده، حاجی شیر محمد د غر طرف ته د خورو اوبو دپاره دوه لختی جوړ کړی دی هغه لختو د نهر شکل اختیار کړې دې، خو کنستلې شوې نه، د لختی نه علاوه ئې بل هیڅ تصرف نشته، د حاجی رازګل ځمکه پورته طرف ته د شېږ دیرشو کالو نه غیر آباده پرته وه اوس د دویشتو کالو نه هغه آباده شوې ده، راز ګل لوئې لختې د خپلې ځمکې په احاطه کې جوړ کړو او د شیر محمد په لختی باندې ئې خاوره واچوله، دا مغربی طرف ته دې مشرقی طرف ته د بل سړی ځمکه ده، بهر حال هغه د ځمکې د احاطې دپاره لختې جوړ کړو او د شیر محمد په لختی باندې ئې خاوره واچوله.
اوس راز ګل وائی چې زه حقدار یم ستا لختې ختم شو، د قبضې حق اوس زما دپاره دې، شیر محمد وائی چې زه قدیم یم زه ستا نه مخکې محرز یم، زما قبضه مخکې ثابته شوې وه لهذا تاسو د دې مسئلې شرعی وضاحت وکړئ. بینواتوجروا

**المستفتی:** مولوی عبیدالله، مدرسه نعمانیه عربیه کوئټه ..... ٦ رمضان ١٤٠٩ھ

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] مالکها فهي لقطة.
وقال العلامة الشامي: (قوله فلو لم يعرف مالكها فهي لقطة) قال في الملتقي،
الموات أرض لا ينتفع بها عادية أو مملوكة في الاسلام ليس لها مالک معين مسلم او ذمي
وعند محمد ان ملكت في الاسلام لا تكون مواتا.
(شامي ٥:٣٠٦ كتاب احياء الموات)
وقال أيضاً: فأولي أن يقولوا ببقاء تلك الأراضي بيد من هي تحت أيديهم باحتمال
أنها كانت مواتا فأحييت أو أنها انتقلت اليهم بوجه صحيح.
(ردالمحتار ٣:٢٨١ مطلب ليس للامام ان يخرج شيئ من يد أحد الخ)

**الجواب:** ومنه الصدق والصواب: د حاجی رازګل دا تصرف ناجائز دي،
کما فی شرح المجلة ۳۲ المادة ۳۰: درء المفاسد أولی من جلب المنافع ومما یتفرع من هذه القاعدة أن الرجل یمنع من التصرف فی ملکه اذا کان تصرفه یضر بجاره ضرراً فاحشاً(۱). وهوالموفق

## حکام به د زائد المیعاد دعوی دوباره سماعت خپله کوی که نورو نه حکم وکړی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ د کلی ریګی مشرانو په خپله ځمکه "ریګی میره" چه په هغې باندې د اورکزئی قبیلې څو خاندانونو ناجائز قبضه کړې وه، باندې د سینئر سول جج نه واخله تر د پېښور هائی کورټ پورې مقدمې دائر کړې، خو سینئر سول جج، ډسترکټ جج پېښور او هائی کورټ پېښور یعنی ټولو عدالتونو دعوی زائد المیعاد کیدو په بناء باندې دا مقدمه خارج کړې ده.
دا فیصلې ذکر شوی عدالت د انګریزی قانون په رڼا کې کړی دی او دغه شان مونږ ټول مالکان د ریګی، کوم چې پیړئ په پیړئ د دې ځمکې مالکان دی، د خپل میراث نه محروم شو، لهذا شرعی حکم بیان کړئ؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: عبدالحمید خان، آف ریګی .... ۳۰ ربیع الاول ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** په صورت مسئوله کې په حکام بالا باندې شرعا ضروری ده چې

---

(۱) (شرح المجلة ۳۲: ۱ المادة ۳۰ طبع بیروت المطبع الأدبیة)
وقال العلامة الحصکفي: له التصرف في ملکه وان تضرر جاره في ظاهر الروایة الکل في الأشباه وفي المجتبیٰ وبه یفتیٰ وفي السراجیة الفتویٰ علی المنع.
وقال العلامة ابن عابدین: قال العلامة البیري والذي استقر علیه رأي المتأخرین أن الانسان یتصرف في ملکه وان أضر بغیره مالم یکن ضرراً بیناً.
(ردالمحتار ۱۹۱: ۵ قبیل کتاب المزارعة)

دې مقدمې په خپله سماعت وکړي یا نورو سره ته د سماعت حکم وکړي کما فی ردالمحتار ۴: ۳۴۳: ویجب علیه سماعها اه أی یجب علی السلطان الذی نهی قضاته عن سماع الدعوی بعد هذه المدة أن یسمعها بنفسه أو یأمر بسماعها کیلا یضیع حق المدعی (۱). وهوالموفق

## په متعینه ځمکه باندې د میراث د دعوی کولو نه پس د مدعی علیه نه د شراء دعوی کول

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید په عمر باندې دعوی وکړي چې کومه ځمکه نه خوري دا ځمکه ماته د ورور په میراث کې پاتې شوې ده، اوس نه دا ځمکه څه په ځانه باندې خوري او څه په مزارعت باندې خوري، او مدعی علیه دا ووائي چې دا ځمکه ماته د پلار نه ملاؤ شوې ده او په دې باندې چا دعوی نه ده کړې بیا دا مدعی ووائي چې دا ځمکه ما د مدعی علیه نه په پیسو باندې اخستلې ده په دې مسئله کې تناقض دې یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: حاجی فضل الرحمن متعلم ...... ۱۲ جون ۱۹۷۲ء

**الجواب:** که د قاضی په محکمې دا بیانات ثابت شوي وي نو دا تناقض دې او مردود دې، او د دعوې د عدم صحت د وجې نه به د بینه طلب بې قاعدې وي. فی الهندیة: متی ثبت عند الحاکم تعارض القولین المتضادین من المدعی فی الدعوی یمنع استماع الدعوی کذافی محیط السرخسی (۲). فقط

۱) (ردالمحتار ۳۸۱: ۴ مطلب هل یبقي النهي بعد موت السلطان)

۲) (فتاوي عالمگیریة ۶۳: ۴ کتاب الدعوي، الباب الثامن فیما یقع به التناقض)

وفي الخلاصة: وفي الفتاوي الصغري التناقض کما یمنع الدعوي لنفسه یمنع الدعوي لغیره.

(خلاصة الفتاوي ۹۰: ۴ کتاب الدعوي، الفصل الأول جنس آخر في التناقض)

## د ځمکې د میراث په دعوی کې تاخیر د. جر میراث.
## اصحاب حدود او وارثانو لره نه ذکر کول

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید مدعی علیه په خپل ملکیت کې تقریبا د دیرشو پنځه دیرشو کالو نه تصرفات کوی او د دې نه مخکې د هغه پلار د اوږدې مودې پورې مالکانه تصرفات کړی دی، اودعمرو مدعی د پلار نه د زید مدعی علیه په پلار باندې دعوی کړې وه او نه عمرو په دومره موده کې د زید مالکانه تصرفات کتلو سره دعوی کړې ده.
۱: آیا په دومره موده کې چې کوم سړی بغیر دشرعی عذر نه سکوت وکړی او بیا د میراث دعوی وکړی د هغه اصحاب حدود ذکر هم ونکړی، او حدود هم غلط بیان کړی، او د میراث په دعوی کې وارثان هم بیان نه کړی او د جر ذکر هم نه کوی نو بیا د دومره مودې نه پس به دا دعوی مسموع وی یا نه؟
۲: بغیر د حدود د ذکر کولو نه او بغیر د ذکر د اصحاب حدود نه به دعوی مسموع وی یا نه؟ ۳: د میراث دعوی بغیر د جر د ذکر نه او بغیر د وارثانو د عدد بیانولو نه به مسموع وی یا نه؟

**الجواب:** ۱: په مورث باندې ترک دعوی او ذکر شوې مودې پورې ترک دعوی په وارث مدعی علیه باندې دلیل د عدم حقیقت د مدعی او کذب د دعوې دې. په دې وجه د داسې قسم زائد المیعاد دعوی عند الحکام مسموع نه ده، په دې قسم دعوی باندې د فتنو دروازې پرانستلې کیږی.
۲: د زمکې په دعوی کې ذکر د حدود صحیحه او ذکر د اصحاب حدود هم ضروری دې او ددې شرط په نه کیدلو کې به دعوی قابل سماعت نه وی.
۳: د میراث په دعوی کې مورث اود مورث نه وارث پورې جر او بیان عدد د وارثانو او نفی د غیر هم ده، د دې شرطونو نه بغیر دعوی قابل سماعت نه ده، د دې وجوهاتو په بناء باندې د عمر مدعی دعوی په زید باندې د قاضی په وړاندې واجب الرد ده. دلائل لاندې لیکلې شی!

أما اذا مضى على الدعوى ثلاثون سنة بلا عذر فلا تسمع الدعوى الخ، رد المحتار ٤:٩٧٢ وأيضا فى المجلة ٩٨٤، وأيضا فى شرح المجلة ٩٩٣، وأيضا فى التكملة ٤٨٧، وفى الشامية ٥:٤٣٢، وفى المجلة ١١٣٠، وأيضا فى الخيرية ٢:٢٩، وأيضا فى الخانية ٢:٤٧٩، وأيضا فى شرح الالياس ٤٦: وكذا فى الكاملية ١٨٣ وأيضا فى التكملة ٧:٣٤٧ وكذا فى الأشباه والنظائر ٢١٤

په شرط د صحيح كيدو ددې جواب تصديق فرمائيلو سره د شكريه موقع راكړئ...... بينوا توجروا

المستفتي: شنكار مدعى عليه، سندرى تحصيل واړى ضلع دير... ٥ ربيع الاول ١٤٠٢هـ

**الجواب**: دا جواب صحيح دي او دا دعوى به د قاضى په مخكښې ناقابل سماعت وى، او د ميراث دعوى به هم د ميراث د تاخير د وجې نه ناقابل سماعت وى. كما فى ردالمحتار ٤/٣٤٣ (١) وتنقيح الفتاوى ٢/٥ (٢) او قطع د اشجار دليل د ملک دې، كما فى الخلاصة ٢/٢٦٠. واليد فى الاجمة والغيضة انما يثبت بقطع الشجر وبيعها من غير منازع، (٣) وفى رد المحتار ٣/٣٥٤ واليد

---

(١) قال العلامة ابن عابدين: وقد نقل في الحامدية عن المهمنداري أنه كتب علي سوال آخر فيمن تركت دعواها الارث بعد بلوغها خمس عشرة سنة بلا عذر ان الدعوي لا تسمع الا بأمر السلطاني.

(ردالمحتار ٤:٣٨١ مطلب هل يبقي النهي بعد موت السلطاني)

(٢) وفي فتاوي تنقيح الحامدية: (سئل) في رجل يريد الدعوي علي زيد بميراث أمه المتوفاة من أكثر من خمس عشرة سنة وزيد يجحد ومضت هذه المدة من بلوغه رشيدا ولم يدع بذلک ولا منعه مانع شرعي وهما مقيمان في بلدة واحدة فهل تكون دعواه بذلک غيرمسموعة للمنع السلطاني (الجواب) نعم (فتاوي تنقيح الحامدية ٢:٥ كتاب الدعوي)

(٣) (خلاصة الفتاوي ٤:٩٥ كتاب الدعوي، الفصل الثاني في دعوي الضياع الخ)

دليل الملك(١) وهوالموفق

## منلي شوي حق د دعوې د تاخير د وجې نه نه ساقط کيږي

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زيد په عمر باندې ځمکه خرڅه کړه، هغه سره په دې ځمکه کې د خوئيندو حصه وه، خوئيندو په زيد باندې هيڅ دعوی ونکړه، تردې چې هغه وفات شوې په دې باندې اتيا کاله تير شو، نو اوس د هغه خوئيندو اولاد دعوی کولې شي يا نه؟ بينواتوجروا

المستفتي: عالمگير کوهستاني

**الجواب:** که دا ماما د خپلو خوئيندو د ميراث حق منی خو د دعوی د تاخير د وجې نه ئې ورکولو ته تيار نه وی نو په دې صورت کې د خوئيندو اولاد ته د خور حصه ورکول قضاء او ديانة ضروری دی، لانهم صرحوا بأن الحق لا يسقط بتقادم الزمان اهـ (٢) وبأنها تسمع لو اعترف الحق، فليراجع الى رد المحتار.٥/٤٢ (٣) حلبي. وهوالموفق

## د انگريزانو خانانو ته د ورکړې شوې ځمکې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په علاقه کې اکثر ځمکې په طور د جاگير انگريزانو خانانو ته ورکړې وې، هغه ځمکو لره زمونږ پلار نيکۀ د هغه وخت نه کرل شروع کړې وو کله چې دا بالکل شاړه او غير آباد وې، په دې کې به خلقو گډې بيزې څرولې پس هغوی ترې

---

١ ) (ردالمحتار ٣:٤٩٣ كتاب الدعوي، قبيل باب دعوي النسب)

٢ ) (الأشباه والنظائر ٢٢٢ كتاب القضاء والشهادات)

٣ ) قال العلامة ابن عابدين: الثالث عدم سماع القاضي لها انما هو عند انكار الخصم فلو اعترف تسمع ... اذ لا تزوير مع الاقرار.

(ردالمحتار ٤:٣٨١ مطلب هل يبقي النهي بعد موت السلطان)

نه قالنتو بوتی لرې کړل او د کروندې قابله ئي کړه.

اوس حکومت پاکستان هم هغه ځمکې د زرعی اصلاحاتو د قانون د لاندې زمونږ په نوم باندې الاټ (ثبت) کړې دی خو د ځمکې مالکانو د دې حکم خلاف په عدالت کې مقدمه دائر کړې ده مونږ دا مقدمه په هائی کورټ او سپریم کورټ (عدالت) کې اوګټله

اوس خو ورځې مخکې اسلامی شرعی عدالت پاکستان د دې الاټ (ثبت شوي) کړې ځمکو په باره کې فیصله ورکولو سره د دې الاټمنټ احکاماتو ته خلاف شرع وويل، لهذا مونږ ته د دې شرعی حکم بيان کړئ؟ **جزاکم الله خيرا**

**المستفتي**: حاجی گل محمد. مندنی تحصیل تنګی ضلع چارسده. ۲۱ ستمبر ۱۹۸۹ء

**الجواب**: کومه علاقه چې د انګریزانو د دور نه مخکې دار الاسلام وه نو د انګریزانو د دور نه پس به دا علاقه د امام ابوحنيفه رحمه الله د اصولو مطابق د مخکې په شان دارالاسلام وی، هغه اوصول د ردالمحتار ۳۴۹/۳ په حاشیه باندې موجود دې (۱) نو هرکله چې انګریزان د دې علاقو مالک نه دی جوړ شوی نو د هغوی چاته ورکول د ملک سبب نه شی جوړیدې، خو د موات آبادونکې د هغې مالک کيږی، **كما هو لفظ الحديث وذهب اليه ابويوسف ومحمد رحمهما الله تعالى** (۲) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة الحصكفي: لا تصير دارالاسلام دارحرب الا بأمور ثلاثة (باجراء أحكام اهل الشرک وباتصالها بدار الحرب وبان لايبقي فيها مسلم أو ذمي آمنا بالأمان الأول. (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۳:۲۷۷ قبيل باب العشر والخراج)

۲) قال العلامة السهارنفوري: حدثنا محمد المثني ... عن سعيد بن زيد عن النبي ﷺ من احيي أرضا ميتة اي غير مملوكة لمسلم ... فهي له أي صارت تلك الأرض مملوكة له ولكن اذن الامام شرط له عند أبي حنيفة وخالفه صاحباه والشافعي وأحمد محتجين باطلاق الحديث.

(بذل المجهود علي سنن ابي داؤد ۴:۱۶۹ باب احياء الموات)

## د غصب په دعوی کې ذوالید او خارج څوک دی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د ځمکې د مالک زید نه بکر ځمکه غصب کړلو سره په هغې باندې قابض شو، یو کال پس هغوی په شریعت باندې فیصله کول وغوښتل نو آیا غاصب (بکر) ذوالید دې یا نه؟ که ذوالید دې نو د غاصب دپاره قسم شته یا نه؟ حال دا چې د غاصب دپاره څوک ګواه نشته؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم..... ۱۷ جولائی ۱۹۷۶ء

**الجواب:** که زید دا ثابته کړي چې په دې ځمکه باندې بکر په طور د غصب قبضه کړې ده نو زید به ذوالید وی کنه نو ذوالید به نه وی.

کما فی التکملة ۲: ۱۷ ولو غصب أرضا وزرعها فادعی رجل أنها له وغصبها منه فلو برهن علی غصبه واحداث یده یکون هو ذاید والزارع خارجا ولو لم یثبت احداثه فالزارع ذوید والمدعی هو الخارج الخ(۱). وهو الموفق

## د دعوې د عدم سماعت په وجه د مقدمې نقصان د حکومت نه وصولول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو تعلق دار چالاک سړي د غیرمسلم د پرېښودلې شوي کورونو دخل او قبضه په ذریعه د سپارلو حاصله کړې او وروستو منکر کیدو سره د ملکیت دعویدار وی، او د مالکانو قبضه په ذریعه د نوټس د حکومت په نوم ۲۴ مارچ ۵۱ء او فیصله ۱۸ جون ۵۳ء، ۱۳ فروری ۵۲، ۱۹ اګست ۵۲ء، ۸ دسمبر ۵۲ء، ۱۸ جولائی ۲۰ء باندې ثابت شی، او وروستو د سروے په ذریعه د رجسټر د ۱۱ جولائی ۵۵ء دعوی د مهاجر کشمیری نصیر الدین په ذریعه د تکذیب فیصله جات ۱۸ مارچ ۲۰ء وغیره وکړی، او مدعیان د تکمیل د درخواست په ذریعه د سماعت تکمیل طلب کړی خو بغیر د سماعت نه یک طرفه فیصله وشی، مدعیان د دې فیصلې خلاف دعوی د تکمیل د سماعت دپاره د سول

---

۱) (تکملة ردالمحتار ۲: ۱۲ باب دعوی الرجلین، مطلب من أهم مسائل دعوی الرجلین معرفة الخارج من ذي الید)

جج په عدالت کې دائر کړی خو د مقدمې دوران عبدالقدیر وفات شی، او عدالت په وخت باندې خبر نه کړې شی، په دې وجه باندې دعوی د سماعت نه مانع شی، اګر چې د عبدالقدیر مدعی په ځای د مقدمې فیصله جات جواب طلب دی نو عرض دې چې د عدم سماعت په صورت کې هم مدعیان د نوټس په ذریعه او د حکومت په فیصلو سره د خپلې مقدمې د نقصان وکیل وغیره د طلب کولو حقدار دی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالشکور وغیره، مدعیان ساکنان پیرپیائی نوښار، ۲۵ جنوری ۱۹۷۲م

**الجواب:** شرعا د دې نقصان نه ادا کول ضروری دی او نه نهٔ ادا کول. لهذا د مروجه قانون مطابق ستاسو وصول د مواخذې قابل نه دې. (المسلمون عند شروطهم)الحدیث.(١) فقط

**پیسې اخستلو سره د حق شفعه نه د لاس اخستلو نه پس د ملکیت دعوی کول**

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام ددې مسئلې په باره کې چې دترهٔ اود وریرونو بیله بیله ځمکه وه، خو د دې ځمکې حدود بیل وو بیا دې ترهٔ خپله ځمکه په نورو ورونو باندې خرڅه کړه،نو دهغه ورارهٔ د هغه په ژوند کې په خرڅه کړې ځمکه باندې د شفعه دعوی وکړه، نو هغوی هغه ته د فیصلې کولو دپاره وویل خو مدعی حاضر نه شو،بیا د دې دواړو ورونو د وفات نه پس د هغوی په اولاد باندې دې مدعی تقریبا دیرش څلویښت کاله پس د دعوې اظهار وکړو، نو د دې دعوې په بناء قوم دا فیصله وکړه چې مدعی ته دې څلویښت زره روپۍ ورکړې شی نوهغه به خپله دعوی پریږدی، د دې ذکر شوې فیصلې ګواهان موجود دی خو د دې باوجود دا مدعی تقریبا اتهٔ کاله پس دا دعوی کوی چې ما فیصله صرف د شفعې په باره کې کړې وه او زما د حق دعوی باقی ده کومه چې ما نه ده معاف کړې، نو اوس د دې مدعی دا دعوی د خپل حق په باره کې څنګه ده؟ د هغه حق ثابتیدلې شی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: خواجه عبدالماجد صدیق متعلم حقانیه......٧ ستمبر ١٩٨١م

---

(١) (صحیح البخاري ١:٣٠٣ کتاب الاجارة، باب أجرة السمسرة)

**الجواب:** دا مدعی نه د خلورو زرو روپو مستحق دې او نه د شفعه کولو،

أما الأول فلما في شرح التنوير على هامش ردالمحتار ۴:۴۰ :لا يجوز الاعتياض عن الحقوق المجردة كحق الشفعة، وأما الثاني فلما في ردالمحتار ۴:۱۴:قال في الأشباه فلو صالح عنها بمال بطلت ورجع (۱)

پس د هغه د دعوې حق ساقط دې، او كه مدعی دا دعوی كوی چې د هغه په خرڅه شوې ځمكه كې زما حصه ده نو چې هر كله ددې مدعی او مدعی عليه ځمكه تقسيم شوې ده او بيله بيله ده او په قسمت كې غبن فاحش هم نه مسلم دې اونه ښكاره،نو دهغه دعوی غير اصولی دعوی ده (۲) وهوالموفق

## د مدعی او مدعی عليه ترمينځ د اختلاف په صورت كې به مقدمه كوم قاضی ته وړل وی

**سوال:** مايقول العلماء الكرام في المسئلة الآتية: ان المدعی والمدعی عليه كلاهما سكان الجيان خيل أفغانستان، والمدعی الآن يسكن في الباكستان ويريد مدافعة الخصومة الى قاضی الباكستان. والمدعی عليه ينكر ذلك ويقول انی أريد مرافعة الخصومة الى قاضی الجيان خيل في افغانستان، لأن المتنازع فيه موجود في الأفغانستان والمدعی عليه يسكن في الجيان خيل أفغانستان فقول من صحيح؟ بينواتوجروا

المستفتی: حاجی محبوب، گيان خيل مهاجر ... ۱۷ ربيع الاول ۱۴۰۳ھ

---

۱ (ردالمحتار ۴:۱۵ كتاب البيوع، مطلب لا يجوز الاعتياض عن الحقوق المجردة)

۲ قال العلامة الحصكفي :( ولو ادعي أحدهم أن من نصيبه شيئا) وقع (في يد صاحبه غلطا وقد) كان أقر بالاستيفاء او لم يقر به(لم يصدق الا ببرهان) أو اقرار الخصم او نكوله... (ولو اقتسما دارا وأصاب كلا طائفة فادعي أحدهما بيتا في يد الآخر أنه من نصيبه وانكر الآخرفعليه البينة(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۵:۱۸۶ كتاب القسمة)

**الجواب:** هذا ممـا اختلفوافيه لكن المفتى به أن الخيار للمدعى عليه، كما فى الشامية ٤١٩:٤: قاضيان فى مصر طالب كل واحد منهما أن يذهب الى قاض فالخيار للمدعى عليه عند محمد وعليه الفتوى(١)، كذا فى خزانة المفتيين ١٢٨:٣. والله أعلم

## د مسلم يا مبرهن جاګير د الاتمنټ (ثبت کولو) حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په موجوده وخت کې چې د ځمکو کوم الاټمنټ حکومت کوی، آیا دا جائز دې؟ په داسې حال کې چې بعض ځمکه داسې هم وی کومه چې انګریزانو په خپل دور اقتدار کې موجوده ملکونو ته د جاګير په طور ورکړې وی یعنی اخستلې جائيداد نه وی او موجوده حکومت د قابل الاټمنټ ځمکې څه نه څه قيمت هم د ځمکې مالک ته ورکوی؟ بينوا توجروا

المستفتی: نثار احمد هيرو شاه، ملاکنډ ايجنسی ١٩ جولائی ١٩٧٩ء

**الجواب:** که د دې ځمکو جاګير کيدل او د قومی دشمن صله کيدل مسلم يا مبرهن وی، نو دهغې الاټمنټ بغير د شک او شبهې نه جائز دې (٢) خصوصا دهغه جاګيردارانو ځمکې کوم چې د مستربهټو حمايت کونکی وو. وهوالموفق

---

١) (ردالمحتار ٤٦٦:٤ كتاب الدعوي)

وقال العلامة ابن عابدين: (سئل) فيما اذا كان بالبلدة قاضيان فوقعت الخصومة بين المتد اعيين فالمدعي يريد أن يخاصمه الي قاض منهما و المدعي عليه يريد الآخر فلمن يكون الخيار (الجواب) الخيار للمدعي عليه عند محمد وعليه الفتوي كما في البزازية وبمثله افتي ابن نجيم صاحب البحر والشيخ الحانوتي والعلامة الرملي كما في فتاوٰه.

(فتاوي تنقيح الحامدية ٣١٧:١ كتاب القضاء، هل العبرة بقاضي المدعي الخ)

٢) وفي المرقاة: وقال قوم ان صلات السلاطين تحل للغني والفقير اذا لم يتحقق أنها حرام وانما التبعة علي المعطي قالوا لأن النبي ﷺ قبل ...[بقيه بر صفحه آئنده...

## د دفع د مدعی دپاره په دفع باندې معتبر شهادت ضروری دې

الاستفتاء : ١٦ اګست ١٩٨٦ء

### فیصله نامه

**مدعی نمبر ١** : ګل ضمیر، خان ضمیر، مدعی نمبر ٢: خان مدار

**مدعی علیه** : ملا میر او جیلانی

په باره د معلومې او محدودې ځمکې کومه چې د مدعی علیه په قبضه کې ده (کیفیت) ګل ضمیر او خان ضمیر په دې ځمکه کښې، کومه چې په بیع اخستلې شوې ده د پلار نیکهٔ جائیداد نه دې، باقاعده د حصې دعوی کوی او خان مدار وائی چې د دې ځمکې د خرڅونکی زه هم وارث او رشته دار یم، څنګه چې دا اخستونکی د دې بائع رشته دار او وارثان دی، او دا دواړه مدعی علیه د دې درې واړو دعوی کونکو د دعوې نه انکاری دی یعنی وائی چې دا ځمکه په بیع اخستلې شوې ده، او په دې کې مونږ ګل ضمیر او

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] هدیة المقوقس ملک الاسکندریة واستقرض من الیهود مع قوله تعالیٰ اکٰلون للسحت قالوا وقد أدرک جماعة من الصحابة رضي الله تعالیٰ عنهم أیام الظلمة... وأخذوا منهم فمنهم أبوهریرة وابن عباس وابن عمروغیرهم رضي الله عنهم. (مرقاة المفاتیح ١٤٨: ٦ باب العطایا)

وقال العلامة المفتي محمد شفیع : د اقطاع یو صورت دادې چه چاته ځمکه ورکړې شی هغه مالک جوړکړې شی په دې صورت کې به دهغه د بیع او شراء وغیره ټول مالکانه تصرفات جائز وی. (اسلام کانظام اراضی ٢٥، اقطاع یعنی عطاء جاگیر کی مختلف صورتیں)

وقال العلامة اللکهنوی : کومې بادشاهی عطایانې چه د همیشه انعام په طور وی، اود معطی له په قبضه کې راشی هغه د معطی له ملک جوړیږی، او دهغه د بیع او هبې وغیره ټول ملکیه تصرفات صحیح وی.

... وفي الواقعات الانعام المخلد والمؤبد بمنزلة الملک یجوز بیعه وشراؤه علي الصحیح. (مجموعة الفتاوی ١٣٥: ٢ کتاب البیع، شاہی عطااور وظائف کے متعلق مسئلہ)

خان ضمیر شریک وو خو دې دعوی کونکو خپله توله ځمکه په مونږ باندې
د عوضانه په معاوضه کښې خرڅه کړې ده او مونږ سره ئې صلح کړې ده

**فیصله**: چونکې خان مدار نه اخستل او خرڅول کړی دی او نه هغه په وخت
باندې د شفعې مقدمه دائر کړې ده لهذا د هغه دعوی او استحقاق ختم دې،
او چونکې ملا میر او جیلانی د نفس شرکت قائل دی خو دفع او مدافعت
کوی چې دې دعوی کونکو مونږ سره په معاوضه کې مصالحت کړې دې نو
اول دې دا مدافعین شهادت شرعیه حلفیه پیش کړی او که هغوی سره
باقاعده شهادت نه وی نو ګل ضمیر وغیره دې قسم وکړی، الی **ماذکرفی
شرح المجلة** ٩٣١: م ١٦٣٢ (١) نو هم د دې قاعدې په بناء باندې ملا میر او
جیلانی درې ګواهان پیش کړل (١) مسمی محمد نذیر ولد تازه میر ٢
مسمی شیر حسن ولد لعل ٣ مسمی کله داد ولد راز میر، هر یو پټه په قسم
سره شهادت ورکړو چې دا اخستلې شوې ځمکه کومه چې متنازع فیه ده، د
عوضانه په معاوضه کې ملا میر او جیلانی ته ورکړې شوې ده، په دې کې د
ګل ضمیر او خان ضمیر هیڅ حصه باقی نه ده، او دا معاوضه کلکه ده پس
په دې بناء باندې دا فیصله شرعیه واورولې شوه، چې دا اخستلې شوې
ځمکه د ملا میر او جیلانی ملکیت دې په دې کې د نورو دعوی کونکو هیڅ
حصه نشته، خو که په دې ځمکه کې د فریق مخالف آبادی شوې وی نو
هغوی ته به صرف د آبادئ قیمت ورکولې شی (٢) **وهوالموفق**

---

١) وفي شرح المجلة: اذا أثبت من ادعي دفع الدعوي دفعه تندفع دعوي المدعي والا يحلف المدعي الأصلي بطلب صاحب الدفع فان نكل المدعي عن اليمين، يثبت دفع المدعي عليه وان حلف تعود دعواه الأصلية (شرح المجلة ٧٥: ٥ المادة: ١٦٣٢ كتاب الدعوي)

٢) وفي شرح المجلة: اذا بني أحد أصحاب الحصص لنفسه في الملک المشترک القابل للقسمة بدون اذن الآخرين ثم طلب الآخرون القسمة تقسم فان اصاب ذلک البناء حصة بانيها فيها وان أصاب حصة الآخر فله أن يكلف بانيه هدمه ورفعه أي اذا لم يرض بدفعه قيمته له. (شرح المجلة ١١٨: ٤ المادة: ١١٧٣ كتاب الشركة)

## د بیع د عقد نه پس د وفا یا د ګاڼې دعوی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې (زید) خپله ځمکه په بل سړي بکر باندې په پنځلس سوه شل روپئ (۱۵۲۰) باندې بغیر د شرط او وعدې نه په بیع قطعی خرڅه کړې وی او دا بیع نامه بائع (زید) په خپل قلم سره لیکلې وی او د بیع قطعی سند ورکولو باندې اقراری هم وی او د مشتری (بکر) په قبضه کې ځمکه د لسو کالو نه پاتې شوې وی او دستوری حکومتی تیکس ئې هم ادا کړې وی، د دې نه وروستو بکر د بل سړي (خالد) په لاس باندې په درې زره روپئ باندې خرڅه کړې وی، او دویم مشتری (خالد) هم د یو نیم کال پورې قابض پاتې شوې وی او دویم بائع (بکر) په بیع قطعی باندې اقراری وی او بائع اول (زید) په خپل کلی کې موجودیدو سره قصدا په دې بیع باندې خبریدلو سره سکوت هم کړې وی بیا څو میاشتې پس اولنی بائع (زید) اول مشتری (بکر) ته تلو سره مشتری ثانی (خالد) نه زیاتې پیسې ورکولو سره طلب شراء کړې وی، هم دغه شان دواړه سندونه. د حکومتی تیکس رسیدونه او بغیر د شرط او بغیر د وعدې نه د مذکوره محدود ځمکی په بیع قطعی باندې ګواهان هم موجود وی اوس بائع اول (زید) دبیع وفا یا رهن دعوی وکړی، نو آیا د هغه دعوی د شریعت په رڼا کې قابل سماع کیدې شی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** سید غفار، J.A.V ټیچر سنګوا چترال .....۱۲۱ کتوبر ۱۹۶۹ء

**الجواب:** په صورت مسئوله کې کله چې طرفین د ځمکې په بیع او ګاڼه کیدو کې مختلف دی یا د بیع وفا او بیع قطعی په تعین کې مختلف دی لهذا په هغوی کې چې کوم سړې ګواهان پیش کړی هغه اوګټله. (۱) او که

---

(۱) وفي شرح المجلة: اذا أظهر الطرف الراجح العجز عن البينة تطلب البينة من الطرف المرجوح وان أثبت فبهاوالا يحلف معلوم أن الطرف الراجح اذا أقام البينة يحكم له. (شرح المجلة ۴۹۴:۵ المادة: ۱۷۶۹)

دواړه پیش کړي نو د بیع د مدعي قول به منظور وي. (١) لان المدعي في الحقیقة مدعي البیع والآخر منکر فافهم. فقط

## د ملکیتي نهر په غاړه باندې ونې کرل

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د کلي نه بهر یو حوض دې چې په هغې کې د یوې غریزې نالې نه اوبه راځي د دې حوض نه د کلي خلق په طور د استحقاق خپل خپل پټي خړوب کوي، حوض او د هغې نه وتلې شوې نهر د زید ملکیت دې د حوض په غاړه باندې تقریبا د ځلویښتو کالو نه د زید ډیرې ونې ولاړې دی عمر (کوم چې د دې حوض نه استحقاقا خپل پټي خړوب کوي) زید ته ویلې دی چې دا ونې د حوض اوبه جذب کوي د دې نه په اوبو کې کمې راځي کوم چې زمونږ دپاره مضر دې لهذا دا ونې ویستل پکار دي، زید په جواب کې وائي چې دا نهر او غدیر (حوض) دواړه زما موروثي ملکیت دې او د دومره اوږدې مودې نه د اونو په باره کې چا هم اعتراض نه دې کړې، مهرباني کولو سره د دې مسئلې وضاحت وکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوي سیف الله جداني. فاضل حقانیه... ٢٦ جولائی ١٩٥٦ء

**الجواب:** که دا حوض او نهر د زید ملکیت وي نو دا ونې به برقرار ساتلې شي. بناءً علی الأصل المشهور أن القدیم یترک علی قدمه (٢) ولا یمنع أحد

---

(١) وأیضًا فیها: ترجح بینة البیع علي بینة الهبة والرهن والاجارة... مثلا اذا ادّعي أحد علي آخر بقوله بعتک المال الفلاني أعطني ثمنه وقال المدعي علیه انت کنت وهبتني ذلک وسلّمتني اياه ترجح بینة البیع.

(شرح المجلة ٥:٤٨٦ المادة ١٧٦٤)

(٢) (شرح المجلة ١:٢٣ المادة: ٦)

من التصرف فی ملکه أبدًا الا اذا أضر بغیره ضررًا فاحشًا، (شرح المجلة ۶۵۷ م:۱۱۹۷) [۱] والأصل الأول فیها ۲۱ م:۶_ او دا ضرر فاحش نه دې ځکه چې د حوائج اصلیه نه مانع نه دې، بله دا کله چې د اغیارو د نهر په غاړه ونې لګول ممنوع نه دی، نو د مملوکه نهر په غاړه ونې لګول به په طریق اول ممنوع وی. کما فی الهندیة ۴۳۵/۶ نهر ساقیة القوم فی بستان رجل فلصاحب البستان ان یغرس علی حافتیه [۲] وهوالموفق

## د خوی په څادرو خرڅولو سره حاصل شوو پیسو باندې د پلار د اخستلې شوې ځمکې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د منګا خان په دوه ځامنو کې میان محمد، څادرې رنګ کولې او هغه څادرې به د هغوی والد صاحب په بل کلی کې خرڅولې، په دې کاروبار سره میان محمد سره کافی پیسې راجمع شوې چې په هغې سره هغوی ځمکه واخستله، د میان محمد او منګا خان د بې تعلیمه کیدو د وجې نه د هغوی د ترۀ ځوی فضل الهی د دې ځمکې انتقال د هغه د پلار (منګا خان) په نوم باندې وکړو، والد هغه وخت هم وویل چې انتقال د میان محمد په نوم باندې کول پکار وو ځکه چې دا ما د هغه په پیسو باندې اخستلې ده، او په مرض الوفات او یوم وفات کې ئې هم دا وویل، د پلار د وفات نه پس تر دولسو کالو پورې ځمکه میان محمد خوړله او حکومت د دې ځمکې انتقال د هغه دوه ځامنو (میان محمد او ګوهر دین) او یوې لور په نوم باندې وکړو، لور ئې وویل زه حصه نه اخلم او د ګوهر دین نه ئې کله چې د انتقال د واپسئ مطالبه وکړې شوه نو هغه میان محمد ته وویل چې فصل ته خوره ځمکه دې زما په نوم باندې وی، اوس د کورنئ جهګړې په وجه باندې ګوهر دین د میان محمد نه د خپلې

---

۱) (شرح المجلة ۱۴۰:۴ المادة ۱۱۹۷)

۲) (فتاوی عالمگیریة ۱۰۴:۵ الباب الثالث فیما یحدثه الانسان وما یمنع منه الخ)

حصي طلب ګار دي، ځکه چې ځمکه د هغه په نوم باندې هم ده او میان محمد وائي چې ځمکه زما ده ځکه چې زما په پیسو باندې اخستلې شوې ده، لهذا تاسو شرعي فیصله بیان کړئ؟ **بینواتوجروا**

**المستفتي:** امام دین، فضل الهی، کیمل پور.... ١٦ مارچ ١٩٦٩م

**الجواب:** که د ګوهر دین په اقرار یا د میان محمد د ګواهانو نه دا ثابته شي چې منګا خان د شرکت په طور دا ځادر نه خرڅولو بلکې د اعانت او امداد په طورئې خرڅولو نو په دې صورت کې د ګوهر دین دپاره ضروري ده چې د هغه انتقال واپس کړي. (١) او که ګوهر دین د خپل پلار د شرکت د حصه دارئ مدعي وي او میان محمد د ګواهانو په ذریعه دا ثابته نه کړې شي نو میان محمد په قسم خوړلو سره هم کامیابیدلې شي. (٢) وهوالموفق

## د دعوې د ابراء طریق فیصله

### فیصله او طریق فیصله

**طرفین:** ١: مسمی معرفت شاه او مسمی صاحب شاه او مسمی خانه دین وغیره

---

١) قال العلامة المرغيناني : واذاأ قرالحر العاقل البالغ بحق لزمه اقراره مجهولا كان ما أقربه أومعلوما. (الهداية ٣:٢٣١ كتاب الاقرار)

وفي شرح المجلة: ادعي ارثا فبرهن المدعي عليه أن مورثه أقر أن المدعي ليس له أو هو ملك المدعي عليه أو علي اقرار الوارث قبل موت مورثه أو بعده أنه لم يكن لأبيه أو علي اقراره أن أباه مات والدار ليست له كان كله دفعا. (شرح المجلة ٥:٧٣ فروع المادة ١٦٣١)

٢) وفي شرح المجلة: اذا أثبت من ادعي دفع الدعوي دفعه تندفع دعوي المدعي والايحلف المدعي الأصلي بطلب صاحب الدفع فان نكل المدعي عن اليمين يثبت دفع المدعي عليه وان حلف تعود دعواه الأصلية. (شرح المجلة ٥:٧٥ المادة: ١٦٣٢)

۲: مسمی طراز گل، مسمی احبار گل، مسمی محمد غلام، مسمی محب گل او مسمی واحد شاه

**دعوی په باره د ځمکې کښې**

مسمی طراز گل وغیره دا دعوی کوی چې مسمی معرفت شاه او مسمی صاحب شاه وغیره مونږ ته ابراء کړې ده، او د خپلې دعوې نه ئې لاس اخستلې دې او مسمی معرفت شاه وغیره انکاری دی.

طریق فیصله دا ده چې مسمی طراز گل وغیره دې په شهادت شرعیه سره ابراء ثابت کړی.

**فیصله**: دمسمی طراز گل وغیره دوه گواهانو ۱: مسمی محمد رسان ولد محمد رسول ۲: مسمی آدم خان ولد میر شاه حلفیه شهادت ورکړو چې دې معرفت شاه، چې د ټولو طرفونو مختار او وکیل وو، دې طراز گل وغیره ته ابراء کړې وه، پس د دې شهادت په بناء دا ځمکه د مدعی طراز گل وغیره ملک شو، او د طرف مخالف معرفت شاه وغیره په دې کې هیڅ حق پاتې نه شو.(۱) بدهشعبان ١٤٠٤ھانگشت:معرفت شاه،انگشت: صاحب شاه، انگشت : خانه دین، انگشت : محمد رسان، انگشت : طراز گل، دستخط : احبار گل، انگشت : محمد غلام، انگشت : محب گل، انگشت : واحد شاه، دستخط : آدم خان.

**د هبې مدعی او د میراث د مدعی ترمینځه طریق فیصله**

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې دعوی کوی چې دا جائیداد ماته پلار په ژوند باندې راکړې وو، بل وروړ منکر دې، که گواهان وی او که نه وی څه حکم به وی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی**: (مفتی) محمد سردار (شیخ الحدیث) دارالعلوم عربیه تل .. صفر ١٤٠٥ھ

---

۱) قال العلامة ابن الهمام: قال وما سوى ذلك من الحقوق يقبل فيها شهادة رجلين أو رجل وامرأتين سواء كان الحق مالًا او غير مال مثل النكاح والطلاق... والهبة والاقرار والابراء. (فتح القدير ٦:٤٥١ كتاب الشهادة)

**الجواب:** په دې کې بعض د میراث دعوی کونکی دی او بعض د هبې او که دهبې د مدعی قابض کیدل نه مسلم وی او نه مبرهن، نو د هغه دعوی به کالعدم کیدو سره به جائیداد باقاعده تقسیمیږی (۱) اوکه د موهوب له قابض کیدل ثابت شی نو دا مدعی علیه دې او دافع دې، که هغه سره شهادت شرعیه نه وی نو دا مخالف به قسم خوری. (۲)

بهر حال د طرفین د بیاناتو نه به معلومیږی چې دا دعوی الرجلین ده یا دعوی او دفع د دعوې ده. وهوالموفق

## د ناحق دعوې د وجې نه د مدعی نه د عدالت خرچه اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید په عمرو باندې ناحق دعوی وکړه. عمر د شریعت په رڼا کې ځمکه وګټله. اوس عمرو وائی چې په دې مقدمه باندې چې زما څومره خرچه راغلې ده، نو آیا د هغې زه د زید نه د اخستلو حقدار یم یا نه؟ حال دا چې زه د زید نه په وصولولو باندې قادر هم یم. نو آیا د هغه نه په وصولولو باندې به زه مجرم جوړیږم یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولانا بدر منیر مهتمم دار العلوم مدنیه بټ خیله ملاکنډ ۱۶ جون ۱۹۸۶ء

---

(۱) وفي الهداية: و تصح بالإيجاب والقبول والقبض...والقبض لا بد منه لثبوت الملك...ولنا قوله عليه السلام لا يجوز الهبة إلا مقبوضة والمراد نفي الملك.
(هداية ۳:۲۸۳ كتاب الهبة)

(۲) وفي شرح المجلة "اذا اثبت من ادعي دفع الدعوي دفعه تندفع دعوي المدعي والا يحلف المدعي الأصلي بطلب صاحب الدفع فان نكل المدعي عن اليمين يثبت دفع المدعي عليه وان حلف تعود دعواه الأصلية.
(شرح المجلة ۵:۷۵ المادة ۱۴۳۲ كتاب الدعوي، الفصل الثاني في دفع الدعوي)

**الجواب:** چونکې دا مدعى نه د دې خرچ مباشر دې او نه مکره دې لهذا په هغه باندې به خرچ واجب الادا نه وی (١) وهوالموفق

....

١) وفي شرح المجلة: اذااجتمع المباشروالمتسبب يضاف الحكم إلي المباشر ...المباشر هوالذي حصل التلف مثلا بفعله بلا واسطة ...والمتسبب ما حصل التلف لابمباشرته وفعله بل بواسطةهي العلة... وأما فعله فلاتاثيرله سوي أنه مفضٍ إليه فان اجتمعا يضاف الحكم الي المباشر.

(شرح المجلة للاتاسي رحمه الله ٢٤٩:١ المادة ٩٠)

# باب التحکیم

## د حکم په فیصله باندې اجرت اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو عالم دې کله چې هغه فیصله کوی او حکم د کتابت نه ورکوی نو هغه د مدعی او مدعی علیه نه تقریبا شپیتۀ روپئ اخلی او کله چې هغه په کتابت سره حکم نه ورکوی نو روپئ وغیره نه اخلی هم دغه شان حکم ورکوی نو دا پیسې اخستل جائز دی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولانا عبدالله جان، موسی خیل لورالائی بلوچستان

**الجواب:** چونکې کتابت صفت دې لهذا په دې باندې اجرت اخستل جائز دی او صرف په فیصله باندې د اجرت جواز د مستثنیاتو نه دې، او رزق په قدر د کفایت د قاضی دپاره جائز دې، نو د حکم دپاره هم جائز دې،

لانه محبوس فی حقهما کما أن القاضی محبوس فی حق المسلمین فکما أن رزقه من بیت المال فیکون رزق المحکم من مال الخصمین فافهم ولم أجده صریحا(۱). وهوالموفق

---

(۱) قال العلامة الحصکفي: یستحق القاضي الأجر علي کتب الوثائق والمحاضر والسجلات قدر ما یجوز لغیره کالمفتي فانه یستحق أجر المثل علي کتابة الفتوی لأن الواجب علیه الجواب باللسان دون الکتابة بالبنان...وفي الصیرفیة: حکم وطلب أجرة لیکتب شهادته جاز. (الدرالمختار ٥:٦٣ مسائل شتي، کتاب الاجارة)

وأیضا قال: وجواز رزق القاضي من بیت المال لو بیت المال حلالا جمع بحق والا لم یحل وعبر بالرزق لیفید تقدیره بقدر ما یکفیه وأهله في کل زمان ولو غنیا. (الدرالمختار ٥:٢٧٥ کتاب الحظر والاباحة، فصل في البیع)

...[بقیه حاشیه برصفحه آئنده...

## د فیصلې کولو نه پس په محکمین کې د بعضو د فیصلې نه انکار کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام ددې مسئلې په باره کې چې ددوه ډلو ترمینځه یوه معامله ده د هغې دپاره د قوم پنځلس معتبر اشخاص مقرر کړې شو، کوم چې نه علماء دی او نه قاضیان، نودې معتبر کسانو فیصله وکړه، د فیصله کولو نه پس په دې معتبر کسانو کې څو کسانو انکار وکړو، چې مونږ د مدعی او مدعی علیه ترمینځه فیصله نه ده کړې، اوس په دوی کې د څلورو پنځو مقرر کړې شوې سړو د فیصلې نه انکار کول به قبول وی یا نه؟ **بینوا توجروا**

المستفتی: سید احمد وزیرستانی متعلم دار العلوم حقانیه........١٩٦٩ء | ٢ | ١٦

**الجواب:** که د فیصلې دعوی کونکی شهادت خارجیه پیش کړی نو د هغوی قول به منظور وی، کنه نو نامنظور وی،

(فی الهندیة ٣: ٤٧٠) ولو حکما رجلین لابد من اجتماعهما حتی لو حکم أحدهما دون الآخر فان ذلك لایجوز (ولا یصدقان علی ذلك الحکم بعد القیام من المجلس الحکومة حتی یشهد[1]. وهوالموفق

## د یوې ډلې د حکم معزول کولو نه پس فیصله کول کالعدم ده

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې فریقین دوه

---

...بقیه ازحاشیه گذشته]

وقال العلامة أشرف علي التهانوي: په قضا باندې اجرت اخستل جائز نه دی. البته د بیت المال نه دکفایت په اندازه دنفقې أخستلو مستحق دې، په دې وجه چې دا سړې د مسلمانانو په حق کې محبوس (ګیر) دې. او بیت المال د مسلمانانو مال دې. او د محبوس نفقه د من له الحبس د مال نه په وجه د جزاء الحبس وی، پس په دې وجه دې مفتش او محکم لره اجرت اخستل جائزنه دی خو چونکې دا د یو خاص وخته پورې دهغه په کار کې مشغوله دې ددې وخت دپاره به دده ضروری نفقه د معاملې والا د مال نه اخلی. نود ضروری نفقې په اندازه ددې وخت اخستل به جائزوی. (امداد الفتاوی ٣: ٤٢٩ کتاب القضاء)

١ ) (فتاوي عالمگیریة ٣: ٣٩٩ کتاب أدب القاضي، الباب الرابع والعشرون في التحکیم)

علماء کرام د څمکې په باره کې په طور د ثالث تسلیم کړل، خو یو فریق ته په حکمین باندې د قوی قرائن د وجې نه یقین راغلو چې هغوی طرفداري کوی، په دې وجه د حکم اورولو نه مخکې یوې ډلې حکمین لره د معزول کولو اظهار وکړو او لیکلې عزل نامه ئې هم ورکړه، او په مجلس کې ئې اعلان وکړو چې دا حکمین مونږ ته منظور نه دی، او یو فریق د مجلس نه لاړو نو آیا د مجلس نه د تلو نه پس او د یوې ډلې عدم موجودگی او د عزل د اظهار باوجود حکمین د حکم اورولو او د شرعی فیصلې د صادر کولو شرعا مجاز دی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: حاجی سمندر خان، دره آدم خیل کوهاټ.... ٢٥ مئی ١٩٨٩ء

**الجواب:** ومنه الصدق والصواب: په شرط د صدق او ثبوت دا تحکیم کالعدم او دا فیصله غیر نافذ ده، کذافی تحکیم الهداية (١) ورد المحتار (٢) والبحر والهندیة وغیرها. وهوالموفق

## تحکیم بعد التحکیم جائز دی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې دا یوه فتوی ستاسو مخې ته ده (کومه چې ماته ملاؤ شوه)

دویم دا چې تحکیم بعد التحکیم جائز دې یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالستار، بلوچستان.... ٣٠ جون ١٩٧٥ء

**الجواب:** این حکم وطریق حکم درست و موافق شرع متین اند، نیز واضح

---

(١) قال العلامة المرغيناني: ولكل واحد من المحكمين أن يرجع مالم يحكم عليهما لأنه مقلد من جهتهما فلا يحكم الا برضاهما جميعا. (الهداية ٣:١٤٤ باب التحكيم)

(٢) وقال العلامة الحصكفي: وينفرد أحدهما بنقضه أي التحكيم بعد وقوعه كما ينفرد أحد العاقدين... فان حكم لزمهما ولا يبطل حكمه بعزلهما لصدوره عن ولاية شرعية. (الدرالمختار ٤:٣٨٧ باب التحكيم)

بادکه تحکیم بعد التحکیم درست است، کمافی ردالمحتار ٤: ٣٤٩ وفی البحر ولورفع حکمه الی حکم آخر حکماه بعد، فالثانی کالقاضی یمضیه ان وافق رأیه والاأبطله(١). وهوالموفق

## د خصمین محکم له معزول کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د قوم میروزئ او شبوزئ ترمینځه د زمکې اختلاف وو، په دې اختلاف کې د قوم بابکرزئی دعوی وه، نو غیر حکومتی قاضی په تاریخ ١٣ ستمبر ١٩٨١ء په انمبرک کې موقع او بیانات قلم بند کړل، او د قوم بابکرزئی مشهور ملک چهارشمه د قاضی مولوی دین محمد ولد ملا محمد جان خودیزئ ته د دعوی درخواست ورکړو، وروستو په ١ اکتوبر ٨١ء باندې قاضی دین محمد په تحصیل کې د فیصلې اورولو دپاره د دواړه قومونه مثلا قوم میروزئ او شبوزئ طلب کړل نو ملک چهارشمه جج صاحب ته د کوئټې نه ارډر راوړلو، خو قاضی صاحب د شریعت فیصله منع نه کړه او د دواړو قومونو ترمینځه ئې فیصله واوروله، لهذا په دې یو طرفه حالاتو باندې تاسو غور وکړئ چې آیا داسې صحیح ده؟ بینوا

المستفتی: ملک چهارشمه بابکرزئ...... ٢ ذی قعده ١٤٠٢هـ

**الجواب:** کله چې دا فیصله کونکې غیر حکومتی قاضی دې هغه لره څوک جج وغیره د فیصلې کولو نه‌نهٔ شی منع کولې، ځکه چې دا فیصله کونکی محکم دې، خو دا طرفین یا یو طرف هغه معزول کولې شی، پس که معترض والا طرف دا قاضی د تحکیم نه معزول کړو نو صحیح ده کنه نو دا طرف والا د دوباره فیصله کولو مجاز نه دی.(٢) والله اعلم بالصواب

---

١) (ردالمحتار ٣٨٨: ٤باب التحکیم)

٢) قال العلامة الحصکفي: ویتفرد أحدهما بنقضه أي التحکیم بعد وقوعه... فان حکم لزمهما ولا یبطل حکمه بعزلهما لصدوره عن ولایة شرعیة. ...[بقیه بر صفحه آئنده...

## د حکم ګواهانو ته د ښځې په طلاق باندې قسم ورکول

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زيد او عمرو د شرعي فيصلې دپاره يو عالم دين حکم مقرر کړو. عمرو کله چې دعوى وکړه او دوه معزز سړي ئې په طور د ګواه پيش کړل نو حکم ښځې ته د طلاق ورکولو په قسم باندې اصرار وکړو، پس مدعى او ګواه بغير د فيصلې کولو نه واپس راغلل آيا په شريعت محمدى ﷺ کې حکم ته حق شته چې ګواهانو ته قسم ورکړي؟ او بيا په قرآن هم قسم ورکړي او په طلاق هم؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد رفيق

**الجواب:** چونکې د حکم (ثالث) دپاره تزکيه کول ګران دي لهذا که حکم ګواهانو ته قسم ورکړي نو جائز ده.

يدل عليه ما روي في تنقيح الفتاوى ١:٣٧٩ وفي زماننا لما تعذرت التزكية بغلبة الفسق اختار القضاة تحليف الشهود كما اختاره ابن أبي ليلى لحصول غلبة الظن (١) وفي الدرالمختار: وقيل ان مست الضرورة فوض (التحليف بالطلاق والعتاق) إلى القاضي (٢). وهوالموفق

...

---

...بقيه ازحاشيه گذشته]

(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ٥:٣٨٧ باب التحكيم)... وقال العلامة المرغيناني: ولكل واحد من المحكمين ان يرجع مالم يحكم عليهما... واذا حكم لزمهما لصدور حكمه عن ولاية عليهما.

(الهداية ٣:١٤٤ باب التحكيم)

١) (فتاوي تنقيح الحامدية ١:٣٤٩ كتاب الشهادة)

٢) (الدر المختار ٤:٤٧٥ كتاب الدعوي)

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف بہ

# فتاویٰ فریدیہ

# کتاب الشهادة واليمين

قال اللہ تبارک وتعالیٰ:

وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ ط

وَمَنْ يَكْتُمْهَا فَإِنَّهُ آثِمٌ قَلْبُهُ ط

(سورة النسآء)

قال رسول اللہ صلّی اللہ علیہ وسلّم:

اَلبیّنة علی المدّعی والیمین علی مَن اَنکر

(الحدیث)

........

# کتاب الشّهادة واليمين

## د شهادت نه د انکار کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې:

۱: د حق د شهادت ورکولو نه د زید انکار کول د قرآن پاک د صریح احکاماتو منافی دی یا نه؟

۲: که د حق په شهادت ورکولو باندې د جناب انکار کول د قرآن د صریح احکاماتو خلاف ورزی ده نو د دې اثر به د هغه په منصب امامت باندې مرتب کیږی یا نه؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی: مختیار احمد، لنک روډ، ایبټ آباد.... ۶ جولائی ۱۴۰۱ھ**

**الجواب:** د نظام شرعی د رائج کیدو نه مخکې د یو شاهد د شهادت نه انکاری کیدل جرم شرعی نه دې که حاکم مسلمان وی، مرزائی شیعه وغیره نه وی او په شهادت باندې مبنی کیدونکې فیصله د شریعت سره متصادم نه وی او د دې مدعی نور ګواهان هم نه وی نو د شاهد انکار جرم دې. صوناً للحقوق عن الضیاع(۱). وهوالموفق

---

۱) قال العلامة المرغيناني: الشهادة فرض تلزم الشهود ولا يسعهم كتمانها اذا طالبهم المدعي لقوله تعالي: ولا يأب الشهداء اذا ما دعوا ،و قوله تعالي: ولا تكتموا الشهادة ومن يكتمها فانه أثم قلبه. (الهداية ۱۵۴: ۳كتاب الشهادة)

وفي الأشباه والنظائر: كتمان الشهادة كبيرة ويحرم التأخير بعدالطلب إلا في مسائل: أن يكون عاجزاً عن الذهاب وفيما إذا قام الحق بغيره وأن يكون الحاكم جائراً.

(الأشباه والنظائر علي هامش الحموي ۳۶۸: ۲، كتاب القضاء والشهادة)

## د ړوند سړي د ګواهۍ حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د ړوند سړي ګواهي په شريعت کې څه حيثيت لري؟ په شريعت کې د ړوند سړي ګواهي په کومو امورو کې مسموع او مشروع ده؟ آيا د ړوند سړي ګواهي د يو بينا سړي د ګواهۍ برابر کيدې شي؟ حال دا چې په امر مشروع کې يو هم بينا سړې د ګواهۍ دپاره تيار نه شي او يو ړوند سړې فردا ګواهي ورکړي او هغه هم صرف د خپلولۍ په خاطر، آيا دا جائز ده؟ **بينواتوجروا**

**المستفتي:** حافظ مياں ګل، مقام تنګی تحصيل هنګو.....٥ جولائی ١٩٦٩ء

**الجواب:** ړوند سړې ګواه جوړيدې شي خو د حاکم په نزد ګواهي نه شي ورکولې، يعنی د حاکم په نزد په ټولو امورو کې د هغه ګواهي نامنظور ده اګر چې بل څوک ګواه په دې علاقه کې نه وي، هم دا د امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب دې او د امام ابويوسف رحمه الله په نزد د ړوند سړي ګواهي په هغه امورو کې صحيح ده په کومو کې چې اوريدل کافي وي مثلاً، نسب، نکاح، دخول وغيره، او په کومو کې چې تسامع کافي نه وي په هغې کې هم د ړوند سړي ګواهي صحيح ده خو په دې شرط چې د سماع په وخت بينا وي.

في الهندية ٣:٥٣٧: ولا تقبل شهادة الأعمى مطلقاً سواء عمي قبل التحمل أو بعده فيما تجوز الشهادة فيه بالتسامع أولا تجوز، وقال أبو يوسف رحمه الله تجوز فيما طريقه السماع وما لا يكفي فيه السماع إذا كان بصيراً وقت التحمل أعمى عند الأداء إذا كان يعرفه باسمه ونسبه كذا في فتح القدير، هذا إذا كان المدعى شيئاً لا يحتاج إلى الإشارة إليه وقت الاداء أما إذا كان شيئاً يحتاج إلى الإشارة فلا تقبل شهادته إجماعاً هكذا في البدائع(١) فقط. وهو الموفق

١) (فتاوي هندية ٤٦٥، ٤٦٤: ٣، الباب الرابع فيمن لا تقبل شهادته)

وفي البحر الرائق: قوله (ولا تقبل شهادة الأعمى)...[بقيه بر صفحه آئنده...

## د فاسق د شهادت حکم

**سوال:** چه میفرمایند علماء کرام و بزرگان دین متین اندریں مسئله که در حادثه از قاضیانْ حکم شرعي صادر شود بجانب مدعي گواهان مطابق شریعت مقرر کند بعد ازان مدعٰي علیه بر گواهانِ مدعي هر قسم اعتراضات جراحات خیال دارد، لهٰذا برائے علماء دین متین باعث استفتاء گر دیدم که موجوده وقت چگونه شهادت عند الشرع قبول و منظور است نفس شهادت و شهادة علي الشهادةدر تواسع فرق دارد یاندارد،فسق مانع شهادت است یا مانع نیست ،موجوده وقت و زمان کدام طعنات و اعتراضات بر شاهد وارد خواهد کرد، از هر گونه و پهلو سوج و نظر عمیق تفصیلاً ضرورة عنایت فرمائید، احتیاج کثیر الوقوع افتاده و پیش آمده دلشکني و ناراضگي مفرمائید تاکید زائد دانید.والسلام

المستفتی: متعلم دار العلوم

**الجواب:** در کتب فقه مسطور است که مناسب عدم قبول شهادة فاسق است و اگر قبول کند صحیح بود،قال فی الهدایة:فإنه لاینبغی أن یقبل القاضی شهادته ولوقبل جازعندنا،(کتاب أدب القاضی) (۱)واعتراضات و

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] فشمل الأعمٰي وقت الشهادةقبل التحمل أو بعده ...و شمل ما کان طریقه السماع خلاقاً لأبي یوسف رحمه الله تعالي' کما في فتح القدیر. (البحر الرائق) و قال العلامة ابن عابدین : قال الرملي عبارة الفتح و قال ابو یوسف رحمه الله یجوز فیما طریقه السماع وما لا یکفي فیه السماع إذا کان بصیراً وقت التحمل أعمي عند الأداء إذا کان یعرفه باسمه و نسبه .

(منحةالخالق علي هامش البحر الرائق ۷:۷۷،باب من تقبل شهادته)

(۱) (الهدایة ۳:۱۳۲،کتاب أدب القاضي)

طعنات درباب من لا یقبل شهادته مسطور اند(۱) و فرق درین طعنات باعتبار زمانه نیست فقط. وهوالموفق

## د ګیره خرئیلی سړی د شهادت حکم

**سوال:** حضرت مفتی صاحب دامت برکاتهم! د ګیره خرئیلی په باره کې شرعی حکم او په هغې باندې وعیدونه مفصل بیان کړئ او د ګیره خرئیلو د ګواهئ څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد اشرف جنجوعه، کراچی.... ۱۸ اګست ۱۹۷۹ء

**الجواب:** ګیره ساتل واجب او سنت المرسلین دی.(۲) او د دې خرئیل حرام دی.(۳)

---

(۱) و في كنز الدقائق :ولا تقبل شهادة الأعمي والمملوک والصبي والمحدود في قذف والولد لأبويه و جديه و عكسه وأحد الزوجين للآخر والسيد لعبده و مكاتبه والشريک لشريكه فيما هومن شر كتهما والمخنث والنائحة والمغنية والعدو إ نت عداوة دنيوية و مد من الشرب علي اللهو و من يلعب بالطيور و يغنّي للناس أو يرتكب ما يوجب الحدالخ. (كنز الدقائق ۳: ۲۹۰ كتاب الشهادة ،باب من تقبل شهادته و من لا تقبل)

(۲) عن عائشة رضي الله تعالي عنها قالت قال رسول الله ﷺ عشر من الفطرة أي عشر خصال من سنة الأنبياء الذين أمرنا أن نقتدي بهم فكأنا فطرنا عليها، قص الشارب و إعفاء اللحية ...الخ. (مرقاة المفاتيح ۴: ۲،باب السواک)

و قال المحدّث الدهلوي رحمه الله تعالي: حلق كردن حرام است وروش افرنج و هنود است و گذا شتن آن بقدر قبضه واجب است و او راسنت گويند بمعني طريقه مسلوكه در دين است يا به جهت آن كه ثبوت آن به سنت است چنانكه نماز عيد را سنت گفته اند. (أشعة اللمعات ۱: ۲۱۲،باب السواک)

(۳) في فيض الباري: و أما قطع ما دون ذلک فحرام إجماعاً بين الائمة رحمهم الله تعالي. (فيض الباري ۴: ۳۸۰،باب إعفا اللحي)

او دا سړي مردود الشهادة دي. (١) كما في تنقيح الفتاوى ١ : ٣٥١ : المرأة إذا قطعت شعر رأسها أثمت ولعنت ولذا يحرم للرجل قطع لحيته وفيه أيضا وأخذ كلها فعل يهود الهنود ومجوس الأعاجم فحيث أدمن على فعل هذا المحرم يفسق (٢). وهو الموفق

## د فاسق او د مستور الحال د شهادت حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په يوه ځمکه باندې اختلاف واقع شو، قاضی صاحب د مدعی نه شهادت طلب کړو خو مدعی علیه اعتراض وکړو چې د عادل شهادت پکار دې په دې زمانه کې عادل نشته اوس څه وکړو د کوم سړی شهادت قبول دې. بينوا توجروا

**المستفتي:** مولوی گل ولی خان ١٥ جنوری ١٩٦٩ء

**الجواب:** کله چې عادل موجود نه وی نو زمونږ په مذهب کې د فاسق (٣)

---

١) قال العلامة السغدي رحمه الله تعالي: و أما التي ترد لأجل التهمة فهي علي ستة عشر وجها ...والثاني معلن الفسق والفجور .
(النتف في الفتاوي ٤٩٠، كتاب الشهادات)

٢) (فتاوي تنقيح الحامدية ١:٣٥١، كتاب الشهادة)

٣) في شرح المجلة :فالفاسق أهل للقضاء فلو قلد يصح إلا أنه لا ينبغي أن يقلد كما في حكم الشهادة فإنه لا ينبغي أن يقبل القاضي شهادته ولو قبل جاز عندنا و أثم. (شرح المجلة ٦:٣٥، المادة ١٧٩٤)

و قال الحصكفي رحمه الله تعالي: و شرط أهليتها (الشهادة) شرط أ هليته ...والفاسق أهلها فيكون أهله.
(الدر المختار ٤:٣٣٣، كتاب القضاء)

او مستورالحال (۱) شهادت قاضی منظورولې شی. وهوالموفق

## کیسټ د ګواهن قائم مقام نه دي

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې که یو سړې او ښځه زنا وکړی، درې سړې د هغوی د زنا د فعل نه ویډیو کیسټ ډک کړی بیا هغه دریم سړې هغه کیسټ قاضی صاحب ته اوښائی نو آیا دا کیسټ د څلورو ګواهانو قائم مقام کیدې شی یا نه؟ ځکه چې په دې کې د دروغو احتمال هم نه وی؟ بینواتوجروا

**المستفتی:** حافظ رفیع الله، متعلم دار العلوم اسلامیه چارسده..... ۲۸ شعبان ۱٤۰۹ھ

**الجواب:** چونکې تصویر او آواز ډیر کرته متشابه وی په دې نوعیت باندې هیڅ مسلم یا غیر مسلم حکم او فیصله نه کوی. (۲) وهوالموفق

---

۱) قال العلامة حسام الدين رحمه الله تعالي: والمستور كالفاسق لا يكون خبره حجة في باب الحديث، وفي حاشيته: احترزبه عن باب القضاء إذ القاضي لو قضي بشهادة المستور جاز عندأبي حنيفة نظراً إلي ظاهر العدالة.

(حسامي ۷۱حاشیه ۱۰ بحث السنة)

۲) قال الدكتور وهبة الزحيلي رحمه الله تعالي "لا بد في القرينة من أمرين: (۱)أن يوجد أمر ظاهر معروف يصلح أساسا للاعتماد عليه (۲)و أن توجد صلة موثرة بين الأمر الظاهر والأمر الخفي...ولا يحكم عند جمهور الفقهاء بهذه القرائن في الحدود.

(الفقه الاسلامي و أدلته ۸:۶۱۲۸، المبحث الرابع : القضاء بالقرائن)

و في شرح المجلة :الشهادة هي الإخبار بلفظ الشهادة يعني بقول أشهد بإثبات حق واحد في ذمة الآخر ...و يقال للمخبر شاهد... و للمخبرله مشهود له وللمخبر عليه مشهود عليه.

(شرح المجلة ۲:۱۰۰۲، المادة ۱۶۸۴، الباب الأول في الشهادة)

## د ټولو ګواهانو نه اجتماعا په یو کرت ګواهي اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې بعض خلق وائی چې که زیات خلق د ګواهئ دپاره حاضر شی او هغوی ټول په یو کرت ووائی چې مونږ د الله پاک دپاره ګواهی ورکوو نو د هغوی ګواهی صحیح ده، موئږ وایو چې نه د فرد واحد نه د شریعت او دعوی مطابق ګواهی اخستل صحیح دی د دې په باره کې تصریح وفرمایئ؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم

**الجواب:** اول ذکر شوې شهادت بغیر د قاعدې نه دې، او آخر ذکر شوې باقاعده دې.(۱) فقط وهوالموفق

## د فریقینو نه د ملکیت د وجې پوښتنه نه کول
## او د مدعی علیه نه ګواه طلب کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د فریق اول (مدعی) مطالبه ده چې ګواهان پیش کول زما حق دې او دویم فریق وائی چې ګواهان پیش کول زما حق دې قاضی صاحب د اول فریق په خبره باندې غوږ او نه ګرولو، او د ګواهانو پیش کولو دپاره ئې مدعی علیهم (دویم فریق) ته وویل، نو ګواهان پیش کول د چا په ذمه دی؟ قاضی صاحب د ملکیت د وجې پوښتنه نه خو د مدعی نه وکړو او نه د مدعی علیه نه او نه د ګواه نه، آیا د ملکیت د وجې پوښتنه کول د قاضی صاحب دپاره ضروری دې یا نه؟ د

---

۱) في شرح المجلة :الشهادة هي الإخبار بلفظ الشهادة يعني بقول أشهد بإثبات حق واحد في ذمة الآخر ...و ركن الشهادة لفظ أشهد.
(شرح المجلة ۱۰۰۲،المادة ۱۶۸۴ :الباب الأول في الشهادة)

دې دواړو وجوهاتو په بناء د قاضي فيصله مجروح (منسوخ) کيدې شي يا نه؟ بينواتوجروا

المستفتي: غلام حسن باچه، دير ..... ۲۹ اپريل ۱۴۰۱هـ

**الجواب**: د صدق او ثبوت په شرط دا فيصله خلاف قاعده ده.

لان الأصل أن البينة على المدعي واليمين على من أنكر،(۱) ولما في شرح المجلة ۱۰۶۶: إذا شهد الشهود سأل الحاكم المشهود عليه ما تقول في شهادة هٰذين، أهما صادقان أم لا الخ(۲). وهوالموفق

## د اجرتي قاتل د ګواهۍ او وعده معاف ګواه شرعي حيثيت

**سوال**: څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د اسلامي شريعت په رڼا کې د لاندې ذکر شوې خصوصياتو والا انسان د شريعت مطابق ګواه جوړيدې شي يا نه؟

۱: داسې سړې چې اجرتي قاتل دې.

۲: د خپل قاتل کيدو اعتراف ئې کړې دې.

۳: د وعده معاف ګواه شرعي حيثيت څه دې؟ که داسې اجرتي قاتل له وعده معاف ګواه جوړ کړې شي نو آيا د هغه شهادت قبليدلې شي يا نه؟ د پورته ذکر شوی سړی د شرعي حيثيت وضاحت فرمائيلو سره خپله مذهبي فريضه پوره کولو سره د شکريه موقع راکړئ؟

المستفتي: مولانا حافظ حسين احمد، مردان

**الجواب**: د پورته ذکر شوې خصوصياتو والا سړی ګواهي مردود او ناقابل سماعت ده، په دې وجه چې دا ګواه فاسق او فاجر دې. وفي شرح المجلة ۱۰۳۵: م

---

۱) (شرح المجلة: ۱: ۲۱۴، القاعدة ۷۶)

۲) شرح المجلة: ۱۰۶۶، المادة ۱۷۱۶، الفصل السادس في تزكية الشهود)

١٧٠٥ **يشترط ان يكون الشاهد عدلا.**[١] دويم په دې وجه چې دا گواه په دې مقدمه کې طرف دار شوې دې. وفى شرح المجلة ١٠٣٦: م ١٧٠٣ **والاصل ان كل من صار خصما فى حادثة لاتقبل شهادته**[٢]، او دريم په دې وجه چې دا گواه د دې شهادت نه فائده حاصلوی، **وفى شرح المجلة** ١٠٢٣: م ١٧٠٠: **يشترط ان لايكون فى الشهادة دفع مغرم او جر مغنم يعنى ان لاتكون داعية لدفع المضرة اوجلب المنفعة.**[٣] **وهوالموفق**

## د قاتل د قتل د مکان نه علاوه په بل مکان کې په موجوديدو باندې گواه قائمول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام او مفتيان عظام د لاندې ذکر شوې فريقينو ترمينځه د فيصلې په باره کې:

١: فريق اول: يو سړې په ځنګل کې په ټوپک باندې زخمی شو، هغه په څوارلسو کسانو باندې دعوی وکړه چې په هغې کې يو هغه لره زخمی کړې دې بيا ئې په هغه باندې دا دعوی هم وکړه چې هغه د زخمی کولو اقرار هم کړې دې د اعتراف گواهان ئې هم پيش کړل.

**جواب دعوی:** مدعی عليهم منکر دی چې مونږ نه دې زخمی کړې بلکې په خپل ټوپک سره زخمی شوې دې بله دا چې د جرم د اقرار منکر دی بلکې دا

---

١) (شرح المجلة: ١٠٣٩، المادة ١٧٠٥)

٢) (شرح المجلة ١٠٣٦، المادة ١٧٠٣)

٣) (شرح المجلة ١٠٢٣، المادة ١٧٠٠)
و في الهندية: ولا يجر الشاهد إلي نفسه مغنمًا ولا يدفع عن نفسه مغرمًا و أن لايكون خصمًا والعدالة و هي شرط وجوب القبول علي القاضي لا جوازه كذا في البحر الرائق.
(الفتاوي الهندية: ٣:٤٥٠، كتاب الشهادات: الباب الأول)

١٧٠٥ **يشترط ان يكون الشاهد عدلا.**(١) دويم په دې وجه چې دا ګواه په دې مقدمه کې طرف دار شوي دې. وفي شرح المجلة ١٠٣٦: م ١٧٠٣ **والاصل ان كل من صار خصما في حادثة لاتقبل شهادته**(٢). او دريم په دې وجه چې دا ګواه د دې شهادت نه فائده حاصلوي، **وفي شرح المجلة ١٠٢٣: م ١٧٠٠: يشترط ان لايكون في الشهادة دفع مغرم او جر مغنم يعني ان لاتكون داعية لدفع المضرة او جلب المنفعة.**(٣) **وهو الموفق**

## د قاتل د قتل د مکان نه علاوه په بل مکان کې په موجوديدو باندې ګواه قائمول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام او مفتيان عظام د لاندې ذکر شوي فريقينو ترمينځه د فيصلې په باره کې:

١: فريق اول: يو سړې په ځنګل کې په ټوپک باندې زخمی شو، هغه په څوارلسو کسانو باندې دعوی وکړه چې په هغې کې يو هغه له زخمی کړې دې بيا ئې په هغه باندې دا دعوی هم وکړه چې هغه د زخمی کولو اقرار هم کړې دې د اعتراف ګواهان ئې هم پيش کړل.

**جواب دعوی**: مدعی عليهم منکر دی چې مونږ نه دې زخمی کړې بلکې په خپل ټوپک سره زخمی شوې دې بله دا چې د جرم د اقرار منکر دی بلکې دا

---

١) (شرح المجلة: ١٠٣٩، المادة ١٧٠٥)

٢) (شرح المجلة ١٠٣٦، المادة ١٧٠٣)

٣) (شرح المجلة ١٠٢٣، المادة ١٧٠٠)

و في الهندية: ولا يجر الشاهد إلي نفسه مغنماً ولا يدفع عن نفسه مغرماً و أن لايكون خصماً والعدالة و هي شرط وجوب القبول علي القاضي لا جوازه كذا في البحر الرائق.

(الفتاوي الهندية: ٣: ٤٥٠، كتاب الشهادات: الباب الأول)

وائي چې مدعی چې دکومې ورځې د اقراردعوی کوی هغه ورځ هغه د دعوې په مقام باندې موجود نه وو، او د جرح په طریقې ئې گواهان هم پیش کړل چې مدعی په مدعی علیه باندې د اقرار کومه دعوی کوی هغه باطل ده بلکې مدعی علیه په دې وخت کښ، چې د هغې مدعی دعوی کوی، موږ سره موجود وو، نوپه دې کې د ثبوت گواهان مقدم دی که د جرح؟ بینواتوجروا

المستفتي: عبدالرحمٰن فاضل حقانیه، ضلع دیر ..... ۳ رمضان ١٤٠٢ھ

**الجواب:** که د دې مدعی علیه په دې دویم کور کې موجودیدل په تواتر سره ثابت نه وی نو د دې مدعی علیه دا شهادت قائمول بې فائدې دی. (١)

نظیره ما فی الفتاوی الأنقرویه ١: ٣٩٦: شهد أنه استقرض من فلان یوم فلان فی یوم کذا فی بلد کذا فبرهن علی أنه لم یکن فی ذلك المکان بل فی مکان آخر لا تقبل لأن قوله لم یکن فیه نفی صورة ومعنی وقوله بل کان فی کذا نفی معنی وأصله ما ذکر فی النوادر. وهوالموفق

## د تواتر خلاف د گواهئ ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په موجوده وخت کې که حکومت د یو داسې واقعې گواهی طلب کړی چې د هغې عینی

---

(١) في شرح المجلة: إذا قام رجل البینة علی آخر أنه قتل أباه عمداً في ربیع الأول فأقام المدعي علیه البینة أنه رأوا أباه حیا بعد ذلک الوقت ... فالبینة بینة المدعي ولا یلتفت إلي بینة المدعي علیه إلا أن تأتي العامة وتشهد بذلک فیؤخذ بشهادتهم.
(شرح المجلة ٥: ٣٧٩، المادة ١٧٣٤)

وفي الهندیة: شاهدان شهدا علی رجل بقول أو بفعل یلزمه بذلک إجارة ... أو قصاص ... فأقام المشهود علیه بینة أنه لم یکن في ذلک الموضع أو لا في ذلک الیوم في الموضع الذي وصفاه لم تقبل منه البینة علي ذلک.
(فتاوي هندیه ٣: ٥١٢ الباب التاسع في الشهادة علي النفي)

لیدل نه وی شوي، خو په تواتر سره د هغه واقعې علم هغه سړي ته حاصل دې مثلا په یو ځای کې د ورځې څو کسانو یو کس قتل کړو او د کومو خلقو مخکې چې د هغه قتل وشو، هغه خلقو د هغه سړي مخکې ګواهي ورکړه بلکې په تواتر سره هغه ته د قاتلینو علم وشو په داسې حالت کې که حکومت هغه سړې مجبور کړي چې هغه ګواهي ورکړي او قاتلین د حکومت مخکې ښکاره کړي نو په دې صورت کې به دا ګواه د الله پاک په نزد ماخوذ وی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: میاں ولایت شاه، تحصیل چارسده .... ۲۶ نومبر ۷۲ء

**الجواب**: کوم امر چې د حاکم په نزد په تواتر سره ثابت شی نو دهغې خلاف به دعوی او ګواهي مردود وی.

یدل علیه ما فی شرح المجلة ١٠٨٦: التواتر یفید علم الیقین فلا تقام البینة علی خلاف المتواتر کما ذکر آنفا ولا تسمع الدعوٰی بخلافه لأن ذلک تکذیب الثابت بالضرورة(١) الخ. وهوالموفق

## د خورئی، اوخې او وراره د ګواهئ حکم

**سوال**: څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې مدعی په خپله څه مقدمه کې خورئې، اوخې (د ښځې رور) وراره یا څوک نزدې رشته دار په

---

١) (شرح المجلة ١٠٨٦، المادة ١٧٣٣)

و قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالي "البینة إذا قامت علي خلاف المشهور المتواتر لا تقبل...قال في المحیط إن تواتر عند الناس و علم الکل عدم کونه في ذلک المکان أو الزمان لا تسمع الدعوي علیه لأنه یلزم تکذیب الثابت بالضرورة.

(فتاوي تنقیح الحامدیة ١:٣٦١، قبیل کتاب الوکالة)

طور د گواه پیش کولې شي یا نه؟ او بله دا چې کوم کوم رشته دار گواهان جوړیدې شي او کوم کوم نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: قاضی عبدالسلام، نوښار صدر

**الجواب:** که په صورت مسئوله کې نور موانع د شهادت موجود نه وی نو صرف دا مذکوره رشتې موانع د شهادت نه دی،

کما فی شرح المجلة ١٠٢٨ تا ١٠٣١: لا تقبل شهادة الأصل للفرع والفرع للأصل یعنی لا تقبل شهادة الآباء والأجداد والأمهات والجدات لأولادهم وأحفادهم، ولا شهادة الأولاد والأحفاد للآباء والأجداد والأمهات والجدات، وهكذا شهادة أحد الزوجين للآخر و أمّا ما عدا هؤلاء من الأقارب فتقبل شهادة أحدهم للآخر([1]). وهوالموفق

## دښمن، زوم، سخر او د لور د سخرګنی د ګواهئ حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ١: زید او بکر په یوه ځمکه باندې دعوی وکړه، د زید گواه عمر دې کوم چې د زید زوم دې آیا د عمر گواهی د زید په حق کې د بکر خلاف صحیح ده؟

٢: زید او بکر په یو څیز باندې دعوی وکړه د بکر د لور کوژدن عمر سره شوې ده آیا د عمر گواهی د بکر په حق کې د زید خلاف قابل قبول ده؟

٣: د زید او بکر په یوه ځمکه باندې جهګړه ده د عمر لور د بکر د څوی په نکاح کې ده آیا د عمر گواهی د بکر په حق کې د زید خلاف قابل قبول ده؟

---

[1] (شرح المجلة: ١٠٣١،١٠٢٨، المادة ١٧٠٠)

و قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالیٰ: و تقبل لأخيه و عمّه ومن محرم رضاعاً أومصاهرة ولا تقبل شهادة الزوجة لزوجها و هو لها والفرع لأصله و إن علا و بالعكس للتهمة.

(الدر المختار ٤:٤٢٢، باب القبول و عدمه، كتاب الشهادة)

۴: زید او بکر په یوه څمکه باندې دعوی وکړه د زید د عمر سره زړه دښمنی ده کومه چې ښکاره ده آیا عمر، د زید خلاف ګواهی ورکولې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: تاج محمد، راولپنډی صدر

**الجواب:** سوا د آخری نه د ټولو ګواهی مقبول ده، کما لایخفی علی من راجع الی شهادة الهندیة(١) وردالمحتار(٢) والفتح(٣) وغیره، فقط

## د میراث په دعوی کې د مورث د ملک د ثبوت ګواهان ضروری دی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی دعوی وکړه چې دا څمکه زما پلار ته د خپل پلار نه په میراث کې ملاؤ شوې ده، اوس به قاضی صاحب د دې زمانې ګواهان طلب کوی یا د نیکهٔ د زمانې؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولوی ګل ولی خان... ١٥ جنوری ١٩٦٩ء

---

١) في الهندية: و تقبل شهادة الرجل لأم مرأته و أبيها و لزوج ابنته.
(فتاوي هندية ٣:٤٧٠ كتاب الشهادة: الفصل الثالث)

٢) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالي'' و تقبل لأم امرأته و أبيها و لزوج ابنته ولامرأة ابنه ...أن شهادة العدو علي عدوه لا تقبل و إن كان عدلا، و صرح يعقوب باشافي حاشيته بعدم نفاذ قضاء القاضي بشهادة العدو علي عدوه.
(ردالمحتار ٤:٤١٩،٤٢٤ كتاب الشهادات: باب القبول و عدمه)

٣) و قال العلامة ابن الهمام رحمه الله تعالي'' و تقبل لأم امرأته و أبيها و لزوج بنته ولامرأة ابنه ...الي أن قال بعد خمسة أوراق: إذ مجرد العداوة مانع من القبول كما في مسلم يعادي مسلماً.
(فتح القدير ٦:٤٧٩،٤٨٩، باب من يقبل شهادته و من لا يقبل)

**الجواب:** چې کومه دعوی وی په هغې باندې به گواهان قائم کولې شی، پس د میراث په دعوی کې ضروری ده چې داسې گواهان قائم کړې شی چاته چې د مدعی د والد ملکیت معلوم وی. (١) **وهوالموفق**

## د شراء د مدعی او په مدعی د ارث کې د چا شهادة معتبر دې؟

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د دوه سړو یو نهر (چه پښتانهٔ ورته ورخ وائی) باندې اختلاف دې یو حاجی غلام او بل حاجی نازک، د حاجی غلام دا دعوی ده چې دا اوبه د څلویښتو کالو نه ما استعمال کړې دی، یعنی د کاروبار او د ځاروو د څښلو دپاره، حال دا چې د حاجی غلام په دې ځای باندې نه ځمکه ده نه ئې هغې ته نزدې کورونه دی، او نه دا نهر د هغوی ځمکه ده او هغه دا دعوی کوی چې دا ځمکه د نهر په خوا کې مونږ اخستلې ده حال دا چې د دې خبرې نه هغه سره څوک گواه شته

---

(١) قال الحصكفي رحمه الله تعالی: و لزم في صحة الشهادة (الجر)بشهادة إرث بأن يقولا مات و تركه ميراثًا للمدعي (إلا أن يشهدا بملكه عند موته)".

و قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالی: (قوله الجر)أي النقل أي أن يشهد بالانتقال و ذلک إما نصاكما صوره الشارح أو بما يقوم مقامه من إثبات الملك للميت عند الموت.

(الدر المختار مع رد المحتار ٤٣٥:٤،باب الاختلاف في الشهادة)

و في الهندية :إذا ادعي دارا في يد إنسان أنها له ورثها من أبيه و جاء بشهود شهدوا أنها كانت لأبيه إلي أن مات و تركها ميراثا لا نعلم له وارثا غيره أو شهدوا أنها كانت لأبيه يوم الموت فالقاضي يقبل هذه الشهادة.

(فتاوي هندية ٤٩١:٣،الباب السادس في الشهادة في المواريث)

نه څه لیک، او د هغې د استعمال دپاره نور هم ځایونه شته. او د حاجي نازل دعوی ده چې دا ځمکه زمونږ د پلار نیکه ده او فی الحال په موقع باندې هم د حاجی نازک ځمکه ده او په ځمکه باندې هغوی سره ګواه هم موجود دی، او هغې ته نژدې کورونه هم دی تاسو راته جواب راکړئ. **بینواتوجروا**

**المستفتی: نامعلوم ۱۵ جولائی ۱۹۸۶ء**

**الجواب:** حاجی غلام د شراء مدعی دې، او حاجی نازک د میراث مدعی دې پس چا سره چې شهادت شرعیه موجود وی نو د هغه قول به معتبر وی (۱) او که دواړو سره شهادت شرعیه موجود دې نو د خارج شهادت به منظور وی (شرح المجلة) (۲). **والله اعلم بالصواب**

## د بیع د مدعی او د امانت په مدعی کې د چا ګواهان مقدم دی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید په یوه ځمکه باندې د دیرشو کالو نه قابض دې او په هغې کې ئې ونې هم لګولې

---

(۱) في شرح المجلة :إذاأظهرالطرف الراجح العجز عن البينة تطلب البينة من الطرف المرجوح فان أثبت فبها وإلا يحلف .(شرح المجلة ۱۱۳۶،المادة ۱۷۶۹)

(۲) في شرح المجلة :ترجح بينة الخارج أيضا علي بينة ذي اليد في دعاوي الملك المقيد بسبب قابل للتكرار ...إذا ادعي واحد علي آخر دكانا في يده بأنه ملكه اشتراه من زيد و مع هذا وضع هذا الرجل يده عليه بغير حق و قال ذواليد إني اشتريته من بكر أو ورثته من والدي ولذلك وضعت يدي عليه ترجح بينة الخارج و تسمع .
(شرح المجلة ۱۱۱۸،المادة ۱۷۵۸)

وفي التكملة :ادعيا ملكا بسببين مختلفين من اثنين والعين في يد أحدهما ولم يورّخا يقضي للخارج.
(تكملة ردالمحتار ۲ : ۲۵ ،مسئلة ۹۳،باب دعوي الرجلين)

دی او هغه تر اوسه پورې په دې باندې پنځوس زره روپۍ خرچ کړې دی، اوس عمر دعوی کړې ده چې دا ځمکه ما زید ته په طور ته امانت ورکړې ده او د زید نه مې نولس روپۍ قرض اخستلې وې شرط دا وو چې کوم وخت زید د مودعه ځمکې نه دا پیسې د پیداوار په ذریعه پوره کړې نو ځمکه به واپس کوی، زید وائی چې نه! تاسو (عمر) دا ځمکه د امانت په طور نه وه ورکړې بلکې په بیع قطعی باندې دې ورکړې وه، اوس دواړه په شریعت باندې فیصله کوی زید د بیع قطعی دعوی کوی او هغه سره د بیع قطعی ګواهان هم موجود دی او عمر د امانت دعوی کوی او هغه سره د امانت ګواهان هم موجود دی شریعت دا ځمکه چاته ورکوی او د چا ګواهان معتبر دی؟ د حوالو سره مسئله زر راولیږئ ځکه چې جهګړه د استفتاء پورې موقوف ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولوی اکبر زمان، پهاړ خیل بنوں ... ۲۱ اپریل ۷۰ء

**الجواب:** په صورت مسئوله کې به د ذوالید ګواهان مقدم کولې شی.

وقال فی الهدایة: وإن أقام الخارج البینة علی الملك المطلق وصاحب الید البینة علی الشراء منه کان صاحب الید أولی (۱) وهکذا فی

---

۱) (الهدایة: ۳:۲۲۲، کتاب الدعوی: باب ما یدعیه الرجلان)

وفي شرح المجلة: ترجح بینة التملیک علی بینة العاریة والإیدع والغصب مثلًا إذا ادعی واحد المال الذي هوفي ید الآخر قائلاً إني کنت أعرته إیاه وأراد استرداده وقال المدعي علیه کنت بعتني إیاه أوو هبتنیه تُرجِّح بینة البیع أوالهبة. (شرح المجلة ۱۱۳۲، المادة ۱۷۶۳)

الدرالمختار(١)

او په ظاهر کې هم دا معلومیږي چې ذوالید مدعی دې د شراء او خارج منکر دې ځکه چې اصل ملک خو د خارج دپاره د جانبین د طرف نه مسلم دې او باقي پاتې شو دا سوال چې خارج دفعل زائد یعنی د ودیعت یا رعایت دعوی کوي لهذا دا به مقدم وي، لما في ردالمحتار: الااذا ادعی الخارج علیه فعلی غصب او ودیعة او اجارة ونحوها في رواية درر (٢) انتهی . نو دا په هغه صورت کې ده چې په سبب مکرر باندې گواه قائم کولې شي. (٣) نو په دې صورت کې اګر چې خارجي دسبب مکرر دعوی نه کوي خو بهر حال د هغه ګواهان به د زیادت د اثبات د وجې نه مقدم کولې شي (٤) هذا ما عندی ولعل عند غیری احسن منه.

## د میراث په دعوی کونکو کې د چا ګواهان معتبر دي؟

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې : د سوال خلاصه دا ده چې په اول صفحه کې د مفتي صاحب نه رائې طلب کول دي او په دویمه صفحه کې د میراث د دعوې ذکر دې، په دریمه صفحه کې د یو عدد دکان او د دوه عدد دکانونو ذکر دې، په څلورمه صفحه کې د دعوې اثبات دې، په

---

١) وقال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالي" فإن برهن خارج علي الملک و ذواليد علي الشراء منه فذو اليد أحق من الخارج اجماعاً. (الدرالمختار ٤:٤٨٩باب دعوي الرجلين)

٢) (الدرالمختار ٤:٤٩٠،باب دعوي الرجلين)

٣) في شرح المجلة: ترجح بينة الخارج أيضاً علي بينة ذي اليد في دعاوي الملک المقيد بسبب قابل للتکرار ولم يبين فيها التاريخ کالشراء....ومثل الشراء أيضاً کل سبب قابل للتکرار. (شرح المجلة ١١١٨،المادة ١٧٥٨)

٤) في مجموعة قواعد الفقه: البينة المثبتة للزيادة هي المقدمة.
(مجموعة قواعد الفقه ٦٧:القاعدة ٦٨)

پنځمه صفحه کې جعلي شريعت نامه ده، په اوومه صفحه باندې د هبې اقرار، په اتمه صفحه کې فيصله ده په حق د مختيار احمد، په نهمه صفحه کې صلح نامه او په لسمه صفحه کې فيصله په خلاف د مختيار احمد ذکر ده، په دې کې د فيصلې طريقه اوښايئ؟

**الجواب:** په صورت مسئوله کې دواړه طرفونه د ميراث مدعی دی لهذا چې کوم بينة پيش کړی د هغه په حق کې به فيصله کولې شی،

وفي التكملة: ولو ادعيا ملكاً إرثاً لأبيه والعين في يد أحدهما لم يؤرخا يقضى للخارج أو أرخا تاريخاً واحداً يقضى للخارج ۲: ۱۸(۱). فقط وهو الموفق

## د ګاڼې په مدعی او د بيع په مدعی کې د چا ګواهان معتبر دی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زيد وفات شو، يوه ښځه او درې لونړه ئې باقي پاتې شوې، زيد خپله ځمکه پخپل ژوند کې بکر او عمر سره ګاڼه کيښودلې وه، او د ګاڼې پيسې ئې وصول کړې وې چې د هغې ګواهان موجود دی خو په ګاڼه کيدو کې پنځوس کاله تير شو اوس د زيد وارثان بکر او عمر ته د رهن پيسې ورکوی خو بکر او عمر وائی چې مونږ دا ځمکه په بيع قطعی باندې اخستلې ده لهذا مدعی څوک دې؟ او د دې تصفيه به څنګه کولې شی؟ بينوا توجروا

المستفتی: خاکسار عبدالرزاق، شبقدر فورټ چارسده، ۶ صفر المظفر ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** که دې مدعی عليه (بکر او عمر) سره د بيع ګواهان مقبول الشهادة وی نو د دې مدعی عليه ګواهان (کوم چې د دفع ګواهان دی) به مقدم دی،

---

۱ (تكملة رد المحتار ۵: ۱۲، باب دعوي الرجلين)

وفي شرح المجلة: لو ادعي صاحب اليد الإرث عن أبيه وادعي الخارج مثل ذلك وأقاما بينة يقضي للخارج في قولهم جميعاً.

(شرح المجلة ۵: ۴۵۳، المادة ۱۷۵۷، الفصل الثاني في ترجيح البينات)

كما فى شرح المجلة ١١٣٣:م١٧٦٤: ترجح بينة البيع على بينة الهبة والرهن،(١) وبمعناه فى شرح التنوير على هامش الشامية ٣٨٨:٤.(٢)وهوالموفق

## د بيع قطعي او د بيع وفا په مدعيانو کې د چا ګواهان معتبر دي

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په بيع بات او بيع وفا کې د اختلاف په وخت باندې به د چا ګواهانو ته ترجيح ورکولې شي؟ بينواتوجروا

المستفتی: شاه وزير، ډهوک دره دير ....٤ شوال ١٤٠٣هـ

**الجواب:** په بيع وفا او بيع بات کې د اختلاف په وخت به ګواهانو د بيع وفا ته ترجيح ورکولې شي.

كمافى شرح المجلة١١٣٣: ولكن لواختلفافى البيع البات والوفاءفبينة الوفاء أولى(٣) كمافى الدر المختار على هامش ردالمحتار ٣٨٨:٤.(٤)

وهوالموفق

---

١) (شرح المجلة: ١١٣٣: المادة ١٧٦٤)

٢) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالي"ورهن مع قبض أحق من هبة بلا عوض معه استحساناولو به فهي أحق لأنها بيع انتهاءً والبيع ولو بوجه أقوي من الرهن.
(الدر المختار ٤٨٨:٤، باب دعوي الرجلين)

٣) (شرح المجلة ١١٣٣: المادة ١٧٦٤)

٤) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعاليٰ :ادعي البائع وفاء والمشتري باتًا أو عكسا فالقول لمدعي البات....أن المعتمد في المذهب أن القول لمدعي البات منهما و أن البينة بينة مدعي الوفاء منهما.
(ردالمحتار ٢٧٦:٤،مطلب في بيع الوفاء،قبيل كتاب الكفالة)

## د وقف د اثبات د پاره شهادت بالتسامع صحیح دي

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید د خپل پلار نیکهٔ د زمانې نه په یو کلی کې د امامت فرائض ادا کوی. فی الحال اهل محله هغه د امامت نه معزول کړې دې چې مونږ په تاپسې مونځ نه کوو نه زمونږ د طرف نه رخصت ئې، او د ځمکې هغه حصه کومه چې د مسجد په نوم زمونږ پلار نیکهٔ وقف کړې وه هغه مونږ ته واپس کړه. زید وائی چې که تاسو په ما پسې مونځ نه کوئ نو بیشکه مه کوئ خو د ځمکې دا حصه زه نه پرېږدم ځکه چې دا زمونږ د نیکونو د زمانې نه زمونږ د قبضې د لاندې راروانه ده او دا زمونږ حق دې، اهل محله وائی چې په مینځ کې بل امام هم په دې مسجد کې د امامت فرائض ادا کوی او دا ځمکه (سیرئ) د هغوی په قبضه کې پاتې شوې ده، ستاسو که حق وې نو د هغه امام نه به دې خپله اجاره وغیره وصولولې خو تا هیڅ حق طلبی نه ده کړې چې د هغې نه صفا معلومېږی چې دا ځمکه (سیرئ) محرابی وه، کوم سړې چې د مسجد په محراب کې د امام فرائض ادا کوی هغه ځمکه هم د هغه په قبضه کې وی او په دې ملک کې دا اصطلاح ده کله چې په کلی کې نوې مسجدونه تعمیر کیږی نو د مسجد په نوم باندې څه ځمکه د محلې خلق (د مسجد جوړونکی) وقف کوی چې د مسجد او امام ضروریات په فراخئ سره پوره کړې شی او هغه ځمکې سره گزاره کوی کله چې هغه امامت پرېښودلو سره لاړ شی یا ناقابل امامت اولاد پرېښودلو سره وفات شی نو نوې امام په دې ځمکه باندې د اهل محله د طرف نه قابض او متصرف جوړولې شی هم دا د دې ملک قاعده او دستور دې، اوس د سوال خلاصه دا ده چې زید کوم چې د مسجد امام دې دا دعوی کوی چې دا ځمکه (سیرئی) د مسجد په نوم باندې وقف نه ده بلکې زمونږ پلار نیکهٔ ته ذاتی طور ورکړې شوې وه، او زمونږ مملوکه ده د هغه دا دعوی بغیر د دلیل نه صحیح ده یا نه؟ که نه وی نو بیا د اهل محله شهادت په دې خبره باندې، چې مونږ د خپل پلار نیکهٔ نه په تواتر سره اوریدلې دی چې دا ځمکه هغوی د زید امام نیکهٔ ته کله چې هغه د دې

مسجد امام مقرر کړې شوې وو د مسجد د سیرئ په طور وقف کړې وه، آیا دا شهادت بالتسامع عند الشرع معتبر دې یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: مسعود الحق، اوګی تحصیل مانسهره ضلع هزاره

**الجواب:** وهوالموفق للصواب: شهادت بالشهرة بالتسامع بلا دعوی کسے برائے اثبات وقف کافی است. فی الهندیة: الشهادة علی الوقف بالشهرة تجوز وكذا الشهادة بالتسامع فلو أنهما شهدا بالتسامع و قالا نشهد بالتسامع تقبل شهادتهما وإن صرحا به لأن الشاهد ربما يكون سنه عشرين سنة وتاريخ الوقف مائة سنة فيتيقن القاضي أن الشاهد يشهد بالتسامع لا بالعيان فإذن لافرق بين السكوت والإفصاح،(1) انتهٰى

وفی وقف الدر المختار: وتقبل فيه الشهادة بالشهرة لإثبات أصله وإن صرحوا به أي بالتسامع في المختار حفظًا للأوقاف القديمة عن الاستهلاك بخلاف غيره،(2)، انتهٰى

وفی شهاداته: لايشهد أحد بما لم يعاينه بالإجماع إلا في النسب والموت والنكاح والدخول بزوجته وولاية القاضي وأصل الوقف(3) انتهٰى،

وفی الهداية: أما الوقف فالصحيح أنه تقبل الشهادة بالتسامع في أصله دون شرائطه لأن أصله هو الذي يشتهر انتهى، وهٰذا استحسان والقياس أن لا تجوز لأن الشهادة مشتقة من المشاهدة وذٰلك بالعلم ولم يحصل فصار كالبيع، وجه الاستحسان أن هٰذه أمور تختص بمعاينة أسبابها خواص من الناس ويتعلق بها أحكام تبقى على انقضاء القرون فلو لم تقبل فيها

---

۱) (فتاوي هندية ۲:٤٣٨، كتاب الوقف : مطلب الشهادة بالشهرة علي أصل الوقف)
۲) (الدر المختار ۳:٤٤١،٤٤٢، كتاب الوقف : مطلب في الشهادة علي الوقف بالتسامع)
۳) (الدر المختار ٤:٤١٧، كتاب الشهادات)

الشهادة بالتسامع أدى ذلك إلى الحرج و تعطيل الأحكام(١)،وفی الأشباه و حاشيته للحموی: تقبل الشهادة حسبة بلا دعوٰی، يعنی ويقضی بها فی طلاق المرأة وعتق الأمة والوقف(٢) انتهٰی.

و در صورت عدم نص شارع عرف است ،در صورت عدم نص واقف نيز اعتبار عرف خواهد شد ،و إلا يلزم إبطال كثير من الأقاف القديمة ،و متعارف اين است كه واقف هر گاه مسجد را وقف مے ساز دكاكين وغيره نيز برائے مصالح مسجد وقف ميسازد،علي الخصوص هر گاه مسجد كلاں باشد و تعمير كردۀ كسي امير يا نواب باشد ،در أشباه مي آرد :نصوص الواقف كنصوص الشارع،(٣) وفيما لا نص فيه من الأموال الربوية يعتبر فيه العرف ولا خصوصية للربوا وإنما العرف غير معتبر فی المنصوص عليه(٤)،انتهی،

و هر گاه وقف دكاكين وغيره ثابت شد تمليكِ آں بطريق بيع يا هبه يا رهن جائز نخواهد شد ،فی الدر المختار :فإذا تم ولزم لا يملك ولا يملك ولا يعار ولا يرهن (٥)،والله أعلم. هو المصوب

فی الواقع جواز شهادة بالشهرة و شهادة علی الشهادة وبالتسامع برائے ثبوت اصل وقف شهادة كتب فقهيه معتمده ثابت است،فی العالمگيريه: تقبل الشهادة على الشهادة فی الوقف،كذا شهادة النسآء مع الرجال كذا فی الظهيرية وكذا الشهادة بالتسامع فلو أنهما شهدا بالتسامع وقالا نشهد بالتسامع تقبل وإن

---

١ )(الهداية ٣: ١٦٠،١٥٩، كتاب الشهادات)

٢ )(شرح الأشباه والنظائر للحموي ٢: ٤٠٢، كتاب القضاء والشهادة)

٣ )(الأشباه والنظائر ١٩٥، كتاب الوقف)

٤ )(الأشباه والنظائر ٩٣ :القاعدة السادسة : العادة محكمة)

٥ )(الدر المختار ٣: ٤٠٢، كتاب الوقف ،مطلب في شرط واقف الكتب)

صرحابه(١)،انتهی

و هر گاه که شهادة بالتسامع برائے ثبوتِ وقف کافي شد بهر تقدیر ثبوت وقف دکاکین مذکوره باني مسجد یا ورثهٔ او یا شخص دیگر را اختیار بیع یا هبه یا رهن وغیره نیست، در ردالمحتار ذیل قول صاحب در مختار :لا یملك ولا یملك مے نویسند: قوله لا یملك ولا یملك أی لا یکون مملوکا لصاحبه ولا یملك أی لا یقبل التملیك لغیره بالبیع ونحوه لاستحالة تملیك الخارج عن ملکه(٢) هوالمصوب.

در وقف شهادت بالتسامع و شهادت بالشهرة مقبول ست، فی الذخیرة: تقبل الشهادة علی الشهادة وکذا الشهادة بالتسامع من الرجال ،انتهٰی وفیها أیضًا :وتقبل الشهادة علی أصل الوقف بالشهرة،انتهی وفی خزانة المفتیین :لو أشهد بالتسامع وصرحا به تقبل شهادتهما،انتهٰی و این قسم دکاکین در عرف موقوف میشوند برائے مصالح مسجد و عرف مثلِ نص است ،وفی شرح الأشباه للبیری عن المبسوط :إن الثابت بالعرف کالثابت بالنص انتهٰی وفی الذخیرة: إذا قال أرضی هٰذه للسبیل ولم یزد علیه فإن کان هذا وقفًا فی عرفهم وقف(٣)،انتهٰی. هوالمصوب

بلا ریب شهادة بالتسامع برائے اثباتِ وقف معتبر است و بهر تقدیر فقدانِ شهادت بالعیان این چنیں شهادت کافي خواهد شد،فی جامع المضمرات فی النصاب :هل یجوز الشهادة علی الشهادة بالتسامع؟ المختار أنه

---

١) (فتاوي هندیة ٢:٤٣٨، کتاب الوقف ،مطلب الشهادة بالشهرة الخ)

٢) (رد المحتار ٣:٤٠٢، کتاب الوقف ،مطلب في شرط واقف الکتب)

٣) وفي الهندیة :ولو قال أرضي هذه للسبیل فإن کان في بلدة تعارفوا مثل هذا وقفا صارت الأرض وقفا. (فتاوي هندیة ٢:٣٥٩ ،فصل في الألفاظ التي یتم بها الوقف)

يجوز فإنه لو لم يجز لأدى ذلك إلى استهلاك الأوقاف القديمة وبه أخذ الفقيه أبو الليث حتى لو استولى على الوقف ظالم وأنكر الوقف كان لأهل القرية أن يشهدوا لذلك، انتهى وفي الفتاوى الخيرية: قد ذكر في جامع الفصولين وافرا للعهدة: ينبغي أن تقبل أي الشهادة بالتسامع لو كان قديما، وقف مشهور قديم لا يعرف واقفه استولى عليه ظالم فادعى المتولي أنه وقف على كذا مشهور و شهدا كذلك فالمختار أنه يجوز(١)، انتهى. وفي الكفاية: قال الإمام ظهير الدين لابد من بيان الجهة بأن يشهدوا أن هذا وقف على المسجد أو المقبرة أو نحو ذلك حتى لو لم يذكروا ذلك في شهاداتهم لا تقبل شهادتهم وتأويل قولهم لا تقبل الشهادة على شرائط الوقف أنهم بعد ما شهدوا أن هذا وقف على كذا لا ينبغي لهم أن يشهدوا ويبدء من غلته فيصرف إلى كذا(٢)، انتهى

و هر گاه شهادت بالتسامع برائے اثبات وقف دكاكين وغيره مذكورة الصدر كافي شد، پس بعد ثبوتِ وقف آنها تصرف مثل بيع و هبه وغيره جائز نيست، شيخ الاسلام بدر الدين عيني رحمه الله در شرح هدايه مے نويسند: إذا صح الوقف لم يجز بيعه ولا تمليكه لما ذكر في أوائل الكتاب من قوله عليه السلام لعمر رضي الله تعالى عنه تصدق بأصلها لا يباع ولا يوهب ولا يورث(٣)، انتهى ملخصا.

واضحه دې وی چې د سيرئ په وقف، هبة او عاريت كې فيصله كول گران كار دې، لأن الملاك لم يصرحوا به والعرف مختلف، نعم! المعروف في بلادنا هو الهبة كما فيما يعطونهم إلى الصلحاء ومرشديهم على اعتماد اداء فرائض الإمامة نسلا بعد نسل، ونظيره العمرى فيبطل الزعم والشرط ولزمت الهبة كما صرحوا به

---

١) (جامع الفصولين ١٣٠:١: الفصل الثالث عشر في دعوي الوقف والشهادة عليه)

٢) (الكفاية علي هامش فتح القدير ٤٦٩:٦، كتاب الشهادة، فصل يتعلق بكيفية الآداء الخ)

٣) (البناية علي الهدايه ٦٢٢:٩، كتاب الوقف)

في باب الهبة(١) فما أوردته إنما تفيد إذا ثبت كون المتنازع فيه موقوفاً وهو في معرض الخفاء، وهو الموفق وليس عندي ولا عند أحد من أقربائي هذا النوع من الأرض.

## شهادت على الاستقلال ته ترجيح حاصل ده په شهادت على الاشتراک باندي

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام ددې مسئلې په باره کې چې زيد او بکر په قومي مشترکه ځمکه باندې قبضه وکړه. زيد او بکر دواړه يوځاى تصرف کوى او بکر دا دعوى کوى چې ټوله ځمکه زما ده او ماته په وراثت کې ملاؤ شوې ده د زيد دعوى دا ده چې دا ځمکه زما او ستا شريکه ده ځکه چې د دواړو قبضه ده په شرعي اصطلاح کې به ګواهي د زيد د طرف نه وى يا د بکر دطرف نه يا د دواړو دطرف نه؟ شرعي حکم واضح وفرمايئ؟ **بينواتوجروا**

المستفتي: غلام حيدر، سکنه بشام کوهستان... ١٢ جمادي الاول ١٤٠٣هـ

**الجواب:** په صورت مسئوله کې د زيد دعوى غلط او ناقابل سماعت ده ځکه چې د مشترکه ځمکې آبادول د ملک سبب نه دي او سبب د ملک دې که دا ځمکه موات ثابته شي او که په هغې باندې ګواهان قائم کړې شي نو ګواهان د بکر معتبر دي،

کما في شرح المجلة ١١٨٢: اذا ادعى اثنان مالاً أحدهما بالاستقلال والآخر بالاشتراك وكل منهما متصرف فيه اى ذويد عليه فبينة الاستقلال اولى يعني إذا اراد كلاهما اقامة البينة ترجح بينة الذى ادعى الاستقلال على بينة الذى ادعى الإشتراك.(٢) وهو الموفق

---

١) وفي الهندية :لو قال هذه الدار لک عمري أو عمرک أو حياتي أو حياتک فإذا مت فهورد علي جازت الهبة وبطل الشرط (هندية ٣٧٥: ٤، كتاب الهبة، الباب الأول)

٢) (شرح المجلة ٤٤٠: ٥ المادة ١٧٥٦، الفصل الثاني في ترجيح البينات)

## گواهانو ته قسم ورکول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په علاقه کې د اوږدې مودې نه د شریعت مطابق فیصلې وی او د گواهانو نه شهادت حلفًا اخلی او لفظ ﴿ اشهد ﴾ هم نه پرېږدی ځکه چې زمونږ خلق د لفظ ﴿اشهد﴾ په معنی نه پوهیږی او نه د دې نه ویریږی د دې د وجې نه دگواهانو قسم اخلی او که د گواهانو نه قسم وانخستلې شی نو د ټولو قومونو ترمینځه اختلاف پیدا کیږی، اوس بعض علماء کرام فرمائی چې دا حلفًا گواهی د شریعت په رڼا کې جائز نه ده، آیا زمونږ د علاقې د محکمینو دا عمل جائز دې یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم.....

**الجواب:** استحلاف گواهان جائز است.

قال الحموی فی شرح الأشباه: وفی تهذیب القلانسی وفی زماننا لما تعذر التزکیة لغلبة الفسق اختار القضاة استحلاف الشهود کما اختاره ابن أبی لیلی لحصول غلبة الظن (۱) انتهی. وهوالموفق

## د غیر قاضی مخې ته د قسم خوړلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو امام یا عام

---

۱ ﴾ غمزعیون البصائر شرح الأشباه والنظائر ۲:۳۷۳، کتاب القضاء والشهادات)
و في شرح المجلة :إذا ألحّ المشهود علیه علي الحاکم بتحلیف الشهود علي أنهم لم یکونوا في شهادتهم کاذبین و کان هناک لزوم لتقویة الشهادة بالیمین فللحاکم أن یحلف الشهود.
(شرح المجلة ۵:۳۵۲، المادة ۱۷۲۷، الفصل السادس في تزکیة الشهود)

سړې بل ته قسم ورکولې شي يا نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: فضل احمد، قاري ګورنمنټ هائي سکول پبي، نوښار

**الجواب:** قسم کول مباح دي، پس که سړې د يو امام وغيره په مخکې قسم وکړي يا هغه ته قسم ورکړې شي دا ممنوع نه دې خو په دې سره الزام او فيصله نه شي کيدې فيصله او الزام په هغه قسم سره کيدې شي کوم چې د قاضي يا محکم (ثالث) مخکې مدعی عليه ته ورکړې شي.(۱) بهرحال دا قسم چې د کوم متعلق سوال کړې شوې دې ممنوع نه دې او ملزم، چې په هغې سره بائيلل يا ګټل راشي هم نه دې. وهوالموفق

## ګواهانو ته د طلاق قسم ورکول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ما په يوه مقدمه کې شهادت ورکړو ځنګه چې حق وو خو عدالت په دې باندې هيڅ غور ونکړو هم دغه شان ما د بلې مقدمې په موقع باندې هم هغه شهادت ورکړو او د وکيل په سوال باندې ما په مذهبی جوش سره صفا اويل چې د ايمان قسم خو نه خو د جائيداد قسم خوړلو سره اقرار کوم چې که مهر نامه غلطه ثابته شوه نو زما ټول جائيداد دې ضبط کړې شي خو هيڅ غور ونکړې شو،

---

۱ ) في شرح المجلة :لاتكون اليمين إلا في حضور الحاكم أو نائبه ولا اعتبار بالنكول عن اليمين في حضور غيرهمالأن اليمين لقطع الخصومة والخصومةإنما تكون في حضور الحاكم.

(شرح المجلة ۵:۴۰۴،المادة ۱۷۴۳)

و قال الدكتور وهبة الزحيلي رحمه الله تعالي ''اليمين هي توكيد الشي أو الحق أوالكلام إثباتًا أو نفيا بذكر الله تعالي أو صفة من صفاته،أما تعريف اليمين القضائية لإثبات الدعوي فهي تاكيد ثبوت الحق أو نفيه أمام القاضي بذكر اسم الله تعالي أو صفة من صفاته.

(الفقه الاسلامي و أدلته ۸:۶۰۶۳،المبحث الثاني : اليمين)

د تپوس په غرض دا عرض کوم چې د شريعت په رڼا کې ګواه خپل شهادت لره په ذريعه د حد د تصديق مجاز دې يا نه؟ صفا دا ظاهر وفرمايئ ځکه چې زه په مذهبي غيرت سره خپل ټول جائيداد بلکه د نفس او مال د قربانۍ دپاره تيار يم او په عدالت کې د ايمان قسمونه يو رواج جوړ شوې دې زه د دې بندول غواړم.

المستفتي: عبدالشکور

**الجواب:** کله چې د حاکم او جج په نزد ګواهان قابل اعتماد نه وی نو د قسم او طلاق وغيره امورو په ذريعه اطمينان حاصلولې شي. (١) او د ګواه دپاره د قسم او طلاق وغيره پيش کول هم غوره دی خو مدعى عليه ته به قسم په الله او د هغه په بعض صفاتو باندې ورکولې شي. (٢) په نوې طريقې سره ورکول ئې ناکافی دی بلکې غير مشروع دی. وهوالموفق

## د مدعى د مدعى عليه په ذمه صرف د قسم حق دې

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زيد په بکر باندې الزام لګولې دې چې بکر جرم کړې دې چې په هغې باندې بکر صفائى پيش کړه او د جرګې مخکې ئې په قرآن کريم باندې قسم وکړو خو مدعى د دې خبرې نه انکار کولو سره اويل چې زه قرآن نه منم بيا بکر وويل زه د

---

(١) وفي شرح المجلة :إذا ألحّ المشهود عليه علي الحاكم بتحليف الشهود علي أنهم لم يكونوا في شهادتهم كا ذبين وكان هناک لزوم لتقوية الشهادة با ليمين فللحاكم أن يحلف الشهود. (شرح المجلة :٥:٣٥٢،المادة ١٧٢٧،الفصل السادس في تزكية الشهود)

و قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعاليٰ :و قيل إن مست الضرورة فوض (التحليف بالطلاق والعتاق) إلي القاضي .(الدر المختار ٤٧٥: ٤كتاب الدعويٰ)

(٢) و في الهداية :واليمين بالله دون غيره لقوله عليه السلام من كان منكم حالفًا فليحلف بالله أو ليذر و قد يؤكد بذكر أوصافه و هو التغليظ و ذلک مثل قوله قل والله الذي لإاله إلا هو عالم الغيب والشهادة هو الرحمٰن الرحيم الذي يعلم من السر والخفاء الخ.

(الهداية ٢٠٧: ٣،كتاب الدعويٰ :باب اليمين)

طلاق قسم اضافي اوچتوم چې ما جرم نه دې کړې خو زيد د هغې د منلو نه هم منکر شو د هغې نه وروستو مقدمه تهانيدار ته لاړه هلته بکر ووييل چې زه مسلمان يم په قرآن باندې ايمان لرم يا زيد دې د قرآن کريم قسم وخوري چې دې مجرم دې يا دې په ما قسم وخوري او يقين دې وکړي. زيد بيا هم هغه خبره وکړه آخر د تهانيدار په خبره منلو باندې رضامند شو. اوس شرعي طور د زيد دپاره څه حکم دې؟ **بينواتوجروا**

**المستفتي: نامعلوم**

**الجواب:** معلوميږي چې د زيد د بکر په قسم او طلاق باندې هيڅ اعتماد نشته او په داسې صورت کې حکم شرعي دا دې چې دا مدعي دې په قسم باندې اکتفاء وکړي او يا دې د عوې نه واپس شي

**كما ورد في حديث أبي داؤد ٢: ٥١٠ قال فلك يمينه قال يا رسول الله إنه فاجر ليس يبالي ما حلف ليس يتورع من شئ فقال ليس لك منه إلا ذلك(١) انتهى. وهوالموفق**

## مدعي ته قسم ورکول صحيح نه دي

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې آيا مدعي ته قسم ورکړې کيدې شي؟ **بينواتوجروا**

**المستفتي: ...... نامعلوم**

**الجواب:** شرعا د مدعي قسم کالعدم او نامنظور وی **كما في فتاوى**

---

١) (سنن أبي داود ٢: ٥١٠ باب الرجل يحلف علي علمه فيماغاب عنه)

وقال العلامة الدكتور وهبة الزحيلي رحمه الله تعالي: والحديث الثالث (البينة علي المدعي واليمين علي من أنكر) خير المدعي بين أمرين لا ثالث لهما إما البينة أو يمين المدعي عليه والتخيير بين أمرين يمنع تجاوز هما إلي غيرهما أو الجمع بينهما.

(الفقه الإسلامي وأدلته ٨: ٥٩٩٩ :القضاء بشاهد و يمين)

عالمگیري ٢٥٨/٤ ان اصطلحا علی ان یحلف المدعی علی دعواه ... الی ان قال والصلح باطل. (١) وهوالموفق

## د غل نه علاوه بل سړی ته قسم ورکول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی غلا وکړه نو آیا د هغه غل په ځای بل څوک په قسم باندې مجبورولې شی، یعنی غل او غیر غل لره (د غل ورور یا پلار) په قسم باندې مجبورول آیا دا جائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم

**الجواب:** سوا د مجرم نه په بل سړی باندې مثلا د غل پلار یا ورور ته قسم ورکول ناجائز دی.

وقال رسول الله صلی الله علیه وسلم لا یجنی علیك ولا تجنی علیه(٢) أوكما قال علیه الصلوٰة والسلام، وجه الدلالة ظاهر، فلذا لا یجری الخلافة فی الیمین كما صرحوا به فی باب الاستحلاف. (٣) وهوالموفق

...

---

(١) (فتاوي هندية ٤:٢٥٩ كتاب الصلح: الباب الحادي عشر في الصلح في اليمين)

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالي "وكذا لواصطلحا أن المدعي لو حلف فالخصم ضامن للمال وحلف أي المدعي لم يضمن الخصم لأن فيه تغيير الشرع. (الدرالمختار: ٤:٤٧١، كتاب الدعوىٰ)

(٢) (سنن أبي داوٗد ٢:٦١٧، باب لايؤخذ الرجل بجريمة أبيه أوأخيه: كتاب الديات)

(٣) وفي شرح المجلة: تجري النيابة في التحليف ولكن لاتجري في اليمين. (شرح المجلة: ٤:٠٦، المادة ١٧٤٥)

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالي "النيابة تجري في الاستحلاف لا الحلف. (الدر المختار ٤:٤٧٣، كتاب الدعوىٰ)

بسم اللہ الرحمٰن الرّحیم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف بہ

# فتاویٰ فریدیہ

اووم جلد

# کتاب الصلح والاقرار

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف بہ

# فتاویٰ فریدیہ

# کتاب الصلح والاقرار

قال اللہ تبارک وتعالیٰ:

وَالصُّلْحُ خَيْرٌ ط

(سورة النسآء)

ءَاَقْرَرْتُمْ وَاَخَذْتُمْ عَلٰى ذٰلِكُمْ اِصْرِىْ ط

(سورة آل عمران)

........

# كتاب الصّلح والاقرار

## د صلح نه د مخالفت كونكي حكم

**سوال:** څه فرمائی علماء كرام د دې مسئلې په باره كې چې د دوه ډلو ترمینځه يو ثالث صلح وكړه، د صلح كولو نه پس يو فريق د هغې نه مخالفت كوی نو د دې څۀ حكم دې؟ **بينواتوجروا**

المستفتي: محمد سليم خان بليكوټ د مرى په لار.

**الجواب:** كومه راضی نامه چې د فريقين په رضامندئ سره شوې وی او د اصول شريعت نه مخالف او متصادم نه وی نو د هغې مخالفت كونكې ګنهګار دې (۱) او د هغه بائيكاټ كول پكار دی. **وهوالموفق**

## په ملكيتی ځمكه كې په لاره باندې د صلح كولو نه پس دوباره بندول

**سوال:** څه فرمائی علماء كرام د دې مسئلې په باره كې چې د مشتركه چراګاه دپاره د خالد په ځمكه كې د طارق لاره تيريږی، كوم چې د ډيرې زمانې نه هم دغه شان مستعمل ده څۀ موده مخكې دا لاره خالد بنده كړه چې په هغې باندې جهګړه وشوه د دې نه وروستو دواړو د خاندان جرګې ته د فيصلې كولو مكمل اختيار وركړو چې كومه فيصله جرګه وكړی هغه به دواړو ډلو ته منظور وی، جرګې فيصله د طارق په حق كې وكړه او وې ويل

---

(۱) وفي شرح المجلة: واذا تم الصلح فليس لواحد فقط من الفريقين الرجوع عنه. (شرح المجلة ٨٤٥، المادة: ١٥٥٦ الباب الرابع في احكام الصلح)

وفي الانقروية: وفي البزازية ومجمع الفتاوي عن المبسوط بعد تمام الصلح بينهما بالتراضي ليس لواحد منهما ان يرجع عنه.

(فتاوي انقروية ٢:٢٤٠ كتاب الصلح، نوع في الصلح عن دعوي النكاح)

چې طارق د دې لارې د استعمال د مخکې په شان حقدار دې دا فیصله خالد هم ومنله خو څه موده پس ترې دوباره منحرف شو او لاره ئې بنده کړه، شرعی حکم چې د دې په باره کې څهٔ وی د هغې نه مو خبر کړئ؟ بینواتوجروا

المستفتی: فیض عالم خان پنیالئ .... ۲٤ شعبان ۱٤۰۳هـ

**الجواب:** د باقاعده مصالحت او راضی نامې نه پس یو طرف هم د انحراف حقدار نه دی (۱) پس په صورة مذکوره کې کله چې خالد دا صلح، کومه چې په حقیقت کې ابراء ده ومنله نو دوباره د هغه حق نه شی راواپس کیدې. کما فی شرح المجلة ۸٤۸: اذاابراواحدالاخرمن حق سقط ذلك الحق ولايبقى له ان يدعى به(۲) والله اعلم بالصواب

## د مقتول د خوی په موجودګئ کې ورور د قاتل سره صلح نه شی کولې

**سوال:** مايقول العلماء الكرام والمفتيان العظام فى المسئلة الآتية: قتل جماعة رجلاً متعمداً فصالح اخ المقتول مع القاتلين وكان ابن المقتول صغيراً

---

(۱) وفي شرح المجلة: اذا تم الصلح فليس لواحد فقط من الفريقين الرجوع عنه. (شرح المجلة ۸٤٥، المادة ۱۵۵٦ الباب الرابع في احكام الصلح)

وفي الانقروية: في البزازية ومجمع الفتاوي عن المبسوط بعد تمام الصلح بينهما بالتراضي ليس لواحد منهما ان يرجع عنه. (فتاوي انقروية ۲:۲٤۰ كتاب الصلح، نوع في الصلح عن دعوي النكاح)

(۲) شرح المجلة ۸٤۸ المادة: ۱۵٦۲ الفصل الثاني في المسائل المتعلقه باحكام الابراء)

وفي جامع الفصولين: لو قال برأت من دعواي في هذه الدار لا يبقي له حق فيه وكذالو قال برأت من هذا القن او خرجت من هذا القن بطل دعواه. (جامع الفصولين ۱:۹۲ الفصل العاشر في التناقض في الدعاوي)

في حين المصالحة، فلما كبر قتل احد قاتلي ابيه هل لهذا (ابن المقتول) قصاص املا؟ وان مصالحة العم هل يصح في اوان صغر ابن المقتول املا؟ بينوا توجروا

المستفتي: نامعلوم...... متعلم دار العلوم حقانيه اكوړه خټک..... ۳ دسمبر ۱۹۸۳ء

**الجواب:** الاخ لا يملك الصلح ولا العفو، كما في رد المحتار ٥: ٤٧٦: واذا قتل قريب الصبي فلابيه القود والصلح لا العفو وللوصي الصلح فقط، وليس للاخ ونحوه شيئ من ذلك(١) انتهى بحذف يسير. وهو الموفق

## د صلح كولو نه پس د دعوى نه رجوع كول

**سوال:** څه فرمائي علماء كرام د دې مسئلې په باره كې چې د زيد او عمر ترمينځه په يو ځمكه باندې جهګړه ده ځمكه د زيد په تصرف كې ده عمر په دې باندې د شركت دعوى كړې ده وروستو د قاضى محكې پيش شو قاضى صاحب د عمر نه شهادت طلب كړو عمر د ګواهانو په لټون كې وو چې په دې وخت كې بعض خلقو د دعوى ترمينځه صلح بالخمس وكړه او وې ويل چې مونږ به تقسيم كولو دپاره راشو خو لا ئې تقسيم نه وو كړې چې زيد په دې صلح باندې د ناراضتيا اظهار كولو سره عمر ته وويل چې ما ته صلح منظور نه ده ته ګواهان اولټوه زيد د صلح د عدم اتمام د وجې نه رجوع كولې شي يا نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: ماش ګل كوهساتي متعلم حقانيه هذا.... ١٧ مارچ ١٩٨٥ھ

**الجواب:** كه دې مدعى په دې مصالحت باندې د رضامندئ اظهار وكړو نو هم دا مصالحت ناقابل رجوع دې، كما في شرح المجلة اذا تم الصلح فليس

---

١ ) (ردالمحتار ٥:٣٨٣ كتاب الجنايات، فصل فيما يوجب القود ومالا يوجبه)

لواحد فقط من الفریقین الرجوع عنه(١) فقط

## د زنا د وجې نه ښځې لره قتل کولو نه پس د زاني خاوند ته په صلح کې د پیسو ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی خپله ښځه د زنا په حالت کې نیولو سره قتل کړه او زاني اوتختیدلو اوس هغه زاني سړې د دې قتل شوې زنانه د خاوند سره صلح کول غواړی او پیسې په صلح کې ورکولو ته تیار دې آیا دې خاوند له دا پیسې اخستل جائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالله شاه متعلم حقانیه اکوړه خټک .... ٢٥ دسمبر ١٩٨٨ء

**الجواب:** هذا الصلح باطل لانه وقع عن حق الله تعالی وهذا المال مردود علی الزانی بحدیث ورد بذلك فلیراجع الی حدود المشکوٰة(٢) والله اعلم بالصواب

---

١) (شرح المجلة ٨٤٥، المادة ١٥٥٦ الباب الرابع في احكام الصلح)

وفي الانقروية: وفي البزازية ومجمع الفتاوي عن المبسوط بعد تمام الصلح بينهما بالتراضي ليس لواحد منهما ان يرجع عنه.

(فتاوي انقروية ٢:٢٤٠ كتاب الصلح، نوع في الصلح عن دعوي النكاح)

٢) وفي المشكوٰة المصابيح: عن ابي هريرة وزيد بن خالد ان رجلين اختصما الي رسول الله ﷺ فقال احدهما... قال ان ابني كان عسيفا علي هذا فزني بامرأته فاخبروني ان علي ابني الرجم فافتديت منه بمائة شاة وبجارية لي ثم اني سألت اهل العلم فاخبروني ان علي ابني جلد مأة وتغريب عام وانما الرجم علي امرائة فقال رسول الله ﷺ اما والذي نفسي بيده لا قضين بينكما بكتاب الله اما غنمك وجاريتك فرد عليك واماابنك فعليه جلد مائة وتغريب عام.

(مشكواة المصابيح ٣٠٩ كتاب الحدود، الفصل الاول)

وفي الهندية: رجل زني بأمراة رجل فعلم الزوج واراد حدهما... [بقیه بر صفحه آئنده...

## المرء يوخذ باقراره

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې يو متنازع فيه ځای د دوه ډلو ترمينځه دې او هر يوه ډله د خپل ملکيت دعوی کوی حال دا چې د يوې ډلې هم په دې کې قبضه او تصرف نه وو د دواړو ډلو په رضا سره يو حکم راوستلې شو دواړو ډلو متنازع فيه ځای حکم ته ورکړو او يو ډلې د متنازع فيه ځای نه علاوه هم هغې سره متصل ځای باندې حکم ګرځولې هم دې يعنی هغه ته ئې ويلې دی چې دا هم متنازع فيه ځای دې دويمه ډله په خبريدلو باندې راپاڅيدل چې دا زمونږ د خپلوانو ځای دې حکم د فريقين نه اختيار اخستلو سره په نيم نيم باندې صلح وکړه او د متنازع فيه ځای نه علاوه ځای د دويمې ډلې په حصه کې راغلو آخر کله چې په دې ځمکه (غير متنازع فيه په حقيقت) کې مالک خبردار شو نو هغوی وويل چې دا ځای زمونږ دې دا مونږ يوې ډلې ته هم نه شو ورکولې او دا په متنازع فيه کې شامل نه دې لهذا د دې به څه حکم وی؟ بينواتوجروا

المستفتی: محمد رقيب وزيرستانی..... ٤ ذوالقعده١٤٠٢هـ

**الجواب:** اصل ( المرء يوخذ بأقراره )(١) په بناء باندې دا حصه معهوده به دهغه اقرار کونکو نه اخستلې شی او د غير اقرار کونکو نه به هيڅ بدل نه شی اخستلې خو که دا ثابته شی چې دا اقرار د جهالت وغيرها وجوهاتو د وجې نه صحيح نه دې (٢) نو بدل به ورکولې شی. والله اعلم بالصواب

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] فصالحاه معاً او احدهما علي دراهم معلومة او شيئ آخر علي ان يعفو عنهما كان باطلا لا يجب المال وعفوه باطل سواء كان قبل الرفع او بعده. (فتاوي هندية ٤:٢٨٣ كتاب الصلح، الباب الحادي والعشرون في المتفرقات)

١ ) في شرح المجلة: المرء مواخذ باقراره. (شرح المجلة ١:٢٢٦ المادة ٧٩)

٢ ) قال العلامة الحصكفي: اقر حر مكلف او عبد بحق معلوم او مجهول صح لان جهالة المقربه لاتضر الاذابين سببا تضره الجهالة كبيع واجارة (الدرالمختار ٤:٥٠٠ كتاب الاقرار)

## په جبر او اکراه سره د يو څيز اقرار کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې يو خاندان په يو ملک کې نوابان وی او په هغه ملک کې د هغوی حکم چليږی، عوام قتل او جلاوطن کولې شی او په هغه ملک کې د عوامو څوک فرياد اوريدونکې نه وی او دا حکمران جبرا د عوامو نه دا دستخط واخلی يا يو فرد مثلا د غلام حسن نه چې ته دا اقرار او دستخط وکړه چې ستا فلانئ ځمکه د امان الله او گل بادشاه ملکيت دې او غلام حسن دا اقرار ونکړی نو هغه جلاوطن کولې شی حال دا چې دا ځمکه د غلام حسن پلار آباده کړې ده او په دې باندې کورونه او باغونه هم د هغه دی نو د دې جبری دستخط څه حکم دې او په دې اقرار باندې دې د خپلې ځمکې نه محروم کيدې شی يا نه؟ بينواتوجروا

**المستفتی:** غلام حسن دير ..... ٢٩ ربيع الثانی ١٤٠١هـ

**الجواب:** د صدق او ثبوت په شرط دا اقرار او دستخط نامنظور او کالعدم دې. لما فی شرح المجلة ٨٦٢ : **يشترط فی الاقرار رضا المقر فالاقرار الواقع بالجبر والاكراه لايصح**[1] **وهوالموفق**

## د وکيل صلح لره فسخ کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د دوه قبيلو خپل مينځ کې د اوبه خور په نمبر باندې جهگړه شوه، زيد د خپل طرف نه اصالةً د خپلې قبيلې د طرف نه وکالةً مختار شو او عمر د خپلې قبيلې د طرف نه وکالةً اود خپل طرف نه اصالة مختار شو، د قاضی محکمه په

---

(١) (شرح المجلة ٨٦٢ المادة: ١٥٧٥ الكتاب الثالث عشر في الاقرار)

وقال العلامة الحصكفي: والرضا شرط لصحة هذه العقود وكذا لصحة الاقرار. (الدرالمختار ٥:٩٠ كتاب الاكراه)

حضور کې وکیلان سره د فریقینو د شرعي فیصلې دپاره پیش شو، وکیلانو خپل خپل صورت حال بیان دعوی او جواب دعوی ولیکل د محکمې قاضي او ثالثانو وکیلانو او موکلان ته د صلح ترغیب ورکړو او وکیلان او موکلان په صلح باندې راضي شو، قاضي موصوف د زید د قبیلې دپاره د اوبه خور نمبر په طور د صلح مقرر کولو سره ورکړو او هر یو خپل خپل لیکل د قاضي موصوف د طرف نه یوړل، د یو کال مودې پورې دواړو ډلو په چپ چاپ د خپلې دعوې نه خاموش وو، د یو کال د تیریدلو نه پس زید خپلې قبیلې ته دهوکه ورکولو سره په دعوی کولو باندې تیار کړو او خپله ئې هم په جوش او غصه کې راتلو سره د اوبه خور د مذکوره نمبر دعوی په عدالت کې دائر کړه، اوس زید غواړي چې د پورته صلح نقض او فسخ وکړي نو آیا زید د شریعت په رڼا کې دا فسخ کولې شي یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتي: فضل ودود علاقه جندول ضلع دیر ... ۲۸ شوال ۱٤۰۳هـ**

**الجواب**: زید وکیل په پورته صلح کې حقدار د نقض او فسخ نه دې. په مجله ۳۰۳ کې دی: **اذا تم الصلح فليس لواحد من الطرفين فقط الرجوع عنه ويملك المدعي بالصلح بدله ولا يبقى له حق في الدعوى وليس للمدعى عليه ايضاً استرداد بدل الصلح منه(۱) وايضاً في المجلة ۳۰٤(۲) والكاملية ۱٦۱،۱٦۲(۳) وايضاً في الخيرية ۱۰۳(٤) اذا جرى الصلح بين المتداعيين وكتب الصك وفيه**

---

۱) (شرح المجلة ۵٦۹:٤، المادة: ۱۵۵٦ الباب الرابع في بيان احكام الصلح)

۲) في شرح المجلة: اذا ابرأ واحد آخر من حق يسقط حقه ذلك ليس له دعوي ذلك الحق ... اما اذا ابرأه عن دعواها كان سقوطها قضاء وديانة. (شرح المجلة ۵۷٦:٤، المادة ۱۵٦۲ الفصل الثاني في بيان المسائل المتعلقة باحكام الابراء)

۳) (فتاوي كامليه ۱٦۰،۱۵۹ كتاب الصلح والابراء)

٤) (فتاوي خيرية علي هامش تنقيح الحامدية ۱٦۲:۲ كتاب الصلح)

المتداعيين وكتب الصك وفيه ابراء كل منهما الاخر عن دعواه الخ، فان حاكما او حكم ببطلان هذا الصلح لا يتمكن المدعي من اعادة دعواه، وايضاً في فتاوى انقروية ٢٤٠(١) وتكملة ردالمحتار ٨: ٢٣٠(٢) وردالمحتار ٣: ٥٦٢(٣) وايضا في الهندية ٥: ٣٥٤، ٣٥٥ وايضا في المجلة ٣٣٣ وكذلك صالح احد مع آخر عن دعوى بينهما واقر في حضور الحاكم بان ذلك الصلح قد عقد صحيحا وربط اقراره هذا بسند ثم ادعى بان ذلك الصلح كان بشرط مفسد فلا تسمع دعواه(٤). والله اعلم

كاتب: مولانا فضل ودود ... دستخط: حضرت مفتي صاحب

## د خور د میراث نه د خپلې خوښې څیز اخستلو سره د ورونو دپاره باقي میراث پرېښودل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې خور په میراث کې خپله برخه تول يا بعض حصه خپلو ورونو ته معاف کولې شي يا نه، که هغه

---

١) في الانقروية: واذا جري الصلح بين المتداعيينو كتب الصک وفيه ابراء كل واحد منهما لصاحبه عن الدعوي ثم ظهر ان الصلح وقع باطلا بفتوي الائمة فاراد المدعي ان يدعي ما ادعي لا تصح دعواه للابراء السابق. (الفتاوي الانقروية ٢:٦٤١ كتاب الصلح والابراء)

٢) في تكملة ردالمحتار: ادعي عليه مالا معلوما فصالحه علي الف درهم وقبض بدل الصلح وذكر في آخر الصک وابراء المدعي عن جميع دعواه وخصوماته ابراء صحيحا عاما فقيل لم يصح الصلح ... فلا تسمع دعوي المدعي بعده للابراء العام. (تكملة ردالمحتار ١٧٣: ٧الجزء الثاني كتاب الصلح)

٣) (ومثله في ردالمحتار ٥٢٦: ٤ كتاب الصلح)

٤) (شرح المجلة ١٥٥: ٥، المادة ١٦٥٨)

په رضا او رغبت سره خپله حصه معاف کول غواړي نو د هغې دپاره صحیح صورت څه دې؟ بینواتوجروا

المستفتي: عبدالمنان...... ١٤ اګست ١٩٧٠م

**الجواب:** د خور وغیره دپاره جائز دي چې د میراث نه معمولي څیز اخستلو سره باقي ټول د ورونو وغیره دپاره پرېږدي.

كما في الشريفية ٨٥ (١) وهوالموفق

...

١) في الشريفية: والمراد به ههنا ان يتصالح الورثة علي اخراج بعضهم عن الميراث بشيئ معلوم من التركة وهو جائز عند التراضي.

(الشريفية ٧٣ فصل في التخارج)

وفي الهندية: اذا كانت التركة بين ورثة فاخرجوا احدهم منها بمال اعطوه اياه والتركة عقار او عروض صح قليلا كان ما اعطوه او كثيرا.

(فتاوي هندية ٢٦٨: ٤ كتاب الصلح، الباب الخامس عشر في صلح الورثة)

بسم اللہ الرحمٰن الرّحیم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاویٰ فریدیه

# کتاب المضاربة

قال اللہ تبارك وتعالیٰ:

وَاٰخَرُوْنَ یَضْرِبُوْنَ فِی الْاَرْضِ یَبْتَغُوْنَ مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ ۙ

(سورة المزمل)

# كتاب المضاربة

## بهر ملک ته د تلو دپاره د مضاربت د مال نه
## په ویزه وغیره باندې د خرچ کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې مثلا یو سړی بل ته پنځلس زره روپۍ ورکوی چې دا په مضاربت کې شامل کړه تا ته مطلق اجازت دې که په دې سره خپله تجارت کوې او که د بل چا سره شراکت کوې یا په دې سره خپله اجاره وغیره کوې یا که بل چاته ئې په اجاره وغیره باندې ورکوې غرض دا چې تا ته مکمل اجازت دې چې په دې پیسو سره په حلال طریقه باندې د عقد مضاربت په طور ګټه وکړې ګټه به نیمه نیمه تقسیم کړو یا دوه حصې ګټه زما یا دریمه او یا حصه نفع د بل، او که نقصان وشو نو هغه به د پیسو ورکونکی په ذمه وی. اوس دا مضارب (پیسې اخستونکې) پیسې اخستلو سره پاسپورټ ویزه وغیره اخستلو سره قطر یا ابوظهبی ته لاړ شی او د هغه ځای نه ګټه راوړی او الله پاک مه کړه که دا پیسې د دې مضارب نه په څه طریقه یا بغیر د ارادې نه هلاکې شوې نو دا پیسې د رقم ورکونکی هلاکې شوې، او د مضارب نه به د دې مطالبه نه کوی نو دا مضاربت جائز دې یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** شهباز خان...... بنوں...... ۱۹ رمضان المبارک ۱۳۹۷هـ

**الجواب:** که دا مضارب قطر وغیره ته د تجارت دپاره ځی نو د رب المال په اجازت سره به په پاسپورټ او ویزه باندې خرچ کول جائز وی، او دا خرچ به د مال د مضاربت نه شمار کیږی (۱) او که هلته د ملازمت دپاره ځی نو دا

---

(۱) في شرح المجلة: اذا ذهب المضارب في عمل المضاربة الي محل غير البلدة التي وجد فيها ياخذ مصرفه بالقدر المعروف من مال المضاربة... والمراد من المصرف في قوله يأخذ مصرفه، طعامه وشرابه وكسوته وركوبه اي ما ركب ولو بكراء وكل ما يحتاجه في عادة التجار فدخل فيه غسل ثيابه واجرة من يخدمه من الخبز الخ.
(شرح المجلة ٣٥٣:٤ المادة ١٤١٩ كتاب المضاربة)

معامله په مضاربت نه وی، یعنی د ملازمت نه حاصل شوې رقم به منافع نه شمار کیږی. وهوالموفق

## په مضاربت کې په نیمه باندې ورکړې شوې رقم کې نفع هره میاشت بغیر د حساب نه د اندازې مطابق ورکول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زما یو ورور دکاندار دې تقریبا د یو لاک روپو کاروبار کوی مانه زما ورور شل زره روپۍ په دې شرط باندې واخستلې چې په شلو زرو روپو چې به کومه ګټه ورکړې کیږی هغه به نیمې نیمې اخلو. ورور وائی چې زه هره میاشت حساب نه شم کولې او اندازه کولو سره به ئې درکوم. لهذا هغه ماته هره میاشت کله سل کله درې سوه او کله یونیم سل روپۍ راکوی او دکمی زیاتی مونږ معافی کووا وس زما په زړه کې وسوسه راغلې ده چې دا خو سود دې ما ورور ته وویل چې زه دا کار کول نه غواړم څکه چې د قیامت په ورځ باندې به جواب ورکوم، سوال دا دې چې آیا دا منافع یا کاروبار زما دپاره جائز دې یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: فضل داد پنډی..... ۳۰ جولائی ۱۹۸٦ء

**الجواب:** چونکې په صورت مسئوله کې نفع د تحری نه معلوموولې شی، د مخکې نه ئې تعین نه دې شوې لهذا دې ته سود نه شی ویلې کیدې (۱) والله اعلم بالصواب

---

(۱) وفي الهندية: ومنها ان يكون نصيب المضارب من الربح معلوما علي وجه لا تنقطع به الشركة في الربح كذا في المحيط.

(فتاوي هندية ٤:٢٨٧ كتاب المضاربة، الباب الاول في تفسيرها... وشرائطها)

وفي شرح المجلة: يشترط في المضاربة كشركة العقد كون رأس المال معلوما وتعين حصة المتعاقدين من الربح جزأ شايعا كالنصف والثلث.

(شرح المجلة ٤:٣٣٢ المادة ١٤١١)

**د حکومت نه اخستلې شوې غنمو کې په شرائطو باندې مضاربت صحیح دې**

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ولی خان د یو قومی ډپو کار کوی حکومت ولی خان ته د اوړو هره بورئ په ۸۷ روپئ باندې د میاشتې ورکوی بیا هغه بورئ په ۹۰ روپئ قیمت باندې خرڅوی، یعنی درې روپئ په هره بورئ کې ګټی، اوس ولی خان حاجی محمد نور صاحب ته ویلې دی چې تاسو ماته هره میاشت ۹۰۰۰ روپئ راکوئ، چې کومه درې روپئ ګټه کیږی په هغې کې نیمه ستاسو او نیمه زما، ګټه د هرې میاشتې یقینی وی د نقصان احتمال هم نشته، اوس دا صورت یعنی نیمه حصه د ولی، د حاجی محمد نور صاحب دپاره جائز ده یا نه؟ **بینوا توجروا**

المستفتی: عادل شاه دکاندار سدا کوهاټ.... ۱۹ اگست ۱۹۷۷ء

**الجواب:** ۱: که ولی خان او حاجی محمد نور صاحب په نیمه نیمه باندې فیصله کړې ده نو دا مضاربت صحیح دې کنه نو فاسد دې.

**كما في شرح التنوير: شرطها امور سبعة الى ان قال وكون الربح بينهما شائعا فلو عين قدرا فسدت، هامش ردالمحتار ٤: ٤٨٥(١)، قلت والمفسد شرط الخسران على المضارب كما في ردالمحتار في الصفحة المذكورة لا عدم احتمال الخسران(٢) فافهم.**

۲: که ولی خان مشتری وی نو په دې کې باک نشته، او که د حکومت امین او وکیل وی نو دا مخالفت او خیانت دې (٣) **والظاهر هو الاول لان الضياع عليه فافهم. وهو الموفق**

---

١) (الدرالمختار ٤: ٥٣٩،٥٤٠ كتاب المضاربة)

٢) قال العلامة ابن عابدين: (قوله بطل الشرط) كشرط الخسران علي المضارب، (ردالمحتار ٤: ٥٤٠ كتاب المضاربة)

٣) قال العلامة الكاساني: واما الوكيل بالبيع فالتوكيل بالبيع لا يخلو اما ان يكون مطلقا واما ان يكون مقيدا فان كان مقيدا يراعي فيه القيد بالاجماع حتي اذا خالف قيده لا ينفذ علي الموكل ولكن يتوقف علي اجازته. (بدائع الصنائع ٥: ٢٦ كتاب الوكالة)

## په مضارب باندې د لارې خرڅ، دکان پورې د رارسولو او په مال کې د نقصان د ذمه دارئ شرطونه

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې:

۱: یو سوداګر افغانستان ته روان دې بل سړی ورته پیسې ورکړې چې زما دپاره په دې پیسو باندې فلانئ کپړه راوړئ او د اصلی قیمت نه علاوه په تهان کې شل روپئ ستاسو په ما باندې شوې او د لارې کرایه او خرچ هم ستاسو دې او مال به په ذمه دارئ سره دکان ته رارسوې، آیا دا سودا جائز ده یا ناجائز؟

۲: یو سوداګر افغانستان ته روان دې بل ورته پیسې ورکړې چې په دې پیسو باندې کپړه راوړه زما او ستاسو نفع او نقصان به شریک وی او دکانه پورې راوړل به ستاسو ذمه داری وی که په لاره کې د مال نقصان وشو نو سوداګر به ذمه دار وی، او خرچه، کرایه وغیره به مشترک وی آیا دا جائز دی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: مصباح الدین ضلع کوهاټ ۸ محرم ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** صورت اول، دویمه معامله فاسده ده (۱) مناسب دا ده چې دا سوداګر خپلې پیسې په خپله ذمه دارئ سره دا کپړه واخلی او دا دکاندار ئې د هغه سوداګر نه په نقد یا د سابق لاحق قرض په عوض واخلی. والله اعلم

- **دمضارب دپاره په رأس المال باندې داخستلې شوې حیوان توابع استعمالول**

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې مضارب د رب المال په اجازت سره په د رأس المال نه پنځه کډې واخستل د هغوی پئ په

---

۱) قال العلامة الحصکفي: کل شرط یوجب جهالة في الربح او یقع الشرکة فیه یفسدها والابطل الشرط وصح العقد اعتبارا بالوکالة.

وقال العلامة ابن عابدین: (قوله بطل الشرط) کشرط الخسران علي المضارب. (الدرالمختار مع ردالمحتار ۴:۵۴۰ کتاب المضاربة)

شريعت مطهره کې څه تفصيل لري او دهغې استعمال جائزدې يا نه؟ بينواتوجروا

المستفتي: مولوی عبيد الله عرف گل خان بلوچستان ۷ جولائی ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** پئ، وړئ او بچې ټول په ټول په مال مضاربت يا ګټه کې داخل دی، د دې استعمال بغير د اجازت نه ممنوع دې د هغې قيمت د فقهاء کرامو د قاعدې مطابق کله په راس المال کې داخل وی او کله په ګټه کښې (ماخوذ از هندية) (1) وهوالموفق

## د رب المال د مضارب سره په عمل کې د شرکت شرط لګول

**سوال:** چه فرمودند علماء کرام دریں مسئله که شرکت رب المال مع المضارب جائز اند یا غیر جائز اند خواه شرکت تجارت گوسفندان باشد یا فروختن رخت یعني کپڑا بوعده سال اگر جائز باشد مثلاءمطلق اند یا مقید بشرط ؟ بینواتوجروا

المستفتي: ملا بارک الدین صاحب ڈیره اسماعیل خان

**الجواب:** شرکت بطریق اشتراط ناجائز است . لما فی الدرالمختار: وکونه مسلما الی المضارب، وفی ردالمحتار۴: ۴۸۵ فلوشرط رب المال ان یعمل مع المضارب لاتجوزالمضاربة(2). وهوالموفق

---

(1) وفي الهندية : واما حكمها فانه اولا امين وعند الشروع في العمل وكيل واذا ربح فهو شريک. (فتاوي عالمكيرية ۴:۲۸۸ كتاب المضاربة، الباب الاول)

وقال العلامة سليم رستم باز : المضارب امين فرأس المال في يده في حكم الوديعة اما من حيث تصرفه في رأس المال فهو وكيل رب المال واذا ربح كان شريكا فيه. (شرح المجلة ۷۴۸ المادة: ۱۴۱۳ الفصل الثالث في احكام المضاربة)

(2) (الدرالمختار مع ردالمحتار ۴:۵۴۰ كتاب المضاربة)... وفي الهندية :منها ان يكون المال مسلما الي المضارب لا يد لرب المال فيه فان شرطا... [بقيه بر صفحه آئنده...

## په مضاربت او شرکت کې د ګټې تعین عقد لره فاسد کونکې دې

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې يو موچی سره زما شراکت داسې دې چې د موچی خپل دکان دې کاريګر هم د موچی دی، څه چپل د کمپنۍ نه اخستلو سره راوړی، او څه په خپل لاس او کاريګرو باندې جوړوی، په دې صنعت او کاروبار کې خساره بالکل نه وی، صرف ګټه وی، اوس د تپوس کولو امر دا دې چې ما د دې شراکت خواهش ظاهر کړو نو هغه وويل چې تاسو ماته شل زره روپۍ راکړئ او زما نه فی جوړه خرڅه شوې کې به څلور روپۍ تاسو ته ملاويږی د مياشتې به حساب وی، څومره جوړې چې خرڅې شوې هغه هومره پيسې به تاسو ته ملاويږی مثلا سل جوړې خرڅې شوې نو څلور سوه روپۍ به تاسو ته ملاويږی. آيا دا شرکت جائز دې؟ بينواتوجروا

المستفتی: مولوی فضل مولا باجوړی..... ۱۳ شعبان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** په مضاربت او شرکت کې تعين د ګټې مفسد د عقد دې. (شرح المجلة ۷۱۳، ۷۴۷) (۱) وهوالموفق

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] ان يعمل رب المال مع المضارب تفسد المضاربة.
(فتاوي هندية ۲۸۶:۴ كتاب المضاربة، الباب الاول في تفسيرها)

(۱) قال العلامة سليم رستم باز: فاذا اتفق الشركاء علي اعطاء احدهم قدرا معينا كانت الشركة باطلة... فلو شرط لاحدهما قدر معين كمائة مثلاً فسدت المضاربة لقطع الشركة في الربح. (شرح المجلة ۷۴۷،۷۱۳ المادة ۱۳۳۷، ۱۴۱۱)

وفي الهندية: ومنها ان يكون نصيب المضارب من الربح معلوما علي وجه لا تنقطع به الشركة في الربح فان قال علي ان لک من الربح مائة درهم او شرط مع النصف او الثلث عشرة دراهم لا تصح المضاربة.
(فتاوي هندية ۲۸۷:۴ كتاب المضاربة، الباب الاول في تفسيرها)

## د خسارې او د هلاکت د ضمان په مضارب باندې شرط لګول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی بل سړی ته لس زره روپئ په مضاربت باندې د تجارت دپاره ورکړې په دې صورت کې که مال تجارت ضائع شی یا په تجارت کې څه نقصان راشی نو مضارب او رب المال به دواړه په هغې کې شریک وی یا که صرف رب المال، بله دا چې که مضارب د پیسو اخستلو په وخت نقصان اومنی نو بیا د نقصان نه پس به په هغه باندې خساره لازم وی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم .. ١٦ مارچ ١٩٨٦ء

**الجواب:** دا د مضاربت مال د مضارب سره امانت دې د دې د ضیاع یا هلاکت په صورت کې په مضارب باندې ضمان نه راځی. (هدایة (١) شامی (٢))، او تاوان ټول په رب المال باندې دې د تاوان په مضارب باندې شرط کول نامنظور او ناجائز دی. کما فی شرح المجلة ٧٥٧ الضرر والخسارة یعود فی کل حال علی رب المال واذا اشترط ان یکون مشترکا بینه وبین المضارب فلا یعتبر ذلک الشرط (٣). وهو الموفق

## د مدیون د قرض په مال سره د مضاربت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی په بل

---

١) قال العلامة المرغيناني : وما هلک من مال المضاربة فهو من الربح دون رأس المال... فان زاد الهالک علي الربح فلا ضمان علي المضارب لانه امين.
(الهداية ٣:٢٦٦ كتاب المضاربة)

٢) وقال العلامة الحصكفي : وما هلک من مال المضاربة يصرف الي الربح لانه تبع فان زاد الهالک علي الربح لم يضمن لانه امين. (الدرالمختار ٤:٥٤٦ كتاب المضاربة)

٣) (شرح المجلة ٤:٣٦٤ المادة ١٤٢٨ الفصل الثاني في بيان شروط المضاربة)

سرې باندې د دوه زره روپو مال خرڅ کړو او بیا ئې وویل چې زما چې ستاسو په ذمه کومې پیسې دی په هغې باندې تاسو مضاربت وکړئ او په هغه مال کې دا پیسې ولګوئ کوم چې ما تاسو ته درکړې دې کله چې راس المال ماته وصول شی نو باقی مال به زمونږ او ستاسو ترمینځه نیم نیم تقسیم کولې شی، آیا دا صورت په مضاربت کې داخیدلې شی یا نه؟ او په دې صورت کې د پیو وغیره د منافع څه حکم دې؟ دلته دا رواجونه ډیر دی آیا دا په مضاربت کې داخلیدې شی یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: مولوی شیر الله صدر بازار لورالائی..... ٢٤ مئی ١٩٧٢ء

**الجواب:** دا مضاربت صحیح نه دې. فی الدر المختار: **واما المضاربة بدین فان علی المضارب لم یجز وان علی ثالث جاز وکره**، هامش رد المحتار ٤/٤٨٤ (١) او واضحه دې وی چې پئ وغیره به ټول د مالک وی.

**کما فی الخلاصة والحادث کلا لصاحب البقر وفیها ایضا وله علی المالك قیمة علفها واجر المثل فی قیامه علیها** ٢: ١٠٩ (٢). **وهوالموفق**

## په مضارب باندې د شرط د مخالفت د وجې نه د ضمان حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید عمر ته یو لاک روپئ ورکړې چې په دې باندې د کپړو تجارت کوه او دا رقم په طور د مضاربت ورکړې شو، کله چې رب المال د مضارب نه حساب وغوښتلو نو هغه وویل چې ما د کپړو تجارت نه دې کړې، د تیلو تجارت مې کړې دې، په هغې کې نقصان هم شوې دې اوس رب المال د مضارب نه راس المال غواړي، شرعی فتوی او حکم په دې معامله کې څه دې؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: محمد عبدالله

---

(١) (الدرالمختار ٤: ٥٤٠ کتاب المضاربة)

(٢) (خلاصة الفتاوي ٣: ١١٤ کتاب الاجارات، الجنس الثالث في الدواب)

**الجواب:** په دې مضارب باندې د شرط د مخالفت د وجې نه د ټول راس المال واپس کول ضروري دي

يدل عليه ما في الهندية: ان خص له رب المال التصرف في بلد بعينه او في سلعة بعينها تتقيد به ولم يجز له ان يتجاوز ذلك (الى ان قال) فان اخرج الى غير ذلك البلد فاشترى ضمن وكان ذلك له وله ربحه وعليه وضيعته ۴: ۲۹۵ (۱). وهوالصواب

## مضارب ته د میاشتې د مخصوص رقم مقرر کولو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې عمر د زید نه څه رقم واخستلو، عمر زید ته وائي چې زما کار (تجارت) کې نقصان نه کیږي، زه به د میاشتې تاسو ته یو مخصوص رقم درکوم، آیا دا په سود کې شامل دې یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: جمروز خان دره آدم خیل..... ۱۷ اکتوبر ۱۹۷۸ء

**الجواب:** دا معامله د مضاربت فاسده ده او ناجائز ده.

كما في شرح التنوير: كل شرط يوجب جهالة في الربح او يقطع الشركة فيه، وفي ردالمحتار ۴: ۴۸۵ كما لو شرط لاحدهما دراهم مسماة يفسدها (۲). وهوالموفق

---

۱) (فتاوي عالمگيرية ۴: ۲۹۷ کتاب المضاربة، الباب السادس فيما يشترط علي المضارب)

۲) (الدرالمختار مع ردالمحتار ۴: ۵۴۰ کتاب المضاربة)

وفي الهندية: ومنها ان يكون نصيب المضارب من الربح معلوما علي وجه لا تنقطع به الشركة في الربح، فان قال علي ان لک من الربح مائة درهم او شرط مع النصف او الثلث عشرة دراهم لا تصح المضاربة.

(فتاوي هندية ۴: ۲۸۷ کتاب المضاربة، الباب الاول في تفسيرها)

## په حرام مال باندې د مضاربت کولو نه د حاصل شوې نفع حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې په محکمه ایری ګیشن (پائپ لائن) کې د اکاؤنټینټ په حیثیت سره خدمات ادا کوی او هغه ته د تنخواه نه علاوه نورې ډیرې پیسې ملاویږی او په نه اخستلو باندې ئې سټاف تنګوی، بیا د هغه نه یو سړې یو لاک روپۍ د مضاربت دپاره واخلی او مضارب هغه ته نیمه ګټه ورکوی، آیا په دې پیسو باندې به مضاربت صحیح وی؟ که مضاربت والا طالب علم ته د تعلیم د حصول دپاره دا پیسې ورکړی نو آیا په دې پیسو باندې به د دینی علومو حصول جائز وی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم.....۱ جنوری ۱۹۸٦ء

**الجواب:** د حرام مال نه حاصل شوې ګټه حلال ده، اګر چې دا معامله حرام ده.(۱) لعدم جری العادة علی تعین الدراهم عند الشراء بها. پس په دې نفع سره د هر فقیر او غنی اعانت جائز دې، بخلاف المال الحرام.(۲) وهوالموفق

---

(۱) قال العلامة الشامي: (قوله اكتسب حراما الخ)توضيح المسألة ما في التتارخانية حيث قال: رجل اكتسب مالا من حرام ثم اشتري فهذا علي خمسة اوجه، اما ان دفع تلك الدراهم الي البائع اولاً ثم اشتري منه بها او اشتري قبل الدفع بها ودفعها، او اشتري قبل الدفع بها ودفع غيرها، او اشتري مطلقا ودفع تلك الدراهم، او اشتري بدراهم اخر ودفع تلك الدراهم، قال ابونصر يطيب له ولا يجب عليه ان يتصدق الا في الوجه الاول... وقال الكرخي في الوجه الاول والثاني لا يطيب ،وفي الثلاث الاخيرة يطيب، وقال ابوبكر لا يطيب في الكل، لكن الفتوي الآن علي قول الكرخي دفعا للحرج عن الناس.

(ردالمحتار ۴:۲۴۴ مطلب اذا اكتسب حراما ثم اشتري فهو علي خمسة اوجه)

(۲) في شرح المجلة: لانه اما غاصب او مستودع، وكل منهما استربح فيما في يده لنفسه، يكون ربحه له لا للمالك لكن يملكه ملكاً خبيثاً سبيله التصدق به علي الفقراء. (شرح المجلة ۴:۳۰ المادة: ۱۰۹۰)

**په مضاربت کې د خیانت ثابتیدلو نه پس د مال مضاربت د تقسیم طریق کار**

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې زید او بکر د مضاربت کاروبار شروع کړو، زید دوه لاکه روپۍ سرمایه ولګوله او بکر مضارب ته ئې په نیمه ورکړه. بیا بکر زید سره د مشورې کولو نه بغیر یو ملازم وساتلو، زید په دې اعتراض وکړو نو بکر په جواب کې وویل چې دا زما معتمد دوست دې، په دې باندې زید خاموش شو، یو نیم کال پس زید ته معلومه شوه چې په دکان کې دیارلس نیم زره روپۍ نقصان شوې دې، بکر او عمر غلا کړې ده، بکر هم په دې موده کې د خپلو ضروریاتو دپاره د دکان نه پنځه څلویښت زره روپۍ اخستلې وې او زید ته ئې د مطالبې باوجود هیڅ ورنکړل، اوس بکر وائی چې ما په دکان کې محنت کړې دې لهذا ماته د دې عوض ملاویدل پکار دی، د فیصلې دپاره دوه علماء کرام ثالث مقرر کړې شو هغوی حساب کتاب کولو سره آخر دا فیصله واوروله چې دکان دې زید سره وی او بکر ته دې د محنت په عوض کې پنځه څلویښت زره روپۍ ورکړې شی کومې چې ئې مخکې اخستلې دی، دغه شان زید (رب المال) اتۀ پنځوس زره روپۍ نقصان برداشت کړو، اوس سوال دا دې چې دا فیصله شرعا صحیح ده یا نه ده؟ د مذکوره فیصلې د شرعی نه کیدو په صورت کې شرعی فیصله هم ولیکئ؟ **جزاکم الله خیرا**

**المستفتی: ډاکټر اسماعیل میمن مدینه منوره ..... ٢٦ مئی ١٩٨٧ء**

**الجواب:** که زید په شهادت شرعیه سره دا ثابته کړی چې بکر خیانت او غلا کړې ده نو د هغه خیانت عهده په بکر باندې راځی (١) او د هغې نه پس کله

---

(١) في الهندية : فان صحت الدعوي سأل المدعي عليه عنها فان اقر او انكر فبرهن المدعي قضي عليه. (فتاويٰ هندية ١٣ : ٤ الباب الثالث في اليمين)

وقال العلامة الكاساني : فاذا خالف شرط رب المال صاربمنزلة الغاصب ويصير المال مضمونا عليه.

(بدائع الصنائع ١٢٠:٥ كتاب المضاربة، فصل في بيان حكم المضاربة)

چې ټول سامان (کېږي) خرڅې شي نو اصل رقم دې زید (رب المال) ته ورکړې شي او زیادت دې په اصل رقم باندې (مثلا په دوه لاکهو باندې) مساوي تقسیم کړې شي. (۱) او کوم رقم چې بکر د اخراجاتو دپاره اخستلې دې هغه دې د بکر د حصې د کټې نه کټ کړې شي. وهوالموفق

## د مضارب نفقه او په هغه باندې د مال مضاربت د تاوان حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید بکر ته لس زره روپئ ورکړې او وې ویل چې پنځه زره روپئ قرضه ده او پنځه زره روپئ زمونږ دپاره په طور د مضاربت استعمال کړه، که ټول رقم هلاک شي نو تاسو به د پنځه زره روپو ضامن یئ او تاسو ته د دې رقم نه د خوراک اجازت دې، د دې مضاربت څه حکم دې؟ بینواتوجروا

**المستفتي:** گل محمد بلوچستانی متعلم حقانیه ....۲۱ جولائی ۶۸ء

**الجواب:** دا سړې د قرض مال ضامن دې. (۲) نه د مال مضاربت (۳) او که دا

---

(۱) قال العلامة ظفر احمد العثماني: وفي العالمگيرية: سئل ابو بکر عن شريکين جن احدهما وعمل الآخر بالمال حتي ربح او وضع قال الشرکة بينهما قائمة الي ان يتم اطباق الجنون عليه فاذا قضي ذلک ينفسخ الشرکة بينهما فاذا عمل بالمال بعد ذلک فالربح کله للعامل والوضيعة عليه وهو کالغصب بمال المجنون فيطيب له من الربح حصة ماله ولا يطيب له من مال المجنون فيتصدق به قال الشامي وفي القهستاني وله ان يؤديه الي المالک ويحل له التناول لزوال الخبث (۵:۱۸۴) اود مضاربت دپاره هم دا حکم دې چې که ټوله مقرر نفع دده ملك دې ليکن کوم شريك چې دده سره د مضاربت عقد کړې دې دهغه د حصې موافق حلاله ده. او زياتي حلاله نه ده، بلکه نورو شريکانو ته دې ورکړې يا دې فقيرانو ته ورکړي. وهذا هو مقتضي القواعد ولم اره صريحا.
(امداد الاحکام ۳:۳۲۰ کتاب الشرکة والمضاربة)

(۲) وفي شرح المجلة: هو عقد مخصوص يرد علي دفع مال مثلي لرد مثله".
(شرح المجلة ۲:۴۳۷ کتاب البيوع، احکام القرض)

(۳) وفي الهداية: ثم المدفوع إلي المضارب امانة في يده لأنه قبضه بأ مر مالکه لا علي وجه البدل والو ثيقة.

...بقيه برصفحه آئنده...

سرې تجارت په خپل ښهر کې کوی نو د هغه ګټه په خپل مال کې ده نه په مال د مضاربت کښ (شامی) (١) والله اعلم

## د مهتمم د زکوة مال په مضاربت ورکول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د زکاة د مال فنډ کوم چې د مدرسې دپاره جمع کړې شوې دې که په هغې کې په طور د مضاربت په مشوره د متولی او اراکین مدرسه د مدرسې دپاره تجارت وکړې شی نو جائز دې یا نه دې؟ جواب راکولو سره مهربانی وکړئ؟

بینواتوجروا

المستفتی: سید جلال الدین، مهتمم مدرسه زرګری ضلع هنګو ...٢١ جنوری ١٩٦٩ء

**الجواب:** چونکې په مضاربت صحیحه کې د اصل مال کل یا بعض د هلاکت خطره موجود ده، پس د مالکانو د ښکاره اجازت نه بغیر د زکاة مال په مضاربت باندې ورکول خیانت دې (٢) فقط.....وهوالموفق

...

---

...بقیه ازحاشیه گذشته]

(الهداية : ٣:٢٥٧ كتاب المضاربة)

١ ﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالي" (وإن عمل في المصر) سواء و لدفيه أو اتخذه داراً (فنفقته في ماله) كدوائه علي الظاهر".

(الدرالمختار ٤:٥٤٦ كتاب المضاربة، فصل في المتفرقات)

٢ ﴾ وفي شرح المجلة : لا يجوز لأحد أن يتصرف في ملك غيره بلا إذنه أووكالة منه أوولاية عليه و إن فعل كان ضامنا".

(شرح المجلة لسيلم رستم باز رحمه الله تعالي، ٦١ المادة ٩٦)

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف بہ

# فتاویٰ فریدیہ

# کتاب الشرکة

قال اللہ تبارک وتعالیٰ:

فَاِنْ کَانُوْٓا اَکْثَرَ مِنْ ذٰلِکَ
فَهُمْ شُرَکَآءُ فِی الثُّلُثِ
(سورۃ النسآء)

.........

# كتاب الشّركة

## په مشترکه مال سره د یو ورور په حاصل کړې ګټه کې د شرکت حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې مونږ څلور ورونه یو، زمونږ والد محترم په ۷۷ء کې وفات شوې دې، د هغوی د چائې کاروبار وو او دوه ورونه صاحبان د ملک نه بهر دی (یو ډاکټر او بل انجینئر)، زمونږ د والد صاحب نه په میراث کې پنځه دیرش زره روپۍ پاتې شوې وې، د پلار د وفات نه پس مشر ورور هغه کاروبار اوچلولو، هم په هغه پیسو باندې ئې کاروبار شروع کړې وو او سرمایه ئې ډیره مخکې کړه، هغه وخت ما په سکول کې سبق ویلو کله کله به دکان ته راتلم، بیا د میټرک نه پس زه په ۱۹۸۳ء کې دکان ته مسلسل راتلم، په ۱۹۹۷ء کې مې ورور وویل چې زه کاروبار بیلول غواړم او وې ویل چې تاته به د دې مال نه نۀ بلکې د والد صاحب د میراث د پنځه دیرشو زرو روپو نه نیمې درکوم، مشران ورونه وائی چې مونږ خپله حصه تاسو ته پریښودلې ده، ځکه چې مونږ په دې کاروبار سره تعلیم حاصل کړې دې، اوس سوال دا دې چې د دې ورونو دا حصه څنګه وه؟ او زما حصه به آیا صرف د والد صاحب په میراث کې وی او که په ټوله ګټه کښې؟

ما پرائیویټ وکالت (L-B-B) هم کړې دې، زمونږ یو کتاب دې 'اسلامک لاء' په هغې کې شرعی فیصلې لیکلې شوې دی، په هغې کې لیکلې شوې دی چې که دپلار پریښودلې شوې کاروبار هغه وخت تقسیم نه کړې شی او هم په هغه مال باندې کاروبارشروع کړې شی نودهغې په ګټه کې به ټول وارثان شریک وی اوچلونکی به صرف امین وی، ددې لږ وضاحت وکړئ؟ بینواتوجروا

**المستفتی:** ارشد میاں مردان...... ۵ شوال المکرم ۱۴۱۰هـ

**الجواب:** دا د اسلامک لاء والا مسئله مجمل ده مفصل مسئله دا ده چې که وارث دا تصرف او تجارت د نورو وارثانو د اجازت نه بغیر کړې وی نو دا گټه به صرف د هغه وارث وی، لکه چې تاوان به هم صرف په هغه باندې وی، او که دې وارث د شرکت او وکالت په طور (یعنی د هغوی په اجازت باندې) دا تصرف کړې وی نو گټه او تاوان به په ټولو باندې عائد کیږی، **وهو مجزم** علی التقدیر الاول دون الثانی (شرح المجلة ۶۱۰ المادة : ۱۰۹۰ (۱)) **والله اعلم**

## د ورور په ځمکه باندې بغیر د اجازت نه د کور جوړولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې درې ورونو خپل مینځ کې د ځمکې یوه حصه تقسیم کړه، د ورور په عدم موجودگئ کې وړوکی ورور دهغه په حصه دارئ کې کور جوړ کړو، مشر ورور په راتلو باندې وړوکی ورور ته خبرداری ورکړو چې تا زما په حصه کې کور ولې تعمیر کړو؟ د کور د تعمیر نه لس کاله پس وړوکی ورور په بل ځای کې په خپله حصه کې کور جوړ کړو د زوړ کور څه حصه ئې ورانه کړه او څه حصه ئې باقی ده، مشر ورور وویل چې زما د حصې نه باقی کور هم وران کړه خو هغه نه منی. آیا مشر ورور په حقه دې یا نه؟ شرعی فیصله څه ده؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** سید عمر شاه... کوهاټ.....۲۹ جولائی ۱۹۸۶ء

**الجواب:** که دې کشر ورور د مشر ورور د اجازت نه بغیر د هغه په حصه کې کور جوړ کړې وی نو په دې کشر ورور باندې ضروری ده چې د هغه مشر

---

(۱) وفي شرح المجلّة :اذا أخذ أحد الورثة مبلغًا من الدراهم من التركة قبل القسمة بدون اذن الآخرين وعمل فيه وخسر تكون الخسارة عائدة اليه، كما أنه اذا ربح لايسوغ لبقية الورثة طلب حصّة منه.

(شرح المجلّة ۳۰، ۲۹: ۴ :المادة ۱۰۹۰ "الفصل الثاني في بيان كيفية التصرّف الخ")

وروز حصه خالی کړی (شرح المجلة) (۱) وهوالموفق.

## د يو ورور په مال کې تجارت کولو سره د حاصلې کړې شوې ګټې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید او عمر دواړه اعیانی ورونه دی، په يو کور کې اوسيدل، شریکه ئې خوړله څښله، بغير د حساب کتاب نه دواړو جائيداد اخستلو سره بعض ستهام په دواړو نومونو باندې، بعض په رجسټرو باندې اخستلو، دواړه بال بچه دار شو، دواړه د جائيداد د تقسيمولو نه بغير جدا شو، درې څلور کاله پس کشر ورور عمر ستهامونه او رجسټرئ کومې چې هغه سره د امانت په طور موجود وې پټولو سره بعض جائيداد په پټه خپل نوم باندې منتقل کړو، او مشر ورور ته ئې ووېل چې په دې جائيداد کې د خوراک څکاک نه علاوه ستا هيڅ حق نشته، او نه خو زما مزدور وې، او حال دا وو چې مشر ورور ئې د پنځه شپږ سوه روپو مالک وو او کشر ورور سره هيڅ پيسې نه وې او هر څه مشر ورور کړې وو او کشر ورور د نقصان او خسارې نه علاوه د هيڅ هم نه وو، مهرباني وکړئ او بيان کړئ چې دهغه متعلق په شرع محمدی ﷺ کې څه حکم دې؟ بينواتوجروا

المستفتی: مولوی رحمان الدين مردان.... ۲۸جون ۱۹۷۲ء

**الجواب:** په صورت مسئوله کې که دې ورونو د خپل پلار په جائيداد کې تصرف کړې وی يا د عديم المال کيدو د وجې نه دواړو مزدوری کړې وی نو

---

(۱) وفي شرح المجلّة: دارمشتركة بين قوم... ليس له أن يحفر فيهابئراًأويبني فيهابناء بغيراذن شريكه وان حفرأوبني ضمن النقصان ويومربرفع البناء. (شرح المجلّة ۱۶: ۴: المادة ۱۰۷۵)

د هغوی په اخستلې شوې جائيداد کې به يو شان حصه وي.

يدل عليه مافي ردّالمحتار ۳:۴۸۳ ''فصل في الشركة الفاسدة'' يوخذ من هذاما أفتى به في الخيرية في زوج امرأة وابنها اجتمعافي داروا حدة وأخذ كلّ منهما يكتسب على حدة ويجمعان كسبهما ولايعلم التفاوت ولا التساوي ولاالتميز فأجاب بأنّه بينهما سوية وكذلك لواجتمع إخوة يعملون في تركة أبيهم ونما المال فهوبينهم سوية ولواختلفوافي العمل والرأي (۱).

او که دا خبره ثابته شي چې مال صرف د زيد وو او په دې کې به دواړو تجارت کولو نو ګټه به د زيد وي او عمر ته به باقاعده اجرت ورکولې شي،

(لمافي ردّالمحتار ۳:۴۸۳)قوله والربح الخ حاصله أنّ الشركة الفاسدة امّابدون مال أوبه من الجانبين أومن أحدهما فحكم الأولى أنّ الربح فيهاللعامل والثانية بقدرالمال والثالثة لربّ المال وللآخر أجرمثله (۲)

بحذف يسير. وهوالموفق

## په مشترک ګټې سره د يو ورور د خپل ځان دپاره ځمکه اخستل

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې پنځه وروڼه د خپل پلار په موجودګئ کې او د وفات نه پس تر اوسه پورې په روزګار باندې مشترک راروان دي، اوس د څه وجې نه بيليدل غواړي چې ټول وروڼه خپله ګټه مشترک طور خرچ کوي، مثلاً وادهٔ ښادي، تعليمي اخراجات وغيره او د ځمکې اخستل هم په مشترکه ګټه باندې کيږي او ټول وروڼه پکې برابر شريک دي، اوس يو رور، کوم چې د ټولو نه مشر دې او د کور په ټولو کارونو (اخستل او خرڅول هم د هغوی په لاس باندې کيږي) د ځمکې يوه حصه د حکومت نه په قسطونو باندې اخستلې ده په دې کې نورو وروڼو

---

۱) (ردّالمحتار ۳:۳۸۳ ''کتاب الشرکة،فصل في الشرکة الفاسدة'')

۲) (ردّالمحتار ۳:۳۸۳ ''فصل في الشرکة الفاسدة :مطلب يرجّح القياس'')

لره په دې وجه نه شریکوی چې ذکر شوې د ځمکې حصه ماته د سابقه فوجي کیدو په حیثیت سره ملاؤ شوې ده او زه خاندله د دې مالک یم، حال دا چې د ځمکې د دې حصې د اخستلو په خرچه کې د مخکې په شان هر څلور واړه ورونه شریک دی، اوس د پوښتنې خبره دا ده چې:

۱: آیا په دې صورت کې د ځمکې په ذکر شوې حصه کې تول ورونه برابر حصه دار دی یا نه؟

۲: آیا د شریعت په رڼا کې دا د هم هغه یو ورور ملکیت دی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتي: سردار، گوهر رحمن هزاره**

**الجواب:** که مشر ورور دا ثابته کړی چې ما دا حصه د ځمکې صرف د خپل ملکیت په ارادې سره اخستلې ده نو په هغه باندې دا ضروری ده چې چونکې د دې حصې قیمت د مشترکه مال نه ورکړې شوې دی نو نورو ورونو ته دې خپله خپله حصه قیمت واپس کړی(۱) او که مشر ورور دا ثابته نه کړې شی نو دا حصه به هم مشترک شمارکولې شی فی الدرالمختار: القول لمنکرالشرکة، وفی ردّالمحتار ۳: ۴۸۷ اذاکان المال فی یده فادّعی علیه آخرأنّه شارکه مفاوضة فالقول للجاحد مع یمینه وعلی المدّعی البینة الخ(۲). فقط

## د پلار او ځوی په مشترکه ګټه کې د پلار د وفات نه پس د نورو ورونو د شریکیدلو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې وفات

---

۱) قال العلّامة سلیم رستم بازرحمه الله تعالي: وماشتراه أحدهم لنفسه یکون له ویضمن حصّة شرکائه من ثمنه اذادفعه من المال المشترک.

(شرح المجلّة ۷۲۵: المادة ۱۳۶۱ "الفصل الخامس في شرکة المفاوضة")

۲) (الدّرالمختارمع ردّالمحتارص ۳۸۶، ج ۳ "کتاب الشرکة، فصل في الشرکة الفاسدة")

شو او د هغه میراث نقدې پیسې دی او هم دغه شان غوا، میخه او فصل یعنی غنم او بهس وغیره. او دا پورته ذکر شوې څیزونه د هغه ځمکې پیداوار دی او هغه وخت کې مړی او د هغه خوی شکور دواړو مشترک کار کولو. دا پورته ذکر شوې څیزونو پرېښودلو سره پلار وفات شو او د مړی بل خوئې دوست محمد (کوم چې د هغوی نه بیل وو) په دې ذکر شوې څیزونو کې د حصې اخستلو دعوی وکړه، آیا هغه د دعوی مستحق دې یا نه دې؟ او شکور د خپل پلار سره په ګډه باندې ځمکه اخستلې ده او د څو کورونو دپاره ئې ځمکه اخستلې ده شکور په هغې باندې قبضه کړې ده آیا په دې کې د بل خوی حصه شته یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم

**الجواب** : که شکور کار د خپل پلار سره د معاونت په طور کړې وی نو په دې غوا، میخه او نقد وغیره کې دوست محمد د مساوی حصې حقدار دې.
او که شکور د حصې او شرکت په طور کړې وی نو د ربع دوست محمد حقدار دې، (یدلّ علیه ما فی ردّالمحتار ۳:۴۸۳) الأب وابنه یکتسبان فی صنعة واحدة لم یکن لهما شئ فالکسب کلّه للأب ان کان الابن فی عیاله لکونه معینًا له([1]). وهوالموفق

## د مروجه کورنی شرکت په صورت کې د ګټلې شوی مال حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې دوه وروڼه یوځای اوسیږی او په دې حالت کې د هغوی هر یو څیز مشترک دې، یو ورور ئې انګلینډ ته تلو سره ګټه وکړه او بل ورور ئې د زمینداری کار شروع کړو هغه خپله هم اوخوړله او د بل ورور په اهل وعیال باندې ئې هم اوخوړله. اوس د انګلینډ والا ورور کور اخستلې دې، د بل ورور ئې په هغې

---

[1] (ردّالمحتار ۳:۲۸۳ ''کتاب الشرکة ،فصل في الشرکة الفاسدة'')

کې حصه نه ده ساتلې نو شرعي حکم د دې په باره کې څه دې چې کوم وروړ
ئې په کور کې وو د هغه حصه به د بل وروړ سره وی او که نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولانا محمد شفیع صاحب غور غشتوی اټک ... ٤ ذوالحجة ١٤٠٣ھ

**الجواب:** دا معامله د شرکت فاسده ده، په دې کې په دواړو ورونو باندې د تقسیم طریقه دا ده چې که د دواړو ګټه مجهول التفاوت والتساوی او غیر متمیز وی نو په دواړو باندې به مساوی طور سره دا ټول مالونه تقسیم کولې شی. او که د هغوی دواړو ګټه متمیز وی د یو ګټه غله او ترکاری وغیره وی او د بل ګټه روپئ وغیره وی نو په هغوی باندې مساوی طور سره تقسیم کول صرف رواجی امر دې کما یشیر الیه فی ردالمحتار ۳: ۴۸۳ یوخذ من هٰذا ما أفتی به فی الخیریة فی زوج امرأة وابنها اجتمعا فی دار واحدة وأخذ کلّ منهما یکتسب علی حدة ویجمعان کسبهما ولا یعلم التفاوت ولا التساوی ولا التمیز فأجاب بأنه بینهما سویة(۱) فافهم. وهو الموفق

## په مشترکه ځمکه کې د لګولې شوو اونو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې مثلاً زید مړ شو، د هغه څلور ځامن پاتې شو اوس یو ځوی په مشترکه ځمکه کې باغ ولګولو څو کاله پس کله چې باغ میوه ورکول شروع کړل نو د زید باقی درې واړو ځامنو وویل چې په دې کې زمونږ هم حق دې ځکه چې ځمکه مشترک ده او چا چې باغ لګولې دې هغه انکار کوی، نو آیا د زید باقی درې واړه ځامن د هغه سره هم په دې باغ کې شریکیدلې شی یا نه، او هغه ته دا حق حاصل دې چې هغوی د باغ نه اوباسی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولوی عبدالحمید خانقاه پنساله ضلع ډیره اسماعیل خان ۱۵ ذی الحجة ۱۳۸۹ھ

---

(۱) (ردّالمحتار ۳: ۳۸۳ ''کتاب الشرکة، فصل في الشرکة الفاسدة'')

**الجواب:** کومې ونې چې خپله راختلې وی هغه د ځمکې تابع دی او د ځمکې د مالک مملوک وی، لما فی رد المحتار ۱۱۰/٤ (الشجر له ساق فلا تدخل فيه حتی يجوز بيعها اذا نبتت فی ارضه لکونها ملکه انتهی (۱) خو کومې ونې ئې چې لګولې دی نو هغه به د نال کونکی مملوک وی، که په اجازت سره لګولې وی او که بغير د اجازت نه وی. خو کومې ونې چې په اجازت سره لګولې وی نو د تقسيم نه پس چې کومې ونې د غير غارس په حصه کې راشی د هغې راويستل او په قيمت باندې اخستل د هغه په مرضی باندې موقوف دی. يدل عليه مافی الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۵:۲۳۳ بنی أحدهما أی أحدالشريکين بغيراذن الآخر (وقال العلامة ابن عابدين: وکذالوباذنه لنفسه لأنه مستعيرلحصة الآخر) فی عقارمشترک بينهما فطلب شريکه رفع بناءه قسم العقارفان وقع البناء فی نصيب البانی فبها ونعمت والاهدم البناء وقال الشامی أوأرضاه بدفع قيمته وحکم الغرس کذلك فقط (۲). وهوالموفق

## د غرونو، ځنګلونو ملکيت او د هغې په منافع کې د شرکت حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په يوه علاقه (کوهستان) کې تقريبا د درې څلورو کالو نه درې ډلې اوسيږی، يوې ډلې غير آباد (شاړه) ځمکه آباده کړې ده، بلې ډلې غير آباد علاقه د فريق اول نه قيمتا اخستلو سره آباده کړه او دريم فريق د جائيداد وغيره سره هيڅ تعلق او نه لرلو بلکې څاروی ساتلو يا تجارت کولو سره ئې ژوند تير کړو. د فريق اول د آبادې کړې ځمکې نه علاوه غرونه او ځنګلې دی (يعنی تقريبا ۳۰، ۴۰ ميله پورې غير آباد غرونو کې قدرتی ځنګلې دی) په پخوا زمانه کې د هغې دومره اهميت نه وو چې د هغې نه نفع وغيره حاصل کړې شوې وې خو اوس دا غرونه او ځنګلې وغيره کافی قيمتی دی او په هغې باندې د حکومت

---

۱) (ردالمحتار ۴:۱۲۳ "قبيل مطلب صاحب البئر لايملک الماء")

۲) (ردالمحتار مع الدرالمختار ۵:۱۸۸ "کتاب القسمة")

قبضه ده او دهغې نه ددې ځای او سیدونکو خلقو ته یو خاص حصه (رائیلټی کښ) ورکوی. اوس صورت حال دادې چې د حکومت په حصه کې د ورکولو د وجې نه بعض ډلې دملکیت ذاتی دعوی کوی او بعض دشرکة فی الاستحقاق په شریعت کې د دې څه حکم دې چې غیر آباد غرونه او ځنګلې د چا ذاتی ملکیت جوړیدې شی یا نه؟ ټولې ډلې د دې غرونو او ځنګلاتو ملکیة مستحق دی یا بعض ډلې؟ که ملکیة مستحق نه وی نو آیا ټولې ډلې شریک فی المنافع دی یا بعض (یعنی چاته چې ئې حکومت ورکوی)؟ دا غرونه او ځنګلې په مباح الاصل څیزونو کې داخل دی یا نه؟ حدیث مبارک دې: ﴿الناس شرکاء فی ثلاثة اشیاء الماء والنار والکلاء الخ﴾ نو غرونه او خپله راختلې ځنګلات ﴿الکلاء﴾ کې داخل دی یا نه؟ د ﴿الناس﴾ مصداق عوام الناس دی یا خواص؟ په مباح الاصل څیزونو کې د نفع د مستحق کیدو دپاره د جائیداد مالک کیدل شرط دی یا نه؟ د متعدد کتابونو د حوالې نه سره د تعین د صفحې، د مذهب ظاهر الروایة نه جواب راکولو سره د شکریه موقع راکړئ. بینواتوجروا

المستفتی: قوم کوهستان بذریعه فضل الرحمن متعلم دار العلوم سیدو شریف

**الجواب:** اعلم أنّ الکلأ مغایر عن الشجر ذاتاً وحکماً یدلّ علیه مافی ردّالمحتار ۴: ۱۱۰ قال فی البحر ویدخل فیه جمیع أنواع ماترعاه المواشی رطباً کان أویابساً بخلاف الأشجار لأنّ الکلأ مالاساق له والشجر ماله ساق فلاتدخل فیه حتّی یجوز بیعها اذانبتت فی أرضه لکونها ملکه والکمأة کالکلأ انتهی (۱) فعلم منه أنّ الأشجار تابعة للأرض ان کانت مملوکة والّافلا. فلابدّ علینا من تعرف أراضی الجبال اوّلاً لیکون ذریعة الی تعرف حکم الأشجار وثمنها فأقول وبالله التوفیق:

---

(۱) (ردّالمحتار ۴: ۱۲۳ "باب بیع الفاسد")

''الأراضى فى الأصل نوعان: أرض مملوكة وأرض مباحة غير مملوكة، والمملوكة نوعان: عامرة وخراب، والمباحة نوعان أيضًا: نوع هومن مرافق البلدة محتطبًا لهم ومرعًى لمواشيهم ونوع ليس من مرافقها وهوالمسمّى بالموات''(١) (بدائع ٦:١٩٢، ١٩٣) ثمّ قال فى صفحة ١٩٤ ''وأمّا أرض الموات فالكلام فيها فى مواضع فى تفسير أرض الموات وفى بيان مايملك الامام من التصرف فى الموات وفى بيان مايثبت به الملك فى الموات ومايثبت به الحق فيه دون الملك.

أمّا الأوّل فالأرض الموات هى أرض خارج البلد لم تكن ملكًا لأحدٍ ولاحقًّا له خاصًّا فلايكون داخل البلد موات أصلًا وكذا ماكان خارج البلد من مرافقها محتطبًا لأهلها أومرعًى لهم لايكون مواتًا حتّى لايملك الامام أقطاعها لأنّ ماكان من مرافق أهل البلدة فهوحق أهل البلدة كفناء دارهم وفى الأقطاع ابطال حقهم'' انتهى مافى البدائع(٢).

وأرض الجبال غيرمملوكة كمالايخفى(٣)، ولهذا لايجرى فيها التوارث وغيرهٗ فكذلك أشجارها لاتكون مملوكة وكذا ليس فيها حق الملك لأحد لعدم اذن الامام بأحياءها، نعم! فى بعضها حق الانتفاع أى ماقربت منها وأمّا البعيدة فهى موات محض ليست بمملوكة ولافيها حق الملك والانتساب الصرف لايفيد فجاز للحاكم بيع مابعد وجازله التصرف فى الثمن كيف يشاء ولم يجزله بيع ماقرب لأنّ فيها ابطال حق أهلها(٤) فقط. وهوالموفق

---

١ ﴾ (بدائع الصنائع ٥:٢٨١ كتاب الأراضي)

٢ ﴾ (بدائع الصنائع ٥:٢٨٣ كتاب الأراضي)

٣ ﴾ لانها من الموات ولم تحي وان احييت فبغير اذن الامام (مفتي سيف الله حقاني)

٤ ﴾ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالي: اذا أحيا مسلم أو[بقيه بر صفحه آئنده...

## د حکومت د طرف نه ملاؤ شوي مال کې د ورونو حصه غوښتل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې:

۱: د زید، عمر او بکر درې وارو مشترکه جائیداد په هندوستان کې وو او د هغې د کټې نه د زید په نوم باندې یو پلاټ واخستلې شو چې په هغې باندې خرچې کولو سره څه تعمیر وکړې شو او د تعمیر خرچه مشترکه وشوه.

۲: د دې نه پس د عمر او د بکر په نوم باندې دویم پلاټ واخستلې شو، نیم د عمر په نوم او نیم د بکر په نوم، کوم چې د قیمت په لحاظ سره د زید د پلاټ نه پنځلس چنده زیات مالیت باندې واخستلې شو او خلق د هغې نه پس د هندوستان نه پاکستان ته منتقل شو، حکومت پاکستان د هغه متروکه کورونو د معاوضې ورکولو اعلان وکړو، اوس زید په قانونی مهارت سره د خپل پلاټ د قیمت زیاتولو دپاره ناجائزې حربې استعمال کړې چې د هغې د وجې د هغې قیمت څو چنده زیات حاصل کړې شو او د رشوت په وجه زید ته زیاته منافع او معاوضه ملاؤ شوه.

۳: د دې په مقابله کې عمر او بکر د شریعت د پابندئ د وجې نه د خپل پلاټ د اصلی خریدارئ د قیمت تقاضه وکړه، د نور قیمت ناجائز حربې استعمالولو نه ئې د الله پاک د ویرې نه انکار وکړو چې د هغې د وجې نه د هغوی د اصلی اخستلې شوی قیمت منظوری وشوه، اوس د عمر او بکر نه د زید نه د ناجائز حاصل کړې جائیداد حصه غواړی، آیا عمر او بکر د زید نه د هغه ناجائز حاصل کړې شوی جائیداد په حصه کې په نزد د شریعت محمدی د حصه اخستلو حقدار دی یا نه؟ چې د خپل جائیداد د ناجائز قیمت زیاتولو نه ئې په وجه د غیر مشروع کیدو انکار کړې دې. شرعا د دې مسئلې

---

...بقیه ازحاشیه گذشته]

ذمي أرضا غير منتفع بها و ليست بمملوكة لمسلم ولا ذمي و هي بعيدة من القرية ملكها و اعتبر محمد رحمه الله عدم ارتفاق اهل القرية ... و لا يجوز احياء ما قرب من العامر بل يترك مرعي لهم و مطرحا لحصائدهم لتعلق حقهم به فلم يكن مواتا و كذا كان محتطبا.

(الدر المختار : ۶:۳۰۶، ۳۰۸ ''کتاب احياء الموات'')

وضاحت وکړئ. بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عبدالجلیل محله قوی آباد نواب شاه مارکیټ روډ سنده

**الجواب:** د کفارو چې کوم اموال منقوله وغیره منقوله په پاکستان کې پاتې شوې دی، هغه د بیت المال او حکومت حق دې. الله پاک فرمائی:

﴿وَمَا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَىٰ رَسُولِهِ مِنْهُمْ فَمَا أَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ وَلَا رِكَابٍ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يُسَلِّطُ رُسُلَهُ عَلَىٰ مَنْ يَشَاءُ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ (۱) وفی ردّالمحتار ۳: ۳۱۵ ناقلاً عن الهندیة "وما أخذ منهم بلا حرب ولا قهر کالهدیة والصلح فهو لاغنیمة ولافئ وحکمهٔ حکم الفئ لایخمس ویوضع فی بیت المال" (۲) لهٰذا دا مالونه چې کومو خلقو ته د حکومت د طرف نه ملاؤ شوی دی هغوی به مالکان متصور کولې شی که په هندوستان کې د هغوی مالونه وی او که نه وی، که کم وی او که زیات وی، پس د زید سره د باقی ورونو هیڅ حصه نشته. فقط

## په شرکت د خسارې د ضمان اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې خالد د لسو لاکهو روپو سرمایه په کاروبار کښې ولګوله. هغه ته ضرورت راغلو چې پنځه لاکه روپئ ورته نورې ملاؤ شي یا نور څوک سرمایه دار د هغه سره یوځای شی نو هغوی به په منافع کې هم شریک کړې شی، د هغه دوست رشید هغه ته د عبدالحمید ذکر وکړو چې هغه سره یو لاک روپئ بغیر د سود نه پرتې دی او هغه ته ئې اوویل چې تقریباً په کال کې به تاسو ته ۲۰ فیصده منافع ملاؤ شی، عبدالحمید کور ته راغلو چې دا خو سوداګری ده ممکن ده چې تاوان راشی، رشید هغه ته ووېل چې که نفع وشوه نو هغه به ستاسو وی او که نقصان وشو نو هغه به زه د خپل جیب نه ادا کوم د پیسو ورکولو په وخت د عبدالحمید په زړه کې راغلل چې صرف د اصل سرمایه ذمه داری

---

۱) (سورة الحشر، آیت: ۶)

۲) (ردّالمحتار ۳: ۲۵۰ "کتاب الجهاد، باب المغنم والقسمة")

خو معمولي خبره ده ممکن ده چې نفع ورته حاصل شي په دې وجه ئې د رشيد نه بيا تقاضه وکړه چې که ستاسو د قول مطابق ۲۰ فيصده نفع وشوه نو تاسو په طور د ثالث ذمه داري واخلئ او دا وعده وکړئ چې تاسو به د خپل مال نه ماته کم ازکم لس فيصده نفع ضرورراکوئ، نوپه دې وعده باندې يو لاک روپئ د خالد په حواله کړې کومې چې خالد په کاروبار کې ولګولې، عبدالحميد ته يو عالم وويل چې جائز تجارت خو هغه دې چې په هغې کې د نفع سره خساره هم برداشت کړې شي او که داسې ضمانت وی نو هغه سودی منافع ده اوهغه د ضمان الخسران باطل فقهي عبارت پيش کړو. عبدالحميد د بل عالم نه تپوس وکړو چې هرکله د رشيد دې کاروبار سره هيڅ تعلق نشته او هغه لس فيصده ضمانت ورکړې دې نو ديانة په دې کې هيڅ باک نشته دا هغه تاسو سره يو لوظ کړې دې چې دهغې پوره کول د هغه اخلاقي ذمه داري ده که په دې سره نفع ملاؤشي نوهغه به جائزوي آيا په دې سره که عبدالحميد ته لس فيصده ګټه ملاؤ شي نو هغه به په سود کې داخل وي؟ **بينواتوجروا**

**المستفتي**: عبدالرحمن بمعرفت قاري محمد ايوب انور علوي اسلام آباد ۲۶ شعبان المعظم ۱۴۰۳هـ

**الجواب**: د عبدالحميد دا معامله خلاف شرع ده دا عبدالحميد د شرکت خواهشمند نه دې بلکې په قرض باندې د ګټې خواهشمند دې. **والاصل (ان كل قرض جرنفعاًفهوربا)**(۱) او د متعين نفع خواهشمند دې کومه چې د فقهاء کرامو د تصريح مطابق ممنوع ده. (۲) او دا عبدالحميد د رشيد نه د ضمان الخسران" اخستلو عاقد دې او هغه هم ممنوع دې.

**كمافي شرح المجلة. ص۳۴۱: ضمان الخسران باطل فلوقال بايع فلاناًعلى أنّ ماأصابك من الخسران فعلي أواستأجرطاحونة فلان. وماأصابك من الخسران فعلي لم تصحّ الكفالة**(۳). **وهوالموفق**

---

۱) (الدرالمختار ۴: ۱۹۴ ''فصل في القرض، مطلب كلّ قرض جرّنفعاًحرام'')

۲) قال العلّامة الحصكفي رحمه الله: ''وعدم مايقطعهاكشرط دراهم مسمّاة من الربح لأحدهما لأنه قدلايربح غير المسمّي''. (الدرالمختار ۳: ۳۶۹ ''كتاب الشركة'')

۳) (شرح المجلّة لسليم رستم بازرحمه الله ۳۴۱، المادة ۶۳۰ الفصل الثاني في الشرائط الخ)

## په مشترکه ځمکه کې حقدار ته خپله برخه یا دهغې قیمت ورکول

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ یو مشترکه ځمکه وه چې په هغې کې د محمد عثمان ۲۹ حصې وې، د نادر شاه ۲۲ حصې او د حبیبه، زینب او فاطمه ۱۹ حصې وې، ټوله ځمکه دوه اویا (۷۲) حصې وه، د دې حصو مطابق محمکه ریلوې په ۱۹۵۰ء کښې زمونږ مشترکه ځمکه په قبضه کې واخستله، په ۱۹۵۹ء کې مونږ ته رقم په بدل کې پیسې راکړل شوې، چونکې مونږ زنانه وو، زمونږ څوک پلار یا ورور نه وو په دې وجه په ۱۹۷۴ء کښې زمونږ ټوله حصه ریلوې ته منتقل کړې شوه، او په ۱۹۵۴ء کې استیشن جوړ شوې وو، او د پیسو اخستلو هم پنځه کاله تیر شو، اوس په هغې کې یو فریق نادر شاه دا بیان ورکوی چې ستاسو ځمکه ما سره موجود ده او کله چې مو خوښه وی جدا ئې کړئ او دویمه ډله مسمی عثمان د ځمکې د ورکولو نه انکاری دې او په پیسو ورکولو باندې راضی دې حال دا چې مونږ د ځمکې مطالبه کوو، درخواست دې چې تاسو مونږ ته د شریعت په رڼا کې بیان کړئ چې مونږ د ځمکې حقدار یو یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** حبیبه، فاطمه، زینب لونه دا کبر... چارسده.....۲۵ جمادی الاول ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** په صورة مسئوله کې دا زنانه د خپلو حصو حقدارې دی، دا ترونه وغیره به هغوی ته ځمکه یارائج الوقت قیمت باقاعده ورکوی.(۱) وهوالموفق

---

(۱) عن أبي حرّة الرقاشي عن عمّه قال قال رسول الله ﷺ: ألالاتظلموا، ألالايحلّ مال امرئٍ الّابطيب نفس منه. (مشكوة المصابيح ۲۵۵، باب الغصب والعارية)

وقال العلّامة ظفرأحمدالعثماني رحمه الله تعالي "عن يزيدبن سائب قال قال رسول الله ﷺ: لايأخذنّ أحدكم متاع أخيه جاداً ولالاعباً، واذاأخذأحدكم عصاأخيه فليردّها اليه" وأجمع المسلمون علي تحريم الغصب في الجملة، وانّمااختلفوافي فروع منه، اذاثبت هذا فمن غصب شيئالزمه ردّماكان باقيامن غيرخلاف نعلمه لقول النبي ﷺ: "علي اليدماأخذت حتّي تؤديه... فان تلف في يده لزمه بدله.

(اعلاء السنن ۱۶:۳۲۴ "كتاب الغصب: باب ردّعين المغصوب اذاكان قائماً")

## په شاملات کې د نورو شریکانو د اجازت نه بغیر تصرف کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د کلی یو شاملات، کوم چې د درې سوه نه د زیاتو کسانو ترمینځه مشترک دې، د ذکر شوې ځمکې د مالکانو د اجازت نه بغیر په دې باندې مسجد او کوروننه او مدرسه وغیره جوړولو سره قبضه کول یا دهغې په عوض کې یو لوټې رقم ورکول یا پس د استحقاق نه د هغې خرڅول جائز دی یا نه؟ حال دا چې مالکانو اخستونکې بار بار منع کړې هم دې، جواب راکړئ؟ بینواتوجروا

المستفتي: ماسټر همداد ضلع اټک .... ۲۵ شوال ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** که شاملات د املاک غیر تقسیم شده نوم وی نو په دې کې د ټولو شریکانو د اجازت نه بغیر تعمیر او اخستل او خرڅول ناجائز دی.

(الافی مقدارحصّته)،فی شرح المجلّة: کلّ من الشرکاءفی شرکة الملك أجنبی فی حصّة سائرهم فلیس أحدهم وکیلًاعن الآخرولایجوزلهٔ أن یتصرّف فی حصّة شریکه بدون اذنه(۱). وهوالموفق

## د ځامنو پلار ته په ورکړې مال کې د شرکت حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د زید ډیر بچی دی او ټول وروڼه او پلار مشترکه خوراک کوی، په هغې کې دوه وروڼه ملازمت وغیره کولو سره ګټه کوی او باقی وروڼه مختلف قسم کورنې کاروبار کوی. آیا دا ګټه د ټولو ورونو مشترک ده یا صرف د هغوی ده چا چې ګټه کولو سره جمع کړې ده؟ که په ګټه کې ټول وروڼه مشترک وی نو په هغه ورونو کې یو ورور که بیل شی نو آیا والد صاحب هغه د مشترک جائیداد نه محروم کولې شي یا نه؟ ځکه چې دا په ټولو ورونو کې مشترک دې بینواتوجروا

المستفتي: الحاج مولانا محمد حقانی میران شاه، وزیرستان ... ۲ نومبر ۱۹۸۳ء

---

۱) (شرح المجلّة لسلیم رستم باز رحمه الله ۱ /۶۰۱، المادة: ۱۰۷۵)

**الجواب:** ۱: که دا ټول ځامن پلار ته خپله خپله ګټه په طور د تملیک ورکوی نو پلار به د ټولو مالونو، او په هغې سره د اخستلې شوې جائیداد به واحد مالک وی.(۱) او د دې جائیداد نه به یو ځوئې هم بغیر د اجازت شرعی نه نۀ محروم کوی.(۲)

۲: که دې ځامنو دا ګټه په طور د اباحت ورکړې وی نو صرف ګټه کونکی ځامن به په دې کې شریک او حقدار وی نه ټول ځامن. (۳) وهوالموفق

**په شرط ختمیدو باندې هریو ته خپل راس المال او د شرط مطابق نفع ورکول**

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې سرور خان او محمد علی دواړه د دوایئ دکان کې کاروبار کوی، خو لائسنس د سرور خان په نوم باندې دې، سرور خان محمد علی خان ته وویل چې دکان خو زما دې خو زه د دې د کنټرول کولو قابل نه یم تاسو ما سره کار کوئ زه به تاسو ته نیمه حصه درکوم، خو محمد علی ووېل چې ما سره پیسې نشته زه به څنګه شرکت وکړم، سرورخان ووېل چې که تاسو سره پیسې نه وی نو هم زه به تاسو ته نیمه حصه نفع او نقصان درکوم آخر محمد علی ورته څلور زره روپئ ورکړې، سرور خان د څوارلس زرو روپو سرمایه جمع کړه خپل مینځ

---

۱) وفي شرح المجلّة: يملك الموهوب له الموهوب بالقبض.
(شرح المجلّة ٣:٣٨١: المادة ٨٦١ كتاب الهبة، الباب الثالث في بيان أحكام الهبة)

۲) وفي الدّرالمختار: ولووهب في صحّته كل المال للولد جازوأثم.
(الدّرالمختار ٤:٥٧٣ كتاب الهبة)

۳) قال العلّامة ابن نجيم رحمه الله تعالي: (قوله الكسب للعامل وعليه أجرمثل ماللآخر) لوجودالسبب منه وهوالأخذوالاحراز، أفادأنّهمالوأخذاه معاًفهوبينهمانصفان لاستوائهمافي سبب الاستحقاق وانّه لوأخذه أحدهماولم يعمل الآخر شيئاًفهوللعامل ولاشي عليه للآخر.
(البحرالرائق ٥:١٨٤ "فصل في الشركة الفاسدة")

کې شریک شو، نیمه حصه په نفع او نقصان کې دې دواړو درې کالو پورې مشترک تجارت وکړو اوهریو نیمه نیمه حصه نفع اونقصان واخستلو، د دریم کال په ختمیدو باندې د حکومت دطرف نه بهرملک کې د دکان پرمټ (سند) ملاؤ شو، پرمټ د سرورخان په نوم باندې وو، په حقیقت کې دا پرمټ د دکان وو، اوس سرور خان دا پرمټ د پنجاب په دوائی خرڅونکی باندې خرڅوی او وائی چې پرمټ زما په نوم باندې راوتلې دې او محمد علی وائی چې پرمټ د دکان دې ځکه چې درې کاله مونږ په دکان کې شریک وو او سرور خان وویل چې که ته زما نه پرمټ غواړې نو زه به شرکت نه کوم. اوس تاسو ته دا عرض دې چې د دې څه حساب دې؟ تفصیلی جواب ولیکئ. **بینواتوجروا**

**المستفتی: ډاکټر وزیر محمد ضلع ډیره اسماعیل خان**

**الجواب:** ۱: د شرکت کولو په وخت چې څومره مال شریک ورکړې وو دومره مقدار به هر یو واپس اخلی او باقی مال په حقیقت کې ربح او ګټه ده هغه به نیمه نیمه تقسیموی ځکه چې هغوی دا اشتراط کړې وو.(۱) ۲: باقی د پرمټ اخستل او خرڅول ناجائز دی او بیع باطل ده ځکه چې دا استحقاق او حق دې. **فقط(۲) وهوالموفق**

---

(۱) وفي الهندية: وحكم شركة العقد صيرورة المعقود عليه ومايستفادبه مشتركاًبينهما.
(فتاوىٰ هندية ۲: ۳۰۲ كتاب الشركة: الباب الأوّل في أنواع الشركة)

وأيضاًفيها: (وان قلّ رأس مال أحدهماوكثررأس مال الآخرواشترطاالربح بينهماعلي السواء أوعلي التفاضل فانّ الربح بينهماعلي الشرط).
(فتاوىٰ هندية ۲: ۳۲۰ كتاب الشركة الفصل، الثاني في شرط الربح)

(۲) وقال العلّامة الحصكفي رحمه الله تعالي: وفي الأشباه لايجوزالاعتياض عن الحقوق المجرّدة كحق الشفعة.
(الدرالمختار ۴: ۱۵ مطلب لايجوزالاعتياض عن الحقوق المجرّدة)

## د یو شریک ځامنو ته په کاروبار کې د کار کولو اجر مثل ورکول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې دوه ورونه دی د هغوی سرمایه یوځائ او برابر وه او کاروبار ئې هم یوځای وکړو. اوس د څو کالو نه د یو ورور هلکان هم په کاروبار کولو کې شریک دی چې ځوانان دی او ښه محنت کوی، اوس چې د کوم ورور ځامن دی هغه وائی چې هغه هلکانو ته دې باقاعده حصه ورکړې شی او په املاک کې به شریک وی، بل ورور وائی چې نه؛ دې هلکانو ته خو به صرف د محنت معاوضه ورکولې شی ځکه چې دا د مال مالکان نه دی، اوس شریعت د هغوی متعلق څه فیصله کوی؟ **بینوا توجروا**

**الجواب:** که طرفین مصالحت ونکړې شی نو دې ځامنو ته به اجر مثل ورکولې شی.(۱) او د دې نه زائد مقدار رقم نه جانب مخالف خپله حصه پټه وصولولې شی. **وهوالموفق**

## چه د مشترکې ځمکې نه خپله حصه خرڅه کړی نو په ثمن کې نور ورونه شریک نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د مسمی حسن متروکه ځمکه یولس کناله وه، په دې کې پنځه ورونه او درې خوئیندې شریکې دی. مشر ورور حاجی رمضان خپلو نورو ورونو ته وویل چې دا ځمکه به مونږ په اشتمال کې بل ځای ته منتقل کړو ځکه چې موجوده ځای فائده مند نه دې، د منتقل کولو نه نورو ورونو انکار وکړو چې مونږ د منتقل کولو نه عاجز یو. پس احمد رمضان وویل چې زه او یو بل ورور خپله

---

(۱) قال العلّامة ابن عابدین رحمه الله تعالي "(قوله والربح)حاصله أنّ الشركة الفاسدة امّابدونِ مال أوبه من الجانبين أومن أحدهمافحكم الأولي أنّ الربح فيهاللعامل والثانية بقدرالمال والثالثة لربّ المال وللآخر أجر مثله". بحذف يسير.
(ردّالمحتار ۳:۳۸۳ مطلب يرجّح القياس :فصلٌ في الشركة الفاسدة)

حصه منتقل کوو، هغه ورونو خپله حصه یولس کناله بل خای ته منتقل کړه، دي دوارو خپله ځمکه خرڅه کړه، اوس ذا باقي ورونه وائي چې مونږ هم په دي روپو کې شریک یو حال دا چې هغوی په منتقل کولو باندې هیڅ خرچه هم نه ده کړې. بینواتوجروا

المستفتي: عبدالرحمن کندیان ضلع میانوالی ۱۰ رمضان ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** په شرط د صدق او ثبوت د دې پیسو صرف دوه ورونه مستحق دی، په دې کې د نورو ورونو هیڅ حصه نشته، ﴿لان الانتقال بیع فی الحقیقة﴾ (۱) وهوالموفق

## د مشترکه دیوال د جوړولو د اخراجاتو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د مشترکه دیوال تاوان به په چا باندې وی؟ بینواتوجروا

المستفتي: حاجی زئی شبقدر فورټ چارسده

**الجواب:** د قواعدو په رڼا کې په مشترکه دیوال باندې به مشترک تاوان کولې شی. (۲) وهوالموفق

---

۱ ﴿ وقال العلّامة ابن عابدین رحمه الله تعالي "(قوله وحکمه ثبوت الملک) أي في البدلین لکل منهما في بدل وهذاحکمه الأصلي.
(ردّالمحتار ۶: ۴ "کتاب البیوع ،مطلب شرائط البیع أنواع أربعة")

۲ ﴿ قال العلّامة ابن عابدین رحمه الله :وفي جامع الفصولین :حائط بینهماوخیف سقوطه فأراد أحدهمانقضه وأبي الآخر یجبر علي نقضه ولو هدما حائطا بینهما فابي احدهما عن بنائه یجبر ولو انهدم لا یجبر ولکنه یبني الآخر فیمنعه حتي یأخذ نصف ما انفق لو انفق بامر القاضي ونصف قیمة البناء لوأنفق بلاأمر القاضي.
(ردّالمحتار ۳: ۳۸۸ "کتاب الشرکة .مطلب مهم فیمااذاامتنع الشریک الخ")

وفي شرح المجلّة :"ومن فروع هذه القاعدة ما ... بقیه بر صفحه آئنده...

## د لفظ شرکت د استعمال په صورت کې

## ګټه نه کونکې ورور په مال کې شریکول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې دوه سکه وروڼه د ماشوموالی نه خپل مینځ کې مشترک راروان دی، او د هغوی دوه نور سکه وروڼه وو خو هغوی دواړه د هغوی نه او خپله هم د یو بل نه جدا شوې وو، اوس پاتې شوه د دې دواړو مسئله هغه داسې ده چې ټول دولت صرف یو کس ګټلې وو، او د بل کار صرف د کور کار خیال ساتل وو، ځکه چې ګټه کونکې یو تعلیم یافته سرکاری ټیکیدار وو او بل بې تعلیمه وو چې د کور د خیال ساتلو نه علاوه ئې بل هیڅ کار نه شوکولې په دې وجه د بهر نه ئې د دولت په ګټلو کې څه حصه نه شوه اخستلې، اوس دواړه وفات شوې دی او د دې دواړو اولاد بیلتون غواړی، د کلی ټول خلق او علاقې والا د هغوی دواړو د شرکت شهادت ورکوی، خو د هغې سره دا ګواهی هم ورکوی چې ټول دولت دې ذکر شوی تعلیم یافته ورور ګټلې وو، اوس د دې دواړو وروڼو د اولاد ترمینځه څنګه د شریعت مطابق بیلتون وکړې شی؟ ځکه چې د تعلیم یافته ورور اولاد د تړۀ ځامنو ته وائی چې زمونږ د پلار دا هم احسان وو چې خپله ئې اوګټله او ستاسو په پلار ئې اوخوړله، په مونږ باندې ستاسو هیڅ حق نشته چې مونږ ئې تاسو له درکړو، او نور وائی چې بیشکه ګټه خو کړې ده ستاسو پلار، خو د مشترک اوسیدو د وجې نه زمونږ حق ضرور شته په دې وجه تاسو مونږ سره شرعی فیصله وکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی حبیب الله ډیره اسماعیل خان ۱۳ فروری ۱۹۷۵م

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] لواحتاج الملک المشترک الي العمارة فطلب أحدالشریکین عمارته وأبي الآخرفانّه یجبرعلیه بل اذاکان الملک المشترک قابلًاللقسمة یقسم...وان لم یکن قابلًاللقسمة یأذن الحاکم لطالب العمارة بالتعمیرویحبس العین الي أن یستوفي من شریکه قدرما أصاب حصتّه من النفقة.

(شرح المجلّة لسلیم رستم باز ۲۹ :المادة۱۹ :القاعدة لاضررولاضرار)

**الجواب:** دا شرکت یو رسمی شرکت دې شرعی شرکت نه دې.

لعدم العقد ولعدم الشركة في السعي أو البذر إلا إذا ثبت أن الأخ الملازم العامل قال لأخيه أشركتك فيما اكتسبته لأن لفظ الشركة يفيد التمليك في البعض. (كما في ردّ المحتار ۲: ۳۶۸(۱)). وهو الموفق

## د پلار د خوی په ګټه باندې د هغه د پاره اخستلې شوې ځمکه کې د بل ورور عدم شرکت

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې ډیر قرضدارې وو، او بل څه انتظام د هغه سره نه وو، د هغې نه پس د هغه یو ځوئې بهر ملک ته لاړو، مزدوری کولو سره هغه قرضه ختم کړه او ورسره ئې ډیرې پیسې هم اوګټلې نو پلار د هغه نه خوشحالیدو سره ددې ځوی په زیاته ګټه باندې ځمکه واخستله او په کاغذاتو کې ئې هم د هغه ځوی نوم ولیکلو او ورسره ئې دا هم وویل چې تا محنت ډیر وکړو په دې وجه دا باقی ګټه ستا دپاره مخصوص ده او د پلار په ژوند باندې ئې دا ځوئې کور ته راغلو او ټول اختیارات ئې هغه ته ورکړل او د دې ذکر شوی سړی دوه ځامن نور دی، په هغوی کې کشر ځوی سفر کولو سره ډیرې پیسې اوګټلې چونکې صاحب اختیار مشر ځوئې وو او پلار ئې یو اړخ ته شوې وو نو مشر ورور چې د کشر ورور په ګټه باندې کومه ځمکه اخستلې ده یا ئې ګانه کړې ده هغه کاغذونه ئې هم د هغه په نوم باندې لیکلې دی او د پلار د مړ کیدو نه پس هم کاغذونه د هغه وړوکی ورور په نوم باندې شو. اوس پاتې شو مینځنې ورور، چا چې سفر نه وو کړې او په کور باندې ئې پټې وغیره سنبهال کړې دې او بیا ئې څو کاله د حکومت نوکری هم کړې ده او درې واړو ورونو

---

۱) قال العلّامة ابن عابدين رحمه الله تعالي: وفي التتارخانية عن التتمّة: سئل عن والدي عن أحد شريكي عنان اشتري بمافي يده من المال عروضاً ثمّ قال لأجنبي أشركتک في نصيبي ممّا اشتريت قال يصير شريكاً له شركة ملک.
(ردّالمحتار ۳: ۳۸۵ ''فصل في الشركة الفاسدة'')

شراکت باندې ژوند تیر کړې دې، فی الحال تول واده کړی دی او تقسیم کول غواړی. اوس مشر ورور وائی چې د پلار اصلی جائیداد چې کوم دې هغه تقسیم کړئ او کومه ګټه چې ما زیاته کړې ده او په کاغذونو کې زما په نوم ده هغه زما ده ځکه چې پلار په خپل ژوند کې مخصوص کړې ده او کوم چې د وړوکی ورور په نوم باندې په کاغذاتو کې ده هغه د هغه ده ځکه چې د پلار په ژوند کې دهغه په نوم باندې شوې ده او هغه انکار نه دې کړې او کوم ملازمت چې تا کړې دې دهغې په اندازه به تاته هم (یعنی د مینځنی ته) پیسې یا ځمکه ملاویږی خو مینځنې ورور وائی چې نه، دا اصل جائیداد او توله ګټه شریکه ده تول به تقسیمول وی اوس د شریعت مطابق زمونږ ترمینځهٔ فیصله وکړئ؟ بینواتوجروا

المستفتی: مخور بمعرفت ابوالاحسان سوات... یکم اکتوبر ۱۹۷۰ء

**الجواب:** کومه ځمکه چې د مشر ورور په نوم باندې اخستلې شوې ده هغه د مشر ورور ده په هغې کې د چا هم شرکت نشته او دغه شان چې کومه ځمکه د کشر ورور په نوم اخستلې شوې ده هغه د کشر ورور ده یعنی دا په مشترک مال کې نه دی داخل (۱) مینځنی ورور به هغه وخت اعتراض کولې چې پلار مثلا دا ځمکه په خپل نوم یا د درې واړو په نوم باندې اخستلې وې لهذا د مینځنی ورور د دې دواړو سره شرکت نشته. خو د رورولئ د لحاظ د وجې نه د نیک سلوک انجام به وی. **فقط وهوالموفق**

---

(۱) قال العلّامة ابن عابدين رحمه الله تعالي: وماشتراه أحدهم لنفسه يكون له ويضمن حصّة شركائه من ثمنه اذادفعه من المال المشترک وكل ماستدانه أحدهم يطالب به وحده. (ردّالمحتار ۳:۲۷۰ مطلب فيمايقع كثيرفي الفلاحين ممّاصورته شركة الخ)

وقال العلّامة ظفرأحمدالعثماني رحمه الله تعالي: رجل تصرف زماناًفي أرض ورجل آخررأي الأرض والتصرف ولم يدع ومات علي ذلک لم تسمع بعد ذلک دعوي ولده فتترک في يدالمتصرف لأن الحال شاهد اه (۲:۱٦) قلت والشراء علي اسمه تصرف قوي وكذاالادخال والاخراج علي اسمه واداء خراج الحكومة من لوازم البيع باسمه.

(امدادالاحكام ۳:۳۱۸ "كتاب الشركة والمضاربة")

## د داسې شرکت حکم چې په هغې کې قرض د شراکت په شرط ورکړې شوې وی

**سوال:** (۱)زیدازبکرپنج هزارروپیه قرض طلب کردبرائے کدام تجارت، بکر گفت که من پنج هزارروپیه قرض میدهم لاکن برین شرط که من پنج هزاردیگرکنیم وباشما درین تجارت شریک شویم بغیرازشراکت قرض نه دهند،پس زیداین شرط تسلیم کردوکدام معامله که بودشریک شدندپس این جائزاست یانه؟

(۲)پس برین صورت اگرزیدیکصدروپے ازملک خودبرپنج هزار زائد کرد، ونیز ازبکرپنج هزار بایکصد زائدطلب کرد،مجموع هردویاده هزار دوصد یاده هزار یکصد شد. پس برین یکصدروپیه که ازخود زائد کرد، صورت دوم ازاوّل جداشدیانه؟ پس حکم اوّل ودوم متحداست یانه، اگرمتحدنباشدچه حکم دارد؟بینواتوجروا

المستفتی: گل نورتاجر..... ۱۲ ربیع الاول ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** د قواعدو په رڼا کې دا قرض صحیح دې او دا شرکت باطل او غیر لازم دې، لمافی شرح التنویرمع ردّالمحتار۴:۲۲۸ مایصح ولایبطل بالشرط الفاسدأی یصح فی نفسه ویلغوالشرط،القرض والهبة والصدقة(۱).

پس کله چې سره د غیر لازم کیدو زید او بکر دا د عمل لاندې راوستل نو بالضرورة به په دې کې دشرکت ټول احکام جاری کولې شی.(۲) وهوالموفق

---

۱) (الدرّالمختارمع ردّالمحتار ۴:۲۵۴ مایبطل بالشرط الفاسدولایصح تعلیقه به)

۲) قال العلّامة ابن عابدین رحمه الله تعالي :"(قوله والربح)حاصله أنّ الشرکة الفاسدة امّابدون مال أوبه من الجانبین أومن أحدهمافحکم الاولي أنّ الربح فیهاللعامل والثانیة بقدرالمال والثالثة لربّ المال وللآخرأجرمثله" بحذف یسیر.

(ردّالمحتار ۳:۳۸۳ مطلب یرجح القیاس :فصل في الشرکة الفاسدة)

## په شراکت کې شریک د موکل د حضور نه بغیر وکیل جوړیدل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید او بکر دواړو د شرکت معامله وکړه، د زید د تلو په صورت کې خالد د زید د قائم مقام کیدو دعوی کړې ده چې زه د هغه وکیل یم خو بکر د هغه وکالت نه منی بلکې وائی چې اول خپله حاضر شه او وروستو به هغه لره حاضرولو سره ته وکیل ئې خو هغه انکار کوی، آیا په دې صورت کې خالد بغیر د حاضریدلو نه د زید وکیل جوړیدې شی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد شریف.....۲۴ اکتوبر ۱۹۷۸ء

**الجواب:** مناسبه ده چې خالد اول په خپل وکالت باندې ګواه قائم کړی، دویم بکر دا ثابته کړی چې شرکت ختم شوې دې او دا زید زما باقی دار دې [1] وهوالموفق

## د حکومت په طور د شراکت د کور دپاره پیسې ورکولو سره د ګټې سره کرایه په کور کې وصولول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې حکومت پاکستان یو کس ته د کور جوړولو دپاره پیسې په طور د شراکت د کور په کرایه کې ورکوی د دې طریقه دا ده چې مثلاً د کور جوړولو په وخت شپیتهٔ زره روپئ ورکړی او په دې پیسو باندې په کرایه کې د شرکت په بنیاد باندې حکومت په پنځلس کالو کې نفع مقرر کوی، دیرش زره روپئ، میزان نوی زره روپئ. پورته ذکر شوې پیسې په پنځلسو کالو باندې تقسیمولو سره شپږ زره روپئ جوړیږی، شپږ زره روپئ په دولسو میاشتو باندې تقسیم کولو سره د میاشتې پنځه سوه روپئ حکومت د مالک مکان نه په پنځلس

---

[1] قال العلّامة المرغیناني رحمه الله تعالي :وماسوي ذلک من الحقوق یقبل فیهاشهادة رجلین أورجل وامرأتین سواء کان الحق مالاًأوغیرمال مثل النکاح والطلاق والوکالة والوصیة ونحوذلک.

(الهدایة ۳:۱۵۴ کتاب الشهادة)

کاله کې وصولولو سره شراکت ختموي، او کور د کور د مالک شي آیا دا طریقه شرعا جائز ده یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتي:** عبدالستار کوئټه.....ربیع الاول ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** که د دې کور آبادي د اولې ورځ نه د هغه سړي ملکیت شمارلې کیږي نو حکومت ته به دیرش زره روپۍ په طور د کرایه د شرکت په بناء ورکول اخستل حرام وي.(۱) د چا په ملکیت کې په کرایه کې شرکت بې معنې امر دې. او که د دې کور آبادي فی الحال د حکومت ملکیت وي او نتیجة د هغه سړي په ملکیت کې راتلونکې وي نو دې ته قرض ویل بې معنې دي. وهوالموفق

## د فاسد شرکت په صورت کې سابق او لاحق ګټه په رؤس باندې تقسیمول

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زرمت او ګل باس خان دوه ورونه دي، کاروبار او جائیداد د دواړو مشترکه دې، ګل باس خان څو کاله سفر کولو سره ګټه وکړه او زرمت خان په کور باندې اوسیدو سره کاروبار وکړو، اوس د زرمت خان دوه ځامن دي چې سفرونه کوي او ګټه کوي او ګل باس خان د کور کاروبار کوي اوس هغه خانله وي ګل باس خان وائي چې د پیسو تقسیم به په نیمه باندې وي او زرمت خان وائي چې نه زما دواړو ځامنو سفر کړې دې او ګټه ئې کړې ده تقسیم به په افرادو باندې وي. اوس سوال دا دې چې آیا دا تقسیم به په افراد باندې وي او که په نیمه باندې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتي:** قطب الدین تحصیل هنګو ضلع کوهاټ... ۹ جنوري ۱۹۸۶ء

**الجواب:** دا شرکت شرکت فاسده دې، دا نه شرکت املاک دې او نه د شرکت

---

(۱) قال العلّامة ابن عابدین رحمه الله تعالي: ”(قوله کل قرض جرّنفعاً حرام) أي اذاکان مشروطاً“.

(ردّالمحتار ۴:۱۹۴ مطلب کلّ قرض جرّنفعاً حرام)

عقود په څلورو قسمونو کې یو قسم دې، پس د قواعدو په رڼا کې ټول سابق او لاحق ګټه به په رؤوس (افراد) باندې تقسیمولې شي. (١) او د ګل باس خان ګټه دې نیمه کړې شي او د کور ګټه دې هم نیمه کړې شي او د زرمت خان د ځامنو ګټه دې څلور حصې کړی شي نو په دې مصالحت کې د جانبینو خیر او ښیګړه ده. وهوالموفق

## په باز نیولو کې شرکت کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې مثلا ١: پنځه سړی خپل مینځ کې یو بل سره دا عهد کوی چې که په مونږ کې یو کس هم باز اونیولو نو هغه به خرڅولو سره قیمت برابر تقسیموو.

٢: ذکر شوې پنځو کسانو په سابقه طریقه باندې عهد وکړو خو په دې پنځو کې یو په کور باندې په آرام ناست دې صرف د هغوی دپاره د خوراک څکاک ذمه داری ده او باقی څلور واړه شپه او ورځ په باز پسې لګیدلې دی نو آیا په دې کې به ټول شریکان، پنځه په پنځه شریک وی؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم ١٣ اکتوبر ١٩٨٦ء

**الجواب:** دا دواړه اقسام د شرکت شرعیه نه دی، صرف د هغه باز نیونکې بغیر د بل چا د شرکت نه مالک شرعی دې کمافی ردالمحتار ص ٤٦٥،ج ٣:

**قوله فلاتصح فی مباح کاحتطاب واحتشاش واصطیاد وتکدفان الملك فی کل ذلك یختص بمن باشر السبب (٢) وهوالموفق**

---

(١) قال العلّامة ابن عابدین رحمه الله: یؤخذمن هذاماأفتي به في الخیریة في زوج امرأة وابنهااجتمعافي داروا حدة وأخذ کل منهمایکتسب علي حدة ویجمعان کسبهما ولایعلم التفاوت ولاالتساوي ولاالتمیز فأجاب بأنه بینهماسویة.

(ردّالمحتار ٣:٣٨٣ "کتاب الشرکة، فصل في الشرکة الفاسدة")

(٢) (ردّالمحتار ٣:٣٦٩ "کتاب الشرکة: مطلب شرکة العقد")

## بغیر د اجازت نه پخوانئ آبادۍ راغورځولو سره نوې آبادۍ کولو باندې د نورو شریکانو نه خرچ طلب کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یوزیارت ته نزدې یو بنیاد (آبادی) کوم چې د محکې نه جوړ وو د خاندان یو کس د ضعف د وجې نه هغه راوغورځولو او نوې ئې تعمیر کړو، اوس هغه خرچ کړې شوې پیسې د ټول خاندان نه طلب کوی، آیا د خاندان په افرادو باندې د هغې ادا کول لازم دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد حاجی ارت مسجد حافظان شاه منصور صوابی..... ۲۶ ستمبر ۱۹۷۲ء

**الجواب:** این شخص باني نه ماموراست ونه مجبوراست، لهٰذارجوع اوبردیگر شرکاء غیرمشروع است. یدلّ علیه مافی الهندیة: ولیس لهٗ (للشریك) أن یحفرفیها (الدارالمشترکة) بئرًاأویبنی بناء بغیراذن شریکه وان بنی أوحفر ضمن النقصان ویؤمربرفع البناء کذافی الفتاوی العتابیه. (هندیه ۴۰۵:۵) (۱). وهوالموفق

## په پنشن کې د نورو ورونو د شرکت حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په دوه ورونو کې یو ملازم وو او دواړه به یو ځای اوسیدل، مال ئې شریک وو، څه موده پس جدا شو، د حساب کولو نه پس نوکری د ملازم ورور په نوم پاتې شوه، خو دا معلومه نه شوه چې دې دواړو ورونو د نوکرئ حساب کړې وو یا نه.. بیا دوی مړه شو او نوکری د ملازم ورور ځوی په خپل نوم باندې ولیکله، څه موده پس دبل وفات شوی ورور ځوی دعوی وکړه چې د هغه د نوکرئ وظیفه (پنشن) د نیمې حصې زه حقداریم آیا دا شرعاً صحیح کیدې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم متعلم دار العلوم حقانیهٔ..... ٤ مئی ۱۹۹۱ء

---

(۱) (فتاوي عالمگیریة ۵:۳۷۰ "کتاب الکراهیة، الباب التاسع والعشرون في الانتفاع بالأشیاء المشترکة")

**الجواب:** این ملازمت ازقبیل عطاء سلطاني است،درین دیگرشرکاء حصص نه دارند.این محض حق این ملازم است بلا شرکت غیرے.كمافى المبسوط للسرخسی ١١:١٨٩ ولايشارك أحدهماصاحبهٔ فيمايرث من ميراث ولا جائزة يجيزهاالسلطان لهٔأوهبة أوهدية(١).وهوالموفق

## د پلار او څوی په مشترکه تجارت کې به ګټه د چا وی؟

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې که پلار په شریک کور کې په خپلو ځامنو کې خپل یو څوې په خپله سرپرستئ کې په کاروبار باندې ولګوی. په ځانی او مالی هر ممکن امداد سره د هغه امداد او حوصله افزائی کوی. ورسره دا چې د هغه د وادهٔ، میلمه، خپلو خپلوانو خرچه، د کور او دکان داخلی خارجی وغیره ټول اخراجات هم یوائې پلار برداشت کوی، پلار په خپله د نورو بچو په ذریعه برابر هغه سره امداد کوی، په دې یقین باندې چې څوئې حقیقی او کاروبار خپل دې خو دې کاروباری سرمایه ته د شریک کور کار آمد تجارتی امامت ګڼلو سره د کور مصارف وغیره په هیڅ ضرورت کې په هیڅ کار نه راولی. د دې نه علاوه د پلار په سرپرستئ کې په تجارتی نفع سره څوی د پلار دپاره غیر منقوله جائیداد، دکانونه او کورونه واخلی خو د مور پلار د مرضئ خلاف د هغوی نه په پټه هغه جائیداد په خپل نوم باندې کړی او په ټولو دکانونو او تجارتی سرمایه باندې قابض شی. اوس به د پورته بیان د صدق په صورت کې د شریعت په

---

١) (المبسوط للسرخسي ١١:١٨٩ "كتاب الشركة،باب خصومة المفاوضين فيما بينهما")

وقال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالي :والعطاء للذي جعل الامام العطاء له لأنّ الاستحقاق للعطاء باثبات الامام لادخل له لرضاء الغير.

(الأشباه والنظائر ١٢٥،القاعدة الخامسة،تصرف الامام علي الرعية منوط بالمصلحة)

رنا کې د پلار او ځامنو په شریک کور اود اشتراک عمل په حالت کې د داسې ځامنو په تجارتي تصرفاتو سره پیدا شوې نفع او نقصان د چا طرف ته واپس کیږي. خاص کر کله چې سرمایه د پلار وي او د آخري وخته پوري خرچه، خدمت او مشري هم هغه کړې وي؟ بينواتوجروا

المستفتی: عبدالجلیل شبقدر فورټ چارسده... ۵ ستمبر ۱۹۷۲ء

**الجواب:** که څوک ته د پیسو ورکولو په وخت د معاملې تعین شوې وي مثلا قرض، مضاربت، بضاعت، نو په دې مال کې به د هغه عقود احکام نافذ کولې شي او که د معاملې تعین نه وي شوې نو د عرف په بناء باندې به پلار مالک او څوئې معاون وي. فی شرح المجلة ۳۷ : **المعروف عرفاً كالمشروط شرطاً**[1] **فقط وهوالموفق.**

## د يو شريک مشترکه ځمکې لره د خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې دوه ورونو ته په وراثت کې دوه حصې ځمکه ملاؤ شوې ده، د تقسیم نه مخکې یو ورور د بل ورور په عدم موجودګئ کې د هغه د اجازت نه بغیر د ځمکې یو حصه خرڅه کړه، آیا د بل ورور په عدم موجودګئ او رضامندئ دځمکې دایوه حصه خرڅول جائزدي؟ بله داچې دخرڅې کړې شوې حصې څه حکم دې؟ بينواتوجروا

المستفتی: سید محمد بلوچستانی کوئټه.... ۲۳ ذوالقعده ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** که دې دواړو ورونو باقاعده تقسیم نه وي کړې او دا دواړه حصې

---

۱) (شرح المجلّة ۱:۱۰۰، المادة ۴۳)
(ومثله في الأشباه والنظائر ۹۹، القاعدة السادسة العادة محكمة)
قال العلّامة الشامي رحمه الله تعالي: الأب وابنه يكتسبان في صنعة واحدة ولم يكن لهماشي فالكسب كله للاب ان كان الابن في عياله لكونه معينًاله.
(ردّالمحتار ۳۸۳:۳ باب الشركة، فصل في الشركة الفاسدة، مطلب اجتمعافي داروا حدة الخ)

په خپل حال مشاع وی نو د دې خرڅونکي ورور بيع به په نصف مشاع کې صحيح وی (١) اوپه باقی نیم مشاع کې صحیح نه ده. لعدم صحة بيع ملك الغيرالابأذنه.(٢) او دويمه حصه به د دواړو ورونو ترمينځه باقاعده مشترک وی. وهوالموفق

## د يتيم په مال سره شرکت کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د يتيم په مال سره غير وارث په شراکت باندې تجارت کولې شی يا نه؟ **بينواتوجروا**

**المستفتی:** حضرت کليم الله شاه صاحب. مسکين پوره شريف ضلع مظفر گړهـ ...١۵مارچ ٧٣ء

**الجواب:** جائز دی(٣) كما في اداب الاوصياء على هامش جامع الفصولين. ٢٣٢/٢ وهوالموفق

---

١) قال العلامة خالد الاتاسي: بيع حصة شائعة معلومة كالنصف والثلث والعشر من عقار مملوک قبل الافراز صحيح لانه لا يشترط في صحة البيع الافراز عند التسليم لا تفاقهم علي صحة بيع مشاع لا يمكن افرازه.
(شرح المجلة ١:١٠٧، المادة:٢١۵،٢١۴ الفصل الثاني فيما لا يجوز بيعه ومالايجوز)

٢) قال العلامة سليم رستم باز: كل واحد من الشركاء في شركة الملک اجنبي في حصة سائرهم... ولا يجوز له ان يتصرف في حصة شريكه بدون اذنه.
(شرح المجلة ۶٠١، المادة: ١٠٧۵ الفصل الثاني في كيفية التصرف في الاعيان الخ)

٣) قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالي "ولا يتجرالوصي في ماله أي اليتيم لنفسه وجاز لواتّجر من مال اليتيم لليتيم. (درمختار)
وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالي ...[بقيه برصفحه آئنده...

....بقیه از حاشیه گذشته]

"وفي الحاوي الزاهدي القاضي يأمر لوصي بالإتجار والشركة في مال اليتيم دون المعاملة لأجل الربح.

(رد المحتارمع الدرالمختار: ٥:٥٠٣. باب الوصي)

وفي الهندية "للوصي أن يدفع مال الصغير مضاربةوأن يشارك به غيره وأن يبضعه كذافي المحيط.

(فتاوي هندية ٦:١٤٧ الباب التاسع في الوصي و ما يملكه)

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# فتاوٰی دیوبند پاکستان

المعروف بہ

# فتاوٰی فریدیہ

# کتاب الاجارۃ

قال اللہ تبارک وتعالٰی:

قَالَتْ اِحْدٰىهُمَا يٰاَبَتِ اسْتَاْجِرْهُ اِنَّ خَيْرَ مَنِ اسْتَاْجَرْتَ الْقَوِيُّ الْاَمِيْنُ﴿۲۶﴾

(سورۃ القصص)

.........

# كتاب الاجارة

## باب ما يجوز من الاجارة وما لا يجوز

### د كفارو د ملازمت حكم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زه ډاکټر یم، ایرانی حکومت زه د ملازمت دپاره په ایران کې منتخب کړې یم اوس پوښتنه دا ده چې ایران ته د دې مقصد دپاره د ملازمت په سلسله کې تلل جائز دی یا نه؟ بله دا چې په دې ملازمت سره حاصله شوې ګټه به حلاله وی که حرام؟ بینوا توجروا

المستفتی: عمر فاروق الیکټریکل ډیپارټمنټ یوسی ای ټیکسلا .... ۱۹۸۶ء | ۷ | ۸

**الجواب:** د شیعه او انګریز وغیره ملازمت جائز دې اګر چې دا کفار محارب وی خوپه دې شرط چې په دې ملازمت کې د اسلام یامسلمان سپکاوې نه وی لان خباب بن الارت رضی الله تعالی عنه عمل لعاص باجرة ولم ینکر علیه النبی ﷺ رواه البخاری (۱) ولما یشیر الیه کلام ابن الملك فی شرح المجمع لو استاجر الکافر مسلماً للخدمة جاز اتفاقاً ولکنه یکره لان فیه استهانة صورة انتهی (۲). والله اعلم

---

۱ ) حدثنا عمر بن حفص ... ثنا خباب قال کنت رجلا قینا فعملت للعاص بن وائل فاجتمع لي عنده فاتیته اتقاضاه فقال لا والله لا اقضیک حتي تکفر بمحمد فقلت الخ.

(الصحیح للامام البخاري ۱:۳۰۴ باب هل یواجر الرجل نفسه من مشرک في ارض الحَرب)

۲ ) في الهندیة: المسلم اذا اجر نفسه من کافر لیخدمه جاز ویکره قال الفضلي لا یجوز للخدمة وما فیه الاذلال بخلاف الزراعة والسقي.

(فتاوي هندیة ۴:۴۳۵ کتاب الاجارة، الباب الحادي عشر في الاستیجار للخدمة)

## په کمیشن باندې د مدرسې دپاره سفیر ساتل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د مدارسو سفیران عام طور د چندې ثلث یا ربع اخلی آیا دا جائز ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: نور الحق ملک گرمهٔ بازه پیښور .... ربیع الثانی ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** دا معامله اجاره فاسده ده. لوجوه، الاول عدم وجود الاجرة حين العقد، والثانی عدم تعين الاجرة(۱) والثالث عدم صحة الزكوٰة اجرة(۲) الافی صورة العامل الشرعی(۳) فافهم. وهوالموفق

---

(۱) في شرح المجلة: كل ما افسد البيع مما مر في البيوع يفسد الاجارة كجهالة ماجور او اجرة او مدة او عمل.
(شرح المجلة ۲:۵۳۸ المادة: ۴۶۰)

(۲) قال العلامة الحصكفي: هي تمليك جزء مال عينه الشارع من مسلم فقير غير هاشمي ولا مولاه مع قطع المنفعة عن المملك من كل وجه لله تعالىٰ. قال العلامة ابن عابدين: متعلق بتمليك اي لاجل امتثال امره تعالىٰ.
(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۴،۲:۳ كتاب الزكاة)

وفي الهندية: ولو نوي الزكاة بما يدفع الخليفة الي المعلم ولم يستأجره وان كان الخليفة بحال لو لم يدفعه يعلم الصبيان ايضا اجزأه والا فلا.
(فتاويٰ عالمگيرية ۱:۱۹۰ الباب السابع في المصارف)

(۳) في الهندية: (ومنها العامل) وهو من نصبه الامام لاستيفاء الصدقات والعشور.
(فتاويٰ عالمگيرية ۱:۱۸۸ الباب السابع في المصارف)

## امام ته زکاة د اجرت او بدلې په طور ورکول

**سوال:** مایقول العلماء الکبار فی المسئلة الآتیة : قدروج فی دیارنا ان یتفق اهل المحلة علی ان یقوم الامام فی المسجد وینعقد معه علی ان یعطی له من العشر والزکوٰة الثلث اوالربع مثلا فهو یؤذن لهم ویصلی لهم وغیر ذلك من التجهیز والنکاح، هل تجوز الامامة بأخذ الزکاة ام لا؟ علی تقدیر الجواز هل یصح العقد بالثلث مثلاً ام لا؟ والثانی هل یجوز اخذ الزکاة للامام ام لا؟ وعلی تقدیر الجواز هل الفرق بین المشغول بالتدریس وغیر المشغول به ام لا؟ وعلی التقدیر الاول ان کان له کفایة فهل یجوزله الاخذ ام لا؟ بینوا توجروا

المستفتی : سعید محمد حقانی فاضل حقانیه .... ٤ فروری ١٩٧٥ء

**الجواب:** اذا کان الانعقاد علی اعطاء الزکاة اجرة فیکون هذا العقد غیر مشروع واذا کان صلة مشروطة او معروفة فیکون مشروعاً عند فقر الامام سواء کان معلماً اومتعلماً اوغیرهما، اما الاول فلعدم کونه لله تعالی وهو الشرط کما صرح به فی الدر المختار وغیره(١) واما الثانی فلأن الصلة لا تنافی العبادة کما فی حدیث زینب امرأة عبد الله بن مسعود رضی الله عنه لهما اجران اجر القرابة

---

(١) قال العلامة الحصکفي : هي تملیک جزء مال عینه من مسلم فقیر غیر هاشمي ولا مولاه مع قطع المنفعة عن المملک من کل وجه لله تعالي.

وقال العلامة ابن عابدین : متعلق بتملیک اي لاجل امتثال امره تعالي.

(شامي ٢:٤٠٣ کتاب الزکاة)

(ومثله في الهندیة ١:١٧٠ کتاب الزکاة)

واجر الصدقة(١) فافهم، واما الثالث فلما قال العلامة ابن عابدين فى ردالمحتار ٢: ٨١ فى رد ما نسب الى الواقعات من ان طالب العلم يجوز له اخذ الزكوة ولو غنياً الخ، ولم يعتمده احد انتهى (٢) قلت والعلماء لايدخلون فى العاملين عليها لان الامام لم يبعثهم ولم ينصبهم. وهوالموفق

**مجبورسړی ته فورا د روزګار ورکولو په بدل کې په تنخواه کې کمې کول**

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې يو سړې د بې روزګارئ نه مجبور دې روزګار غواړی هغه ته روزګار ورکولې شی، خو مزدوری ورته صرف دومره ملاويږی چې دوډئ جامه په تنګسيا سره ملاويږی څکه چې هغه ته فورا روزګار ورکولې شی او د فوری روزګار ورکولو د وجې نه هغه ته مزدوری کمه ملاويږی، کومه چې هغه مجبورا قبلوی څکه چې هغه ته معلومه ده چې د انکار په صورت کې به لوږو سره مخامخ کيږی نو دې مجبور سړی ته فورا د روزګار ورکولو په بدل کې په مزدورئ کې کمې کول جائز دی يا نه؟ بينواتوجروا

المستفتی: ټول اينډ مشينری کمپنی پوسټ بکس ١٧٥ لاهور. ١٦ اکتوبر ١٩٦٩ء

**الجواب:** د رضا په وخت جائز ده. (٣) خو غوره نه ده. (٤) وهوالموفق

---

١) (مشكوة المصابيح ١٧١ باب افضل الصدقة)

٢) (ردالمحتار ٢:٦٥ باب المصرف)

٣) في شرح المجلة: يشترط صحة الاجارة رضا العاقدين (شرح المجلة ٢:٥٣١ المادة: ٤٤٨)

٤) في المرقاة: (نهي رسول الله ﷺ عن بيع المضطر)... والثاني ان يضطر الي البيع لدين ركبه او مؤنة ترهقه فيبيع ما في يديه بالوكس للضرورة وهذا سبيله في حق الدين والمروءة ان لا يبايع علي هذا الوجه ولكن يعار ويقرض الي الميسرة او يشتري الي الميسرة او يشتري السلعة بقيمتها فان عقد البيع مع الضرورة علي هذا الوجه صح مع كراهة اهل العلم له.

(مرقاة المفاتيح شرح مشكوة المصابيح ٦:٨٠ باب المنهي عنها من البيوع)

## په ختم القرآن باندې اجرت اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې خلق علماء او صوفیاء جمع کوی بیا د کلام الله شریف تلاوت شروع کوی او ختم فرمائی بعض خلق په مړی پسې او بعض خلق د تبرک او د مریض د شفاء دپاره لولی بیا هم په هغه ورځ هم هغه علماء او صوفیاء ته خوراک هم ورکوی او څه نقدې پیسې هم په طور د زکاة یا عشر یا خیرات ورکوی. دا اجرت علی القراءت دې یا نه؟ او ! که په خولۀ باندې ووائی چې زمونږ نیت اجرت نه دې، ورکونکی هم دا وائی او اخستونکی هم دا وائی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: نامعلوم........**

**الجواب:** که دا ختم د دنیوی اغراضو دپاره وی نو په دې باندې اجرت اخستل او خوراک کول جائز دی یدل علیه ما روی مرفوعاً: ان احق ما اخذتم علیه اجرا کتاب الله تعالی (۱) ورد فی الرقیة ولا یصح التخصیص بالحربی، والمقاصد الدنیویة فی حکم الرقیة (۲) او که دا ختم د ایصال ثواب دپاره وی نو که دا پیسې وغیره اجرت وی نو ناجائز دی (۳) او که دا د صله یا اعزاز یا تصدق د ابتداء په طور وی نو جائز دی (۴)

---

۱ ) (الصحیح للامام البخاري ۸۵۴:۲ باب الشرط في الرقیة بقطیع من الغنم)

۲ ) قال الشیخ الانور: نعم لو کان الختم لمطالب دنیویة طاب له الاجرة... قوله (احق ما اخذتم علیه اجرا کتاب الله)... هو عندنا محمول علي الرقیة ونحوها.
(فیض الباري علي صحیح البخاري ۲۷۷،۲۷۶ باب ما یعطي من الرقیة)

۳ ) قال العلامة ابن عابدین: لا یصح الاستیجار علي القرأة واهدائها للمیت لانه لم ینقل عن احد من الائمة الاذن في ذلک.
(ردالمحتار ۳۹:۵ مطلب في تحریر مُهمّ في عدم جواز الاستیجار علي التلاوة الخ)

۴ ) قال العلامة العیني: (وقال الشعبي: لا یشترط المعلم الا ان یعطي شیئا فلیقبله) هذا یدل علي ان اخذ الاجر بالاشتراط لا یجوز فان اعطي من غیر... [بقیه بر صفحه آئنده...

يدل عليه ما رواه الترمذي: عن انس رضی الله عنه ان رجلا من كلاب سأل النبي ﷺ عن عسب الفحل فنهاه فقال يا رسول الله انا نطرق الفحل فنكرم فرخص له في الكرامة انتهى (١) وعند التصريح بالصدقة جاز الاخذ في الفتوٰی دون التقوی. فقط

## بغير د خبر ورکولو نه په تدريس شروع کولو باندې د تنخواه حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې مدرس يا ناظم د شوال د مياشتې حقدار دې يا نه دې؟ حال دا چې هغوی د مهتمم يا متولی د وينا مطابق د خپلې حاضرئ ليکلې خبر نه دې ورکړې، او نه مهتمم ته دا علم شته چې هغه خپل سپارل شوی کار کړې دې حال دا چې د طالبانو داخله هم نه ده شوې. بينوا توجروا

**المستفتی:** مولوی محمد دين اشرفيه کتب خانه کوهاٹی بازار راولپنڈی ٢٩ رمضان المبارک

**الجواب:** که د دې ادارې په قوانين کې دا قانون مطبوع وی چې ملازم به بغير د تحريری اطلاع نه مستحق نه وی، او يا که ملازم د دې التزام کړې وی نو تنخواه وضع کول به صحيح وی، کنه نو غلط به وی. وهذا بناء على ما ذكروه ان العادة محكمة.(٢) وهو الموفق

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] شرط فانه يجوز اخذه لانه اما هبة او صدقة وليس باجرة واصحابنا الحنفية قائلون بهذا. (عمدة القاري ١٢:٩٧ باب ما يعطي في الرقية)

١) (سنن الترمذي ١:٣٧٢ باب ماجاء في كراهية عسب الفحل)

٢) في شرح المجلة: العادة محكمة يعني ان العادة عامة كانت او خاصة تجعل حكما لاثبات حكم شرعي. (شرح المجلة ١:٧٨ المادة ٣٦)

وقال العلامة ابن نجيم: العادة محكمة...واعلم ان اعتبار العادة والعرف يرجع اليه في الفقه في مسائل كثيرة حتي جعلوا ذلک اصلا.

(الاشباه والنظائر مع شرحه للحموي ١:٢٩٥ القاعدة السادسة العادة محكمة)

## شاملات یا مملوک ځمکې لره د څاروو د څرولو او آبادۍ کولو دپاره په اجاره ورکول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید خالد ته وويل چې تاسو سره چې په فلانی ځای کې کومه شاړه ځمکه ده هغه مونږ ته راکړئ مونږ به د هغې نه فوائد حاصلوو څاروی به هم پکې څروو او استوګنه به هم ساتو او د سرې دپاره به هم هغه ځای استعمالوو، غرض دا چې منافع ئې متعین کړل او زید خالد ته وويل چې مونږ به د منافع معلوم په عوض کې تاسو ته شپږ سوه روپئ درکوو، او اصل مالکان به هم تاسو يئ مونږ به ستاسو د مالکانه حقوقو او انفرادی مالکيت احترام هم برقرار ساتو کله چې تاسو غواړئ نو ځمکه به درته خالی کړو نو آيا دا عقد جائز دې؟ زید ته بعض خلقو وويل چې تاسو دا رشوت ورکړې دې ځکه چې دا بيع هم نه ده او نه هبه، عارية او وقف دې، زید وائی چې دا رشوت نه دې ځکه چې اول خو په دې باندې د رشوت تعريف نه صادقيږی، دويم د رشوت چې کوم علت عند الشرع دې هغه بالکل منتفی دې ځکه چې رشوت حرام او ظلم دې په دې وجه زید وائی چې دا رشوت نه دې بلکې اجاره ده او اجاره د ځمکې هم جائز ده او په دې معامله کې د اجارې تعريف او شرائط موجود دی، مثلا عقد علی المنافع بالخصوص هم دې او منافع هم معلوم او مقرره دی او اجرت هم معلوم، شپږ سوه روپئ او موده ئې هم عرفا معلومه ده، لهذا د دې تعلق د اجارې سره دې حال دا چې په فقه کې دا صورت موجود دې.

**ويجوز ان يستأجر الساحة ليبني فيها او يغرس فيها نخلا او شجرا فاذا انقضت مدة الاجارة لزمه ان يقلع البناء والغرس ويسلمها فارغة**، آيا دا عقد ناجائز دې؟ او آيا زید طرف ته رشوت منسوب کول صحيح دی؟ **بينوا توجروا**

**المستفتي: شير محمد خطيب ٢٧ ايف ايف ٢٣ جولائی ١٩٧٤ء**

**الجواب:** که دغه ځمکه د خالد ملکيت نه وی بلکې موات او شاملات وی نو دا اجاره باطل ده. **لان من شرائطها الملك كما في الهندية ٤١٩/٤** (١) او

---

١) (فتاوي هندية ٤١٠:٤ الباب الاول في تفسير الاجارة... وشرائطها)

که دا مملوک وی نو د چراګاه او د څاروو دپاره اجاره صحیح نه ده. كما في الهندية ٤٦٨/٤. (١) والهداية ٥٤/٣ (٢) بیشکه د آبادئ دپاره صحیح ده. كما هومسطورفی الاستفتاء(٣) وهوالموفق

## په نکاح تړلو باندې اجرت اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په نکاح تړلو باندې اجرت اخستل څنګه دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالرؤف معلم اسلامیات ګورنمنټ هائی سکول صوابۍ... ۱۵ صفر ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** دا اجرت په تعليم باندې دې. (٤) هوالموفق

---

١) وفي الهندية: ولا يجوز بيع الكلاء واجارته وان كان في ارض مملوكة. (فتاوي هندية ۱۰۹: ۳الفصل الثاني في بيع الثمار وانزال الكروم الخ)

٢) قال العلامة المرغيناني: ولا يجوز بيع المراعي ولا اجارتها. (هداية ۵۴: ۳باب البيع الفاسد)

٣) (هداية ۲۹۸: ۳باب مايجوز من الاجارة ومايكون خلافا فيها، كتاب الاجارة)

٤) وفي الهندية: ولو استأجر لتعليم ولده الكتابة او النجوم او الطب او التعبير جاز بالاتفاق وفي فتاوي الفضلي ولو استاجر المعلم علي حفظ الصبيان او تعليم الخط او الهجاء جاز (فتاوي عالمگيرية ۴۴۸: ۴الباب السادس عشر في الاستيجار علي الطاعات) وقال العلامة قاضي خان: اختلف المشائخ في الدلالة في النكاح هل يكون لها الاجر قال الشيخ الامام ابوبكر محمد بن الفضل لا اجر لها لانه لا منفعة للزوج من كلامها بغير عقد وانما منفعة الزوج في العقد والعقد ما قام بها وقال غيره من المشائخ لها اجر مثلها لان معظم الامر في النكاح يقوم بالدلالة فان النكاح لا يكون الا بمقدمات تكون من الدلالة فكان لها اجر المثل بمنزلة الدلال في البيع فانه يستحق الاجر. (فتاوي خانية علي هامش الهندية ۳۲۷: ۲باب الاجارة الفاسدة)

## د مدرس د پاره د حج د ورځو اجرت اخستل

**سوال:** ما یقول العلماء الکرام والمفتیون العظام فی المسئلة الاتیة: هل یستحق المدرس الاجرة ایام فریضة الحج؟ بینوا توجروا

المستفتی: صدر الشهید متعلم دار العلوم حقانیه اکوړه خټک... ۵ ذی الحجة ۱۳۸۹هـ

**الجواب:** د ایام حج د اجرت د استحقاق متعلق روایات حدیثیه او فقهیه دواړو کې څه تصریح نشته لهذا که د تقرر په وخت د دې څه فیصله نه وی شوې نو د هغې دارومدار به د مدارس په عرف باندې وی، په دې شرط چې د هغه ادارې څه مقرر قانون او اصول نه وی او په موجوده وخت کې د لوئې مدارسو عرف دا دې چې د یوې نیمې میاشتې تنخواه ورکوی لهذا هغه معمول سائل پکار دی یدل علیه ما فی الأشباه والنظائر ۷۹، القاعدة السادسة: العادة محکمة واصلها قوله علیه الصلوٰة والسلام ما راه المسلمون حسنا فهوحسن عندالله تعالی، قال العلائی لم اجده مرفوعا فی شیئ من کتب الحدیث ولا بسند ضعیف بعد طول البحث وکثرة الکشف والسوال وانما هو قول عبد الله بن مسعود رضی الله تعالی عنه موقوفا علیه اخرجه احمد فی مسنده انتهی (۱) قلت لکنه مرفوع حکما،

د دې نه معلومه شوه چې عادت او عرف باندې بناء کول یعنی چېرته چې نص نه وی اصل او قاعده ده، ویدل علیه جزئیات آخر مذکورة فی الاشباه. (۲)

---

۱) (الاشباه والنظائر مع شرحه للحموي ۲۹۵: ۱ القاعدة السادسة، العادة محکمة)

۲) قال العلامة ابن نجیم: فما فرع علي هذه القاعدة حد الماء الجاري الاصح انه ما یعده الناس جاریا، ومنها وقوع البعر الکثیر في البئر الاصح ان الکثیر ما یستکثره الناظر، ومنها حد الماء الکثیر الملحق بالجاري الاصح تفویضه الي رأي المبتلي به لاالتقدیر بشيي من العشر ونحوه، ومنها الحیض والنفاس قالوا لو زادالدم علي اکثر الحیض والنفاس یرد الي ایام عادتها ومن ذلک العمل المفسد للصلاة مفوض الي العرف... [بقیه برصفحه آئنده...

والدرالمختار(١) فقط وهوالموفق

## په موقت او غیر موقت اجاره کې مستاجر له خارج کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې څه موده مخکې مونږ په کوهاټ کې ٣٨ کناله ځمکه اخستلې وه د ذکر شوې زمکې مخکښنې مالک يو اجاره دار ته د کال په اجاره باندې ورکړې وه، چې په هغې باندې تقريبا په شپږ کنالو باندې امرود هم سابقه مالک لګولي وو اوس اجاره دار مونږ ته د دې ځمکې قبضه په دوه لاکه روپۍ پرېږدي حال دا چې په دې ځمکه باندې دې اجاره دار هيڅ ترقياتی کار نه دې کړې، د درې کالو نه مونږ ته حاصلات هم نه راکوی په دې صورت کې که مونږ د حکومت په ذريعه قبضه واخلو نو آيا شريعت مونږ ته اجازت راکوی؟ بينواتوجروا

---

...بقيه ازحاشيه گذشته]

لو كان بحيث لوراه يظن انه خارج الصلاة، ومنها تناول الثمار الساقطة وفي اجارة الظئر وفيما لا نص فيه من الاموال الربوية يعتبر فيه العرف في كونه كيلياً او وزنياً.

(الاشباه والنظائر مع شرحه للحموي ٢٩٦: ١ القاعدة السادسة، العادة محكمة)

١ ﴾ قال العلامة الحصكفي: (وجاز اجارة الحمام) لانه عليه الصلوة والسلام دخل حمام الجحفة، وللعرف وقال عليه الصلوة والسلام ما راه المسلمون حسنا فهو عند الله حسن قلت والمعروف وقفه علي ابن مسعود كما ذكره ابن حجر.

(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ٣٥،٣٦: ٥ باب الاجارة الفاسدة)

وقال العلامة الحصكفي: في كتاب الايمان: فان الايمان مبنية علي العرف فما تعورف الحلف به فيمين ومالا فلا (لا) يقسم (بغير الله تعالي كالنبي والقرآن والكعبة) قال الكمال ولا يخفي ان الحلف بالقرآن متعارف فيكون يمينا واما الحلف بكلام الله فيدورمع العرف وقال العيني وعندي ان المصحف يمين لا سيما في زماننا.

(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ٥٦: ٣ كتاب الايمان)

المستفتي: عبدالشکور پراچه مین بازار کوهاټ.... ۲٦ دسمبر ۸۸ء

**الجواب:** که دا اجاره غیر موقت وی نو د کال په شروع کښ هغه له بغیر د معاوضې نه خارج کول جائزدی (۱) اګر چې د پولیس په ذریعه وی او که موقت وی نو دوخت نه مخکښ د معاوضه ورکولو اجازت شته(۲) وهوالموفق

## د افسرانو په اجازت یا بغیر د اجازت نه
## د مسجد د امام دپاره تنخواه مقرر کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کښ چې د اکثر سرکاری او غیر سرکاری ادارو سره تړلې مسجدونو کښ د هغه ادارو ملازمین مونځ ادا کوی ملازمین په هغه مسجدونو کښ یو پیش امام مقرر کوی د امام صاحب نوم د ملازمینو په فهرست کښ چوکیدار (لائن مین) یا د فتر وغیره په حیثیت سره لیکلې شی او دغه شان هغه ته د ادارې د طرف نه د ملازمینو

---

۱) قال العلامة الحصكفي: (آجر حانوتا كل شهر بكذا صح في واحد فقط) وفسد في الباقي لجهالتها... واذا مضي الشهر فلكل فسخها بشرط حضور الآخر لانتهاء العقد الصحيح. (الدر المختار علي هامش ردالمحتار ۵:۳۴،۳۵ باب الاجارة الفاسدة)

وفي شرح المجلة: لو انقضت الاجارة واراد الآجر قبض ماله يلزم المستأجر تسليمه اياه. (شرح المجلة ۲:۶۹۴ المادة: ۵۹۳)

۲) قال العلامة الدكتور وهبة الزحيلي: ولان المستأجر يملك المنفعة فله ان يتنازل عنها بعوض كالاجارة وبغير عوض كالاعارة... اذا تم الاتفاق بين المالک وبين المستأجر اثناء مدة الاجارة علي ان يدفع المالک الي المستأجر مبلغا مقابل تخليه عن حقه الثابت بالعقد في ملک منفعة بقية المدة فان بدل الخلو هذا جائز شرعاً لانه تعويض عن تنازل المستأجر برضاء عن حقه في المنفعة التي باعها للمالک.

(الفقه الاسلامي وادلته ۵:۳۸۲۶ عقد الايجار)

په شان تنخواه ورکولې شي عرض دا دې چې د دې کار دپاره اداري تنخواه نه ده مقرر کړې نو آيا په پورته ذکر شوې صورت کې دا (تنخواه) جائزکيدې شي؟ **بينواتوجروا**

**المستفتي: شمس الحق محله اپا خيل نوښار کلان پيښور.... ١٩ ذوالقعده ١٤٠٢هـ**

**الجواب:** که د دې ملازمينو دا رعايت د پورته افسرانو په اجازت سره وی نو په دې تنخواه کې هيڅ قانوني يا شرعي قباحت نشته او که دا رعايت بغير د اجازت نه وی نو په دې کې (دې تنخواه کښې) صرف قانوني قباحت دې شرعي قباحت نشته، د حکومت يو ذمه داري دا هم ده چې د امامانو او د مسجدونو د ضرورت مطابق انتظام وکړي (١) **وهوالموفق**

## په مالکانو کې د يو مستاجره ځمکه خرڅول او مشتري ته په قبضه کې ورکول

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې فضل احد، غلام احد او د هغوی ورونو د محمد سعيد، محمد ظاهر خان نه آباد دکان د کال دپاره په پنځه زره روپئ کرايه باندې واخستلو، د لسو کالو کرايه يعني پنځوس زره روپئ پيشگي ورکړه، فضل احد، غلام احد او دهغوی ورونو د دکان په مالکانو باندې دا شرط کيښودلو چې ترڅو پورې د لسو کالو ميعاد ختم شوې نه وی دا دکان به نه شي خرڅولې او نه به ئې گانه کولې

---

(١) في شرح العقائد: والمسلمون لا بد له من امام يقوم بتنفيذ احكامهم... وامامة الجمع والاعياد. وفي حاشيته: (قوله من امام)... وياخذ العشر والخراج علي الوجه المشروع ويعطي العلماء والخطباء والقضاة والمفتين والمدرسين والمتعلمين والحافظين وغير ذلک من بيت المال. (شرح العقائد ١١٠ حاشيه ٤)

وقال العلامة ابن عابدين: (ثالثها حواه مقاتلونا)...يصرف في مصالحنا كسد الثغور... وكفاية العلماء والقضاة...والمساجد (ردالمحتار ٢:٦٣ قبيل باب المصرف)

شی، پورته ذکر شوې دکان د ترۀ او ورارۀ دې او دا دکان د دواړو مشترک دې. تقریبا په نیم میعاد تیریدلو باندې فضل احد، غلام احد او ورونو د مالک یعنی محمد ظاهر خان نه دهغه پوره حصه یعنی نیم دکان په بیع قطعی باندې واخستلو او پیسې ئې ادا کړې، اوس مالک یعنی محمد سعید خان وائی چې چونکې پورته ذکر شوې شرط (خرڅولې نه شی) ختم شو لهذا د کرایه رسید باطل شو، او اوس به زه (محمد سعید ته) دخپلې خوښې کرایه ورکوم، تاسو ته درخواست دې چې د شریعت په رڼا کې د دې مسئلې جواب څه دې؟

المستفتی: فضل احمد وغیرهم بټ خیله ... ۲۹ جون ۱۹۸۶م

**الجواب:** د مالکانو دا بیع نافذ ده خو د اجارې د مودې د لسو کالو ختمیدو نه مخکې نه دا د دکان مالک په دې دکان باندې جبرا قبضه کولې شی او نه دا مشتری دا دکان قبضه کولې شی. کما فی شرح المجلة ۱: ۶۹۰ م ۵۹۰: لوباع الآجر المأجور بدون اذن المستأجر یکون البیع نافذا بین البائع والمشتری ولم یکن نافذا بحق المستأجر الی آخره(۱). وهوالموفق

## د عرف موافق په صنعت باندې مزدور د مزدورئ مستحق دې

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو زرګر د یو سړی سره د کالو جوړولو په وخت دا شرط ولګولو چې زه به د دوه سوه روپو

۱) (شرح المجلة ۱: ۶۹۰ مادة ۵۹۰ الفصل الثاني في تصرف العاقدين في الماجور الخ)
وقال العلامة الحصکفي: بیع ما آجره فانه ایضا لیس بعذر بدون لحوق دین کما مر ویوقف بیعه الي انقضاء مدتها. (الدرالمختار ۵: ۵۷ باب فسخ الاجارة)
وفي الهندیة: ولو باعها الآجر بغیر اذن المستأجر وردالمستأجر البیع هل ینفسخ البیع اختلف المشائخ فیه والاصح انه لیس له ان یفسخ.
(فتاوي عالمگیریة ۴: ۴۶۰ الباب التاسع عشر في فسخ الاجارة بالعذر الخ)

فی توله جوړولو مزدوری اخلم، اخستونکی سړی هم دا ومنله چې مزدوری به دوه سوه روپۍ درکوم خو شرط به دا وی چې کالی به خالص وی اوس زرګر کالی جوړ کړل خو کله چې اخستونکی سړې راغلو نو هغه وويل چې په دې کې غش (چل) دې زه دا نه اخلم، حال داچه زرګر وائی چې يوه توله سرهٔ زر بغير د يوه رتۍ غش نه نهٔ جوړيږی د دې متعلق شرعی حکم څه دې؟ آيا هغه د دې ريټ مستحق دې؟ بينواتوجروا

المستفتی: عبدالجبار مدرسه عربيه شمس المدارس احمد آباد

تحصيل وضلع کرک، ۲۳ شعبان ۱۴۰۸ھ

**الجواب:** دې زرګر د عرف مطابق کار کړې دې لهذا دې به د مزدورۍ مستحق وی خو که د نورو زرګرانو په نزد ريټ کم وی نو هغه ته دې ريټ (نرخ) کم ورکړې شی. (۱) وهوالموفق

## په اجاره کې د اقالې د وعدې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې که يو سړې يوه ځمکه په شل روپۍ کال باندې په اجاره واخلی او دا سړی هغه سړی ته اتهٔ سوه يا زر روپۍ د پيشګی په طور ورکړی او ورسره دا هم ووائی چې دوه کاله پس که تاسو په دې اجاره باندې راضی نه وئ نو د شل روپۍ کال په حساب سره د تيرو کلونو پيسې کټ کړه، ته به ماته باقی پاتې واپس کوې

---

(۱) في شرح المجلة: العادة محكمة يعني ان العادة عامة كانت او خاصة تجعل حكما لاثبات حكم شرعي... واعلم انه يرجع في مسائل كثيرة الي العرف والعادة حتي جعلوا ذلک اصلا. (شرح المجلة ۷۹،۷۸ : ۱ المادة: ۳۶)

وقال العلامة ابن نجيم: العادة محكمة... واعلم ان اعتبار العادة والعرف يرجع اليه في الفقه في مسائل كثيرة حتي جعلوا ذلک اصلا.

(الاشباه والنظائر مع شرحه للحموي ۲۹۵ : ۱ القاعدة السادسة، العادة محكمة)

او زه به تاته خمکه درکړم، مهرباني اوکړئ دلائل ليکلو سره د دې جواب راکړئ چې عند الشرع جائز ده يا ناجائز؟ بينواتوجروا

المستفتي: مولوی عبدالواحد اليان کورولنه لرد کوټ تحصيل چارسده... ١١ جون ١٩٧٠ء

**الجواب:** که په دې اجاره کې د مودې تعين شوې وی نو دا جاره صحيح ده، په دې شرط چې د اقالې وعده په درميان د عقد کې نه وی يعنی د عقد نه خارج د خاطر په طور شوې وی.

لما فی الهداية: ولا يصح حتى تكون المنافع معلومة والاجرة معلومة لما روينا والمنافع تارة تصير معلومة بالمدة الخ ٣: ٢٧٧ (١) وفيها ايضا ٢٦٥: الاجارة تفسدها الشروط كما تفسد البيع لانه بمنزلته (٢). وهوالموفق

## د هړتال د ورځو د تنخواه حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې استاذان د خپلو مطالباتو د منلو دپاره تدريسی بائيکاټ کولې شی يا نه؟ د دې بائيکاټ د ورځو تنخواه اخستل جائز دی يا نه دی؟ بينواتوجروا

المستفتي: قاضي محمد شريف گورنمنټ مډل سکول
گلشن آباد راولپنډی... ٩ جون ١٩٩٦ء

**الجواب:** چونکې په جمهوری حکومت کې هړتال کول او سره د هغې خپله تنخواه وصولول قانونی امور دی لهذا د دې ملازمينو دپاره دا تنخواه گانې اخستل جائز دی، کما فی شرح المجلة: ٣٤، المادة: ٣٦: العادة محكمة يعنی ان

---

١) (الهداية ٣:٢٩٣ کتاب الاجارات)

٢) (الهداية ٣:٣٠١ کتاب الاجارات، باب الاجارة الفاسدة)

وقال العلامة الحصكفي: (تفسد الاجارة بالشروط المخالفة لمقتضي العقد فكل ما افسد البيع) مما مر (يفسدها) كجهالة ماجور او اجرة.

(الدرالمختار ٥:٣٢ باب الاجارة الفاسدة)

العادة عامة اوكانت خاصة تجعل حكما لاثبات حكم شرعي. (١) وهوالموفق

## د غنمو په لو کولو یا د تهریشر په مزدورۍ کې لسمه حصه ورکول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې مزدور ته د غنمو په لو کې مزدوری ورکول مثلا لسمه او دغه شان په تهریشر وغیره کې د غنمو لسمه ورکول جائز دی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: حاجی جعفر خان باجوړ ایجنسی ...۶ اپریل ۱۹۹۰ء

**الجواب:** چونکې د دې فاسد معاملې نه خواص هم نه شي بچ کیدې، لهذا ددې دجوازفتوی ورکول قابل اعتراض نه دی. كما افتى به مشائخ بلخ (٢) وهوالموفق

---

١ (شرح المجلة ٧٨: ١ المادة ٣٦)

وقال العلامة ابن نجيم :العادة محكمة... واعلم ان اعتبار العادة والعرف يرجع اليه في الفقه في مسائل كثيرة حتي جعلوا ذلك اصلا.

(الاشباه والنظائر ٢٩٥: ١ القاعدة السادسة، العادة محكمة)

٢ وفي الهندية :صورة قفيزالطحان ان يستأجرالرجل من آخرثوراليطحن به الحنطة علي ان يكون لصاحبها قفيز من دقيقها او يستأجر انسانا ليطحن له الحنطة بنصف دقيقها او ثلثه او ما اشبه ذلك فذلك فاسد... دفع غزلا الي حائك لينسجه بالنصف فالثوب لصاحب الغزل ومشائخ بلخ جوزوا هذه الاجارة لمكان الضرورة والتعامل.

(فتاوي عالمگيرية ٤٤٥،٤٤٤: ٤ الفصل الثالث في قفيز الطحان وما هو في معناه)

وقال العلامة ابن عابدين :(قوله كما زعمه مشائخ بلخ) قال في التبيين ومشائخ بلخ والنسفي يجيزون حمل الطعام ببعض المحمول ونسج الثوب ببعض المنسوج لتعامل اهل بلا دهم بذلك ومن لم يجوزه قاسه علي قفيز الطحان والقياس يترک بالتعارف.

(ردالمحتار ٤٠: ٥ مطلب يخص القياس والاثر بالعرف العام دون الخاص)

## د حجام د مزدورئ حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د ګیره خرونکی نائی د مزدوئ څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: ګل حبیب صوابي..... ۱۹ ستمبر ۱۹۷۲ء

**الجواب:** د دې نائی مزدوری حرام ده، فی الدر المختار : ولا لاجل المعاصی، هامش رد المحتار ۴/۵ (۱) وهوالموفق

## د ګورنمنټ نه الاؤنس (روپئ) د کور د کرایه د پاره د وصولولو حیله کول چې سړې د پلار په کور اوسیږی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زه یو سرکاری ملازم یم زما استوګنه مستقل طور په ټیکسلا کې ده د سرکاری قواعدو د لاندې د میاشتې د تنخواه نه علاوه یو خاص قسم الاؤنس (الاؤنس دپاره د کور د کرایه) ورکولې شی کوم چې د هغه ملازمینو دپاره دې چاته چې د ګورنمنټ دطرف نه سرکاری استوګنه نه وی ملاؤ او هغه ملازمین په کرایه باندې کور اخستلو سره اوسیږی ما چونکې په کرایه باندې کور نه دې اخستلې بلکې د خپل پلار سره په ذاتی کور کې اوسیږم، د الاؤنس اخستلو دپاره متعلقه دفتر ته د کور د کرایه رسید خودل غواړی لهذا تاسو دا بیان کړئ چې زه الاؤنس په دې صورت کې اخستلې شم یا چې والد صاحب ته څه پیسې د تنخواه د کرایه په طور ورکړم او یا په بل څه صورت باندې اخستل جائز وی؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد رفیق راولپنډی.... ۲۵ جولائی ۱۹۷۲ء

---

(۱) (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۵:۳۸ باب الاجارة الفاسدة)
وقال العلامة المرغيناني : ولا يجوز الاستيجار علي إلغناء والنوح وكذا سائر الملاهي لانه استيجار علي المعصية والمعصية لا تستحق بالعقد.
(هداية ۳:۳۰۳ باب الاجارة الفاسدة)

**الجواب:** تاسو د پلار دا ذاتي کور د هغوی نه یا د هغې څه حصه د پلار نه په اجاره باندې واخلئ او پلار وغیره ته د استوګنې اجازت ورکړئ، په دې تدبیر سره به تاسو د ګناه نه محفوظ یئ. **وهوالموفق**

## د مستعفي مدرس د شعبان او رمضان د تنخواه اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د مدارس عربیه چې کوم تعطیلات د شعبان المعظم نه کیږي که یو مدرس په شعبان کې د مدرسې نه مستعفي شي او د بل کال دپاره په مدرسه کې اوسیدل نه غواړي یا مهتمم مدرس په شعبان کې فارغ کړي نو آیا شرعي طور مدرس مذکور په دواړو صورتونو کې دشعبان او رمضان دتنخواه مستحق دې یا نه؟**بینواتوجروا**

**المستفتي:** اعجاز علي مدرس جامعه رشیدیه بهکر میانوالی.... ۹ ستمبر ۱۹۷۶ء

**الجواب:** د کوم دار العلوم مطبوعه آئین او قانون چې موجود وی نو په دواړو صورتونو کې به د هغې پابندی ضروری وی او د کوم دارالعلوم چې آئین او قانون نه وی نو د نورو مدارسو د قوانینو پابندی به ضروری وی.

**الا ان یکون قانونهم مصادما بالمنصوص کالجمع بین الوقت والعمل(۱) والاصل فیه ما فی الاشباه والنظائر: العادة محکمة انتهی(۲) یعنی ان العادة عامة کانت او خاصة تجعل حکما لاثبات حکم شرعی کما فی شرح المجلة ۳۴ فلیراجع (۳)**، او که دا امور نامعلوم وی، یا مضطرب وی نو په مستعفي کیدو او کولو دواړو صورتونو کې به دا مدرس د ایام تعطیل

---

۱) قال العلامة الحصكفي: (او) استاجر (خبازا ليخبزله كذا) كقفيز دقيق (اليوم بدرهم) فسدت عند الامام لجمعه بين العمل والوقت، ولا ترجيح لاحدهما فيفضي للمنازعة. (الدرالمختار علي هامش ردالحتار ۵:۴۱ باب الاجارة الفاسدة)

۲) (الاشباه والنظائر مع شرحه للحموي ۱:۲۹۵ القاعدة السادسة)

۳) (شرح المجلة ۱:۷۸ المادة: ۳۶)

مستحق وی، لان شعبان ورمضان من آخر السنة التعليمية كوقت العصر فی صورة المياومة وفی ردالمحتار ۳: ۳۸۰، فحيث كانت البطالة معروفة فی يوم الثلاثاء والجمعة وفی رمضان والعيدين يحل الاخذ، وكذا لو بطل فی غير معتاد لتحرير درس الا اذا نص الواقف علی تقييد الدفع باليوم الذی يدرس فيه كما قلنا(۱) انتهی بقدر الضرورة. وهوالموفق

## د مستاجر ځمکه په مزارعت باندې د ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید بکر ته ځمکه په اجاره باندې ورکړه اود اجارې قیمت ئې مخکې وصول کړو بیا بکر هم هغه ځمکه په طور د مزارعت په نیم فصل باندې ورکړه آیا دا مزارعت جائز دې یا ناجائز؟ د شریعت په رڼا کې د دې حکم واضح کړئ؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: حکیم رفیق صوابي مردان ... ۲۴ رمضان المبارک ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** که بکر دا ځمکه زید ته په طور د فصل ورکړې وی نو ناجائز ده دا د امام محمد رحمه الله آخری قول دې او معتمد علیه او اصح دې.

كما فی ردالمحتار ۶: ۲۸۴ قبيل كتاب المساقاة، وقال محمد رحمه الله تعالی: لو البذر من المستأجر او المؤجر يجوز ثم رجع وقال لا وهو المأخوذ به... وذكر فی المنح ايضا انه الاصح(۲). وهوالموفق

---

(۱) (ردالمحتار ۳: ۴۱۶ مطلب في استحقاق القاضي والمدرس الوظيفة في يوم البطالة)

(۲) (ردالمحتار ۵: ۱۹۹ قبيل كتاب المساقاة)

وفي البزازية: استأجر ارضا ودفعها الي صاحبها مزارعة فان البذر من قبل ربها لم يجز فهذه مناقضة وان من قبل المستأجر جاز وذكر هنا مسئلة تخالفه وهي استأجر ارضا ودفعها الي ربها مزارعة والبذر من قبل المستأجر او المؤاجر قال محمد يجوز ثم رجع وقال لا وهو المأخوذ. (الفتاوي البزازية علي هامش الهندية ۶: ۱۰۰ كتاب المزارعة، قبيل نوع في زرع ارض الغير بغير اذن)

## د مستاجر موجر ته ځمکه په اجاره باندې د ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ما د سل روپۍ فی جریب په حساب سره ځمکه په اجاره باندې اخستلې ده او کل رقم دولس سوه روپۍ پیشګی مې د ځمکې مالک ته ورکړې دی اوس د ځمکې مالک زمانه دوباره خپله ځمکه په یولس سوه روپۍ فی جریب حساب سره اخستلې ده یعنی ماته په کال تیریدلو باندې شپږ شلې روپۍ ګټه ملاویږی اصل خبره دا ده چې زما سرمایه هغه سره ده او هر کال ماته شپږ شلې روپۍ منافع راکوی آیا په شریعت اسلامی کې دا اخستل جائز دی یا ناجائز؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمود الدین ګل آباد چارسده...۲٤ فروری ۱۹۷۳ء

**الجواب:** د مستاجر دپاره په هیڅ حال کې جائز نه دی چې د دې ځمکې په مالک باندې اجاره وکړی.

وفی الهندية ۴:۴۳۵، وكان الامام ابوعلی النسفی يحكی عن استاذه ان المستأجر لو آجره من المواجر لا يصح (الى ان قالوا) وقال الامام الحلوانی روی عن محمد رحمه الله تعالى ان الاجارة من المالك لا تجوز مطلقا تخلل الثالث اولا وبه قال عامة المشائخ وهو الصحيح وعليه الفتوى(۱). وهوالموفق

## د مستاجر ځمکه په اجاره باندې د ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې که زید د عمر نه دوه کناله ځمکه په اجاره باندې واخستله او په دې دوه کناله ځمکه کې څه ځمکه د شاملات ده او دا دوه کناله ځمکه هغوی په سل روپۍ باندې واخستله اوس زید په ځمکه کې د تصرف کولو نه بغیر دا ځمکه په بکر باندې په دوه سوه روپۍ خرڅوی یا اصل ځمکه خپل ځان سره ساتی او

---

(۱) (فتاوی عالمگيرية ۴۲۵:۴ الباب السابع في اجارة المستأجر)

وفي شرح التنوير علي هامش ردالمحتار: (للمستأجر ان يؤجر المؤجر) بعد قبضه قيل وقبله (من غير مؤجره واما من مؤجره فلا) يجوز وان تخلل ثالث به يفتي.

(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ٥:٦٢ مطلب في اجارة المستأجر للمؤجر وغيره)

شاملات په سل یا دوه سوه روپئ باندې خرڅه کړی یا په دوه کنالو کې یو کنال خان ته د کرونديې د پاره پرېږدی او بل کنال په بکر باندې په دوه سوه روپئ خرڅه کړی آیا په دې صور مسئوله کې دا ټول جائز دی یا ناجائز؟ زمونږ په علاقو کې د دې ټولو صورتونو اجراء کیږی او عام عرف جاری دی او د هندیة باب تصرف الاجیرنه عدم جواز معلومیږی؟ بینواتوجروا

**المستفتی:** حضرت العلامه مولانا فضل مولی صاحب مدرس دار العلوم هذا

۲۷ ربیع الاول ۱٤۰۲ھ

**الجواب:** دا بیع یعنی دویمه اجاره جائز ده خو دا زائد رقم به خیرات کوی،

**كما في الهندية: اذا استأجر وقبضها ثم آجرها فانه يجوز ان آجرها بمثل ما استأجرها او اقل وان آجرها باكثر مما استأجرها فهي جائزة ايضا الا انه ان كانت الاجرة الثانية من جنس الاجرة الاولى فان الزيادة لا تطيب له ويتصدق بها[1]. وهوالموفق**

## ملازم په چټیانو کې کور پرېښودلو او د واپسۍ اراده نې ده نو د اجارې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو ملازم په شل روپئ باندې د میاشتې یو کور په کرایه باندې واخلی او کور د هغه په عدم موجودګئ کې خالی وی کله پکې د ضرورت سامان پروت وی او کله نه، ب: کور خالی پاتې شو خو د ملازم د درې میاشتو د رخصت تیرولو نه پس

(۱) (فتاوي عالمگيرية ٤: ٤٢٥ الباب السابع في اجارة المستأجر)

وقال العلامة ابن عابدين: (قوله للمستأجر ان يوجر المؤجر الخ) اي ما استأجره بمثل الاجرة الاولي او بأنقص فلو باكثر تصدق بالفضل الا في مسئلتين كما مر اول باب ما يجوز من الاجارة.

(ردالمحتار ٥: ٦٢ مسائل شتي، مطلب في اجارة المستأجر للمؤجر ولغيره)

د واپس راتلو اراده ده اوس دوه صورتونه پیدا کیږی ۱: یو دا چې کور خالی پریښودلو سره د کور مالک ته هیڅ او نه وائی په دې صورت کې ښکاره ده چې ملازم د کور نه لاس واخستلو.

۲: د کور مالک ته اووائی چې زه به د درې میاشتو تیرولو نه پس انشاء الله واپس ضرور راځم او بیا به هم دا کور په کرایه باندې اخلم، نو آیا د کور مالک د درې میاشتو د کرایه حقدار دې یا نه دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالحمید ایس وی..... ۶ مئی ۱۹۷۳ء

**الجواب:** واضحه دې وی چې په دویم صورت کې اجاره ختمه شوې ده، لکه د چې "بیا به ئې په کرایه باندې اخلم" نه واضحه ده. لهذا مالک مکان بل چاته په کرایه باندې د ورکولو اجازه لري. لوجود ما یقتضی الفسخ ویدل علیه ما فی الدرالمختار: آجر حانوتاً کل شهر بکذا صح فی واحد فقط، وفسد فی الباقی لجهالتها واذا مضی الشهر فلکل فسخها بشرط حضور الآخر لانتهاء العقد الصحیح، هامش ردالمحتار ۵: ۴۲(۱). وهوالموفق

## د مزدور د پاره په سرکاري وختونو کې فرض، نفل مونځ او د مطالعه کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په سرکاری وخت کې دننه فرضاو نفل مونځ ادا کول څنګه دی؟ مثلاً د چاشت مونځ وغیره که څه کار نه وی بلکې فارغ وی نو د اسلامی کتابونو مطالعه یا دینی مسائلو باندې ځان پوهه کول جائز دی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد رفیق راولپنډی... ۲۵ جولائی ۷۲ء

---

۱) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳۵، ۳۴: ۵ باب الاجارة الفاسدة)

وقال العلامة المرغینانی: ومن استأجر دارا کل شهر بدرهم فالعقد صحیح في شهر واحد فاسد في بقیة الشهور الا ان یسمي جملة الشهور معلومة... واذا تم کان لکل واحد منهما ان ینقض الاجارة لانتهاء العقد. (الهدایة ۳۰۲: ۳ باب الاجارة الفاسدة)

**الجواب:** فرض بهرحال کولې شی، د نوافل او مطالعې دپاره په سرکاری کار کې نقصان کول ناجائز دی.(۱) که څه کار نه وی نو بیا هیڅ باک نشته. وهوالموفق

## د تصویر ویستونکی د مزدورئ حکم:

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې نن صبا چې کوم خلق د تصویر ویستلو کار کوی د هغوی دپاره د شریعت نه د جواز څه ضرورت راوځی یا نه؟ جواب د حوالې سره راکړئ؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد مصری کشمیر فوټو سټوډیو آزاد کشمیر ..۸ ستمبر ۱۹۷۲ء

**الجواب:** چونکې د ګټې ذرائع ډیرې دی لهذا د تصویر ویستلو کار کونکې مجرم او د هغه ګټه حرامه ده. یدل علیه ماروواه البخاری: عن سعید بن ابی الحسن قال کنت عند ابن عباس اذجاءرجل فقال یاابن عباس انی رجل انما معیشتی من صنعة یدی وانی اصنع هذه التصاویر فقال ابن عباس لا احدثك الا ما سمعت من رسول الله ﷺ سمعته یقول من صور

---

۱ ﴾ قال العلامة ابن عابدین : (قوله ولیس للخاص ان یعمل لغیره) بل ولا ان یصلي النافلة قال في التتارخانیة وفي فتاوي الفضلي واذا استأجر رجلا یوما یعمل کذا فعلیه ان یعمل ذلک العمل الي تمام المدة ولا یشتغل بشیئ آخر سوي المکتوبة وفي فتاوي سمرقند وقد قال بعض مشائخنا له ان یؤدي السنة ایضا واتفقوا انه لا یؤدي نفلا وعلیه الفتوي.

(ردالمحتار ۵:۴۸ مطلب لیس للاجیر الخاص ان یصلي النافلة)

وفي الهندیة : اذا استأجر رجلا یوما لیعمل کذا فعلیه ان یعمل ذلک العمل الي تمام المدة ولا یشتغل بشیئ آخر سوي المکتوبة وفي فتاوي اهل سمرقند قد قال بعض مشائخنا رحمهم الله تعالي ان له ان یؤدي السنة ایضا واتفقوا انه لا یؤدي نفلا وعلیه الفتوي.

(الفتاوي الهندیة ۴:۴۱۶ کتاب الاجارة، الباب الثالث في الاوقات التي یقع علیها عقد الاجارة)

صورة فان الله معذبه حتى ينفخ فيه الروح وليس بنافخ فيها ابدا فربا الرجل ربوة شديدة واصفر وجهه، الحديث (مشكوٰة) (١). وهوالموفق

## د چيلى د چيلئ سره په يو ځاى كولو باندې د مزدورئ حكم

**سوال:** څه فرمائى علماء كرام د دې مسئلې په باره كې چې زيد نر چيلې پاللې دې او هغه دا كاروبار اختيار كړې دې كله چې څوك چيلئ راولى نو مسمى مذكور خپل نر چيلې په ښځه چيلئ باندې هله پرېږدى چې يو روپئ د چيلئ والا نه وصول كړى د شريعت په رڼا كې دا ګټه حلال ده كه حرام؟ او دا كاروبار جائز دې يا ناجائز؟ بينواتوجروا

المستفتى: عبدالله باباكبيرپوره لوښار .... ٢٦ ستمبر ١٩٦٩ء

**الجواب:** كه زيد دا پيسې د اجرت او عوض په طور اخلى نو ناجائز دى. (٢) او كه هغه ته دا پيسې اعزازى طور وركولې شى نو جائز دى.

من كلاب سأل النبى ﷺ عن عسب الفحل فنهاه فقال يارسول الله انا

---

١ ) (مشكوٰة المصابيح ٣٨٦ باب التصاوير)

وقال العلامة المرغيناني: ولا يجوز الاستيجار علي الغناء والنوح وكذا سائر الملاهي لانه استيجار علي المعصية والمعصية لا تستحق بالعقد.

(الهداية ٣:٣٠٣ كتاب الاجارات)

٢ ) قال العلامة الحصكفي: (لاتصح الاجارة لعسب التيس) وهو نزوه علي الاناث.

(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ٥:٣٨ باب الاجارة الفاسدة)

وقال العلامة المرغيناني: ولا يجوز اخذ اجرة عسب التيس وهو ان يواجر فحلا لينزو علي اناث لقوله عليه السلام ان من السحت عسب التيس والمراد اخذ الاجرة عليه. (الهداية ٣:٣٠٣ باب الاجارة الفاسدة)

نطرق الفحل فنكرم فرخص له في الكرامة(١). فقط وهو الموفق

**دڅاروو په پالنه باندې اجرت کې لیلة (د کال نه کم عمر بچې) ورکول**

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د څاروو مالک. د پالنې په خاطر پالنه کونکی ته د هر کال په آخره کې د "لیله" ورکولو اقرار کوی. د لیله نه مراد د بیزې هغه بچې دې کوم چې د کال نه د کم عمر وی لهذا فتوی لیکلو سره مهربانی وکړئ **بینواتوجروا**

المستفتی: عبدالحمید ایس وی معلم مډل سکول ۲۵ فروری ۱۹۷۲ء

**الجواب:** که دا معامله اجاره وی نو د اجرت د جهالت د وجې نه فاسد ده. (٢) **وهوالموفق**

**د کور مالک یوه میاشت مخکې نه خبرولو**

**باندې د یوې میاشتې زیاته کرایه وصولول**

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو کرایه دار د مالک مکان سره تحریری معاهده کوی کله چې هغه د کور د پریښودلو اراده وکړی نو یوه میاشت مخکې دې مالک مکان خبر کړی کنه نو د یوې میاشتې کرایه به زیاته وصولولې شی نو هغه یوه ورځ مخکې د کور مالک خبردار کړو اوس که دکور مالک ددې معاهدې د لاندې د یوې میاشتې کرایه وصول کړی نو دا جائز ده یا ناجائز؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: محمد سعید اکبر پوره

---

١) (سنن الترمذي ٣٧٢: ١ باب ماجاء في كراهية عسب الفحل)

٢) قال العلامة الحصكفي: كل ما افسد البيع مما مر في البيوع يفسد الاجارة كجهالة مأجور او اجرة او مدة او عمل. (شرح المجلة ٥٣٨: ٢ المادة: ٤٦٠)

وفي الهندية: الفساد قد يكون لجهالة قدر العمل... وقد يكون لجهالة البدل. (فتاوي هندية ٤٣٩: ٤ الفصل الاول فيما يفسد العقد فيه)

**الجواب:** دا عقد هم ناجائز دی(۱) او د یوې میاشتې کرایه وصولول هم ناجائز دی. (۲) وهوالموفق

## د امامت د فرائض ادا کولو نه د عاجز امام تنخواه او د هغه د معزول کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د مسجد یو امام بیمار شو څلور پنځه میاشتې په بستره پروت وو، طالب علم ورته مونځ ورکولو، د محلې والو یو بل مولوی صاحب امام جوړ کړو او د مسجد امام منظورولو سره د خلیفه نه اقرار نامه واخستله، چې د امامت د حاصلاتو نه به دوه حصې تاته درکوم، او دریمه حصه به زه اخلم، چې په هغې باندې موجود حاضرینو دستخطې وکړې څو ورځې تیریدلو نه پس خلیفه د فقر او غریبئ اظهار وکړو نو شرارت کونکو وویل چې د مسجد امام هغه ته خرچه ورکړی امام وویل چې ما هغه سره هیڅ اقرار نه دې کړې چې په حاضر وخت کې به زه تاته غله درکوم نو محلې والو لس سیره غله جمع کړه او دوه سرې د مسجد امام ته راغلل د مسجد امام شل روپئ ورکړې، خو دې دواړو پیسې وانخستلې، او مسجد ته تلو سره ئې خلیفه ته وویل چې ته زمونږ امام ئې خلیفه نه ئې، آیا د دې خلیفه امامت صحیح دې او دمخکې امام د اجازت نه بغیر د خلقو مونځ صحیح دې یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** مولوی عبدالرحمن توردهیر ..... ٢٤ فروری ١٩٧٥ء

---

(۱) في الهندية: والاجارة تفسدها الشروط التي لا يقتضيها العقد ... وان تكاراها الي بغداد علي انها ان بلغته بغداد فله اجر عشرة دراهم الا فلا شيئ له فالاجارة فاسدة وعليه اجر مثلها بقدر ما سار عليها... او شرط انه ان لم يبلغه الي موضع كذا اليوم فلا اجر عليه فسد كله وعليه اجر مثل ماركب.

(فتاوی هندية ٤٤٣،٤٤٢:٤ الفصل الثاني فيما يفسد العقد فيه لمكان الشرط)

(۲) في المشكوة: عن ابي حرة الرقاشي عن عمه قال قال رسول الله ﷺ الا لا تظلموا الا لا يحل مال امرئ الا بطيب نفس منه.

(مشكوة المصابيح ٢٥٥ باب الغصب والعارية)

**الجواب:** که دا زوړ امام د امامت د فرائض ادا کولو نه عاجز وی نو د وظیفې مستحق به نه وی خو د مروت تقاضه دا ده چې هغه سره باقاعده اعانت وکړې شی، بل د اهل حل وعقد دپاره جائز دی چې هغه د عدم اهلیت د وجې نه معزول کړی.

فی ردالمحتار ۳:۵۶۴، قال الطرسوسی: ومقتضاه ان المدرس ونحوه اذا اصابه عذر من مرض اوحج بحيث لايمكنه المباشرة لايستحق المعلوم الخ(١) وان العزل فلعدم اهلية يدل عليه مافي ردالمحتار ۳:۵۳۴(٢). وهوالموفق

## د کمیټۍ په عدم پابندئ سره د استاذانو تدریس پرېښودل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام ددې مسئلې په باره کې چې په یو کلی کې څو معززین او د کلی ټول خلق جمع کیدو سره دخپل مولوی صاحب سره دا عهد وکړی چې تاسو زمونږ بچوته دینی تعلیم ورکړئ او درس تعلیم القرآن شروع کړئ ټولو خلقو یوځای کیدو سره سیکرټری او خزانچی مقرر کړو او استاذ ته ئې وویل چې تاسو ماشومانو ته درس ورکوئ او د تنخواه ذمه دار به خزانچی او سیکرټری وی، عوام به هغه سره چنده جمع کوی او څه موده پس هغوی په خپل عهدباندې پوره اونه ختل او استاذئې ناحق پریشان کړو آیا د داسې خلقو په وعده خلافئ سره استاذدرس پرېښودلې شی یانه؟بینواتوجروا

المستفتی: فیض الحنان... راولپنډی... ۱۷ مارچ ۱۹۷۵ء

---

١) (ردالمحتار ۳:۴۴۷ قبیل مطلب في الغیبة التي یستحق بها العزل، کتاب الوقف)

٢) قال العلامة الحصكفي: (وينزع) وجوبا (لو) الواقف درر فغيره بالاولي (غير مأمون) او عاجزا. (درمختار ۳:۴۲۱)

وقال العلامة ابن عابدين :اذا ولي السلطان مدرسا ليس باهل لم تصح توليته لان فعله مقيد بالمصلحة.

(ردالمحتار ۳:۴۲۳ مطلب لا يصح عزل صاحب وظيفة بلا جنحة او عدم اهلية)

**الجواب:** د کمیټۍ د عدم پابندۍ د وجې نه استاذان هم د تعلیم پرېښودلو اجازه لري. (١) وهوالموفق

**په شوال کې د مدرس په مقرر کولوباندې د ټولې میاشتې د تنخواه حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د یو مدرس تقرر کله چې د پنځلسم شوال نه مخکې یا د پنځلسم شوال نه پس شوې وی نو آیا هغه مدرس د شوال د پوره میاشتې د تنخواه حقدار دې یا کوم وخت چې هغه سبق خودل شروع کړی دی تاسو د خپلې مدرسې د معمول مطابق زمونږ رهنمائی وکړئ؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد شاه نور دهیر ...۲ دسمبر ۱۹۷۳ء

**الجواب:** که د تقررۍ په وخت تصفیه نه وی شوې او د دې دار العلوم مطبوعه آئین نه وی نو د عرف مطابق به دا مدرس د ټول شوال د مشاهرې مستحق وی. فلیراجع الی الاشباه والنظائر ۷۹: القاعدة السادسة: العادة محكمة واصلها قوله عليه الصلاة والسلام ما رأه المسلمون حسنا فهو عندالله حسن (رواه احمد) (٢). وهوالموفق

---

١) في الهندية: الاجارة تنقض بالاعذار عندنا وذلک علي وجوه اما ان يكون من قبل احد العاقدين... وكل عذر لا يمنع المضي في موجب العقد شرعا ولكن يلحقه نوع ضرر يحتاج فيه الي الفسخ واذا تحقق العذر ومست الحاجة الي النقض ... والصحيح ان العذر اذا كان ظاهرا يتفرد.

(فتاوي عالمگيرية ۴۵۸:۴ الباب التاسع عشر في فسخ الاجارة)

٢) (الاشباه والنظائر ۹۳)

وفي شرح المجلة: العادة محكمة يعني ان العادة عامة كانت او خاصة تجعل حكما لاثبات حكم شرعي.

(شرح المجلة ۷۸:۱ المادة ۳۶)

## د قیدی د خلاصی د پاره مزدور جوړیدو سره د خپل خدمت مزدوری اخستل جائز دی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې بغیر د څه شرعی جرم نه په جیل کې قید دې که زه هغه سره خبره وکړم چې زه به تا په درې زره روپئ باندې خلاص کړم او هغه ماته په خوشحالئ باندې هغه پیسې راکړی زه د هغې نه زر روپئ نه کمې یا زیاتې افسر ته ورکړم او افسر هغه سړې راخلاص کړی نو دا باقی دوه زره روپئ زما دپاره جائز دی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: ظفر احمد صاحب الریاض سعودیة...... ١٤ شعبان ١٤٠٥هـ

**الجواب:** که تاسو په دې ورځو کې یعنی څومره ورځې چې د هغه سړی د خلاصی متعلق خرچه کړې وی خپل نفس د هغه قیدی اجیر او مزدور مقرر کړئ وی نو ستاسو دپاره به دا رقم حلال وی. (١) وهوالموفق

## د مدرس د چندې نه د خپلې تنخواه وصولولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام ددې مسئلې په باره کې چې یو مهتمم صاحب یو مدرس د تدریس دپاره مقرر کړو لس کاله هغه تدریس وکړو اوس مهتمم صاحب د یو کال تنخواه خو ورکړه او باقی د نهو کالو تنخواه ئې ورنکړه اوس دا مدرس د چندې نه خپله تنخواه وصولولې شی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم.... ١١ جنوری ١٩٧٦ء

**الجواب:** که دې مدرس د شروع نه په خپله رضا باندې تدریس شروع کړې

---

(١) قال العلامة المرغيناني: والاجير الخاص الذي يستحق الاجرة بتسليم نفسه في المدة وان لم يعمل كمن استوجر شهراً للخدمة ولرعي الغنم.
(الهداية ٣:٣١٠ كتاب الاجارات، باب ضمان الاجير)
وفي شرح المجلة: يجوز اجارة الآدمي للخدمة او لاجراء صنعة ببيان مدة او بتعيين العمل بصورة اخري. (شرح المجلة ٢:٦٦ المادة: ٥٦٢ الفصل الرابع في اجارة الآدمي)

وی نو دا مدرس د تیرې مودې مطالبه نه شي کولې. (۱) او که د شروع نه میاشتنی تنخواه مقرر شوې وی نو د دې مدرسې د چندې نه خپل حق وصولولې شی. (۲) وهوالموفق

## په مملوکه ځمکه کې د استوګنې او د ګیا د قلنګ اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ څاروی د سپرلی نه تر خزان پورې په غریزه علاقه کې اوسیږی او زمونږ د علاقې خلق هم خپل مالونه بوتلو سره تقریبا څلور میاشتې هلته څروی او آبادئ ئې هم هلته جوړې کړې دی، زمونږ خواته ګجر قوم هم دې نو زمونږ خلق د هغه ګجرانو نه د دې څرولو اجاره وغیره وصولوی او حال دا چې ځمکه زمونږ ده زمونږ په کلی کې څلور نیمه سوه کسان دی او په هغې کې دا ګوجر وغیره په قلنګ باندې اوسیږی آیا دا حلال ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: فضل حق دا کخانه کلکوټ دیر ... ۲ ذوالقعده ۱۴۰۲ھ

---

۱) وفي شرح المجلة: لو خدم احد آخر بناء علي طلبه من دون مقاولة اجرة فله اجر مثله ان كان ممن يخدم بالاجرة والا فلا التقييد بكون الخدمة بناء علي طلب المخدوم يشير الي انه لو خدمه بلا طلب فلا اجرة له وان كان ممن يخدم بالاجرة لانه يكون متبرعا وهو ظاهر.

(شرح المجلة ۶۶۱: ۲ المادة ۵۶۳ الفصل الرابع في اجارة الآدمي)

۲) قال العلامة ابن عابدين: (قوله يعني بلا امره) لان للدائن ان يأخذ بيده اذا ظفر بجنس حقه بغير رضا المدين فكان للقاضي ان يعينه... قال الحموي في شرح الكنز ان عدم جواز الاخذ من خلاف الجنس كان في زمانهم لمطاوعتهم في الحقوق والفتوي اليوم علي جواز الاخذ عند القدرة من اي مال كان لا سيما في ديارنا لمداومتهم العقوق.

(ردالمحتار ۵:۱۰۵ كتاب الحجر)

**الجواب:** که دا قلنګ د ګیا معاوضه وی نو حرام دي (۱) او که په مملوکه ځمکه کې د استوګنې معاوضه وی نو حلال دي. (۲) **وهوالموفق**

## په مستاجره ځمکه کې افیون کرل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې خپله ځمکه په اجاره باندې ورکړی او اجاره اخستونکې په هغې باندې افیون اوکری نو دهغې اجرت اخستل دځمکې دمالک دپاره حلال دی یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: یارملادیر......۱۹جولائی۱۹۷۹ء

**الجواب:** په ظاهره دې کې هیڅ ګناه نشته لکه چې په هوټل کې په مزامیر وغیره استعمالولو سره مالک ته په کرایه اخستلو باندې هیڅ ګناه نشته، فافهم (۳) **وهوالموفق**

## د مدرس د تنخواه نه متعین کولو په صورت کې هغه د اجر مثل مستحق دې

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید

---

۱) في الهندية: ولا يجوز بيع الكلاء اجارته وان كان في ارض مملوكة.
(فتاويٰ هندية ۳:۱۰۹ الفصل الثاني في بيع الثمار والانزال والكروم والاوراق الخ)

۲) قال العلامة برهان الدين المرغيناني: والمنافع تارة تصير معلومة بالمدة كاستيجار الدور للسكني والارضين للزراعة فيصح العقد علي مدة معلومة.
(الهداية ۳:۲۹۳ كتاب الاجارات)

۳) في خلاصة الفتاويٰ: واذا استاجر الذمي من المسلم دارا ليسكنها فلا بأس به وان شرب الخمر او عبد فيه الصليب لم يلحق المسلم شيئ كما لو أجر داره من فاسق يعص الله فيها.
(خلاصة الفتاوي ۳:۱۵۰ كتاب الاجارات، الفصل العاشر في الحظر والاباحة)

مهتمم دارالعلوم، بکر مدرس د کال په دوران کې مثلا په جمادی الثانی کې مطالبه کوی چې د بیا دپاره دستخط وکړه، بکر مدرس وائی چې اوس د کال دورانیه ده ډیره موده باقی ده زه څنګه فیصله کولې شم نه د کال اختتام دې او نه د کال د شروع زمانه ده او نه دار العلوم نه د مطالبې زمانه ده خو مهتمم صاحب د هغوی نه په دستخط اخستلو باندې اصرار کوی او مدرسین مضطر او مجبور دی چې څه وکړی، بکر مدرس وائی چې نبه زه دستخط کوم خو زه په حالیه تنخواه باندې راضی نه یم هغه وائی چې هر څه به وشی، او بیا د رمضان نه پس وائی چې د تنخواه فیصله به کمیټی کوی او تاسو مدرسینو دستخط کړې دې د معاهدې پابند ئې خو نه د کمیټۍ او ممبرانو پته لګی، نه د بل چا، آیا دا د اجارې عقد صحیح دې یا فاسد یا هیڅ عقد نشته؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: مولانا آزاد گل مدرس مدرسه تعلیم القرآن عمرزئی چارسده ۳۰ شوال ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** د کوم دار العلوم په آئین کې چې د دواړو طرفونو (مهتمم او عمله) حقوق مقرر شوې نه وی نو هغه آئین نه اسلامی آئین دې او نه جمهوری آئین، زمونږ د علاقو اکثر مدارس هم دا نوعیت لری په دې بناء باندې د بل کال د تعلیم دپاره، کوم چې د شوال نه شروع کیږی، ستاسو دا معامله اجاره فاسده ده. (۱) **لعدم يقين الاضافة لانصاً ولا عرفاً** او تاسو د اجر مثل مستحق ئې، **كما هو الاصل عند فساد الاجارة صرح به في ردالمحتار** (۲) **وغيره** (۳). **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة الحصكفي: فكل ما افسد البيع مما مر يفسدها كجهالة ماجور او اجرة او مدة او عمل. (الدرالمختار ۵:۳۲ باب الاجارة الفاسدة)

۲) في ردالمحتار: (وحكم الاول) وهو الفاسد (وجوب اجر المثل) اي اجر شخص مماثل له في ذلك العمل. (ردالمحتار ۵:۳۱ باب الاجارة الفاسدة)

۳) قال العلامة ابن نجيم: الكلام في اجرة المثل تجب في مواضع احدها الاجارة في صور منها الفاسدة. (الاشباه والنظائر ۳۶۵ الكلام في اجرة المثل)

## په اجاره کې غله په طور د اجرت مقرر کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په علاقه کې دا رواج دې کله چې یوه ځمکه په اجاره باندې ورکوی نو وائی چې مثلا د دې ځمکې نه به په خزان کې پنځه منه غنم ماته راکوئ هم دغه شان جوار وغیره، بعض وخت فصل زیات وی او کله کم وی مهربانی وکړئ شرعی حکم راته بیان کړئ. **بینواتوجروا**

**المستفتی:** عبدالله سی او ډیلکس بیکری کریم پوره پیښور ... ۱۱ جنوری ۸۷ء

**الجواب:** دا اجاره ناجائز او فاسد ده خو چې د کومې ځمکې د پیداوار نه د ورکولو تخصیص نه وی کړې شوې نو هغه جائز دې (۱) **والله اعلم بالصواب**

## څاروې په نیم قیمت باندې د پاللو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په خلقو کې دا رواج دې چې د غوا یا میخې بچې د پئ د څښلو نه د فارغ کیدو نه پس یو غریب ته د پالنې دپاره ورکوی او په بازار کې د هغه قیمت مقرر کوی کال دوه کاله پس هغه خرڅ کړی څومره قیمت چې د هغه زیات شی هغه خپل

---

(۱) قال العلامة ابن عابدین: وسئل قاریٔ الهدایة هل یجوز استیجار ارض للزراعة بکذا ارداب غلة ام لا فاجاب نعم، یجوز اذا کانت الاجرة مشارا الیها او موصوفة في ذمته ولا تکون من الغلة التي تخرج من زرع الارض المستأجرة.
(فتاویٰ تنقیح الحامدیة ۲:۱۱۹ کتاب الاجارة)

وفي الکاملیة: سئلت فیمن استأجر ارضا بیضاء للزراعة بکذا وکذا قفیزا من الغلة هل یجوز ذلک فالجواب نعم، یجوز اذا کانت الاجرة مشارا الیها او موصوفة في ذمته ولا تکون من الغلة التي تخرج من زرع الارض المستأجرة.
(فتاویٰ کاملیة ۱۹۱ کتاب الاجارة)

مینځ کې نیم نیم تقسیم کړی نو آیا په شریعت کې دا اجاره جائز ده یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: فضل ربی ډاک پی سود ... ٤ شعبان المعظم ١٤٩٦هـ

**الجواب:** دا معامله اجاره فاسده ده،

لجهالة الاجرة(١) ولعدم وجودها وقت العقد(٢) ولانها تفضى الى المنازعة فى الجلد واللحم عند الهلاك(٣)، فافهم. نعم قال الشيخ الانور هى فاسدة قضاء فقط لا ديانة(٤) فالامر عنده واسع، حضرت مفتی صاحب دداسې سوال په بل جواب کې دا وجه هم لیکلې ده چې:

---

(١) في شرح المجلة: كل ما افسد البيع مما مر في البيوع يفسد الاجارة كجهالة ماجور او اجرة او مدة او عمل. (شرح المجلة للاحكام ٢:٥٣٨ المادة ٤٦٠)

(٢) وفي الهندية: واما شرائطها... ومنها قيام المعقود عليه.

(فتاوي عالمگيرية ٤:٤١١ الباب الاول في تفسير الاجارة... وشرائطها)

(٣) قال العلامة الكاساني: واما الذي يرجع الي المعقود عليه فضروب منها ان يكون المعقود عليه وهو المنفعة معلوماً علما يمنع من المنازعة فان كان مجهولا ينظر ان كانت تلك الجهالة مفضية الي المنازعة تمنع صحة العقد والا فلا.

(بدائع الصنائع ٤:٢٤ كتاب الاجارة شرائط الصحة)

(٤) قال الشيخ الانور: ان من البيوع الفاسدة ما لو اتيَ بها احد جازت ديانة وان كانت فاسدة قضاء وذلک لان الفساد قد يكون لحق الشرع بان اشتمل العقد علي ما ثم فلا يجوز بحال وقد يكون الفساد لمخافة التنازع ولا يكون فيه شيئ آخر يوجب الاثم فذلک ان لم يقع فيه التنازع جاز عندي ديانة وان بقي فاسداً قضاءً.

(فيض الباري ٣:٢٥٨ كتاب البيوع، باب من اجري امر الامصار)

ولانها من قبيل قفيز الطحان (۱) وهو الموفق

## څاروی لره په نيم قيمت ساتلو ته په ورکول ... ( بانډي ، پاللو حيله )

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام ددې مسئلې په باره کې چې يو سړی خپل څاروی چاته په منافع باندې ورکول غواړی هغه خلق به دهغې حفاظت او نگرانی کوی گیاه به هم پرې خوروی د خرڅولو نه پس به منافع نيمه د هغوی او نيمه زمونږ ترمينځه وی، دا طريقه د شريعت په رڼا کې جائز ده يا نه؟ **بينوا توجروا**

**المستفتی:** عبدالرؤف زبير صاحب سخاکوټ... ۱۶ ستمبر ۱۹۷۵ء

**الجواب:** دا معامله اجاره فاسده ده، **لكون الاجر فيها معدومة ومجهولة**، پس غوره دا ده چې د دې د پاللو دپاره مثلا د دوه کالو د څرولو پنځه سوه روپۍ مزدوری مقرر کړې شی او د مودې د ختميدو نه پس هغه مزدور ته د هغه پيسو په عوض کې نيم څاروی ورکړې شی. (۲) **وهو الموفق**

---

۱) في شرح المجلة: ويفسدها ايضا جعل الاجرة بعض ما يخرج من عمله كأن يدفع غزلا لآخر لينسجه بنصفه... والاصل في ذلك نهيه ﷺ عن قفير الطحان.
(شرح المجلة ۲:۵۳۸ المادة ۴۶۰ الفصل الرابع في فساد الاجارة)

وفي الهندية: دفع بقرة الي رجل علي ان يعلفها وما يكون من اللبن والسمن بينهما انصافا فالاجارة فاسدة. (فتاوي هندية ۴:۴۴۵ الفصل الثالث في قفيز الطحان)

۲) وفي الهندية: دفع بقرة الي رجل علي ان يعلفها وما يكون من اللبن والسمن بينهما انصافا فالاجارة فاسدة وعلي صاحب البقرة للرجل اجر قيامه وقيمة علفه ان علفها من علف هو ملكه لا ما سرحها في المرعي. (فتاوي هندية ۴:۴۴۵ كتاب الاجارة، الفصل الثالث في قفيز الطحان)

وقال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخاري: وفي فتاوي النسفي رجل دفع بقرة الي رجل بالعلف منها صفة وهي التي بالفارسية كا وينم سود بان دفع علي ما يحصل من اللبن والسمن بينهما نصفان فهذا فاسد والحادث كله لصاحب البقرة والاجارة فاسدة.
(خلاصة الفتاوي ۳:۱۱۴ كتاب الاجارات، وما يتصل بهذا)

## د موجر او مستاجر د پیسو په وصولئ کښې د اختلاف حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید مستاجر ځمکه په اجاره باندې اخستلې ده او قبضه کولو سره پرې فصل کری اوس د موجر عمرو او زید ترمینځه د پیسو د وصولولو په باره کې اختلاف واقع شوې دې، موجر عمر وائی چې ماته پیسې نه دی ملاؤ شوې او زید ورته د ټول رقم د اداکولو وائی فی الحال ګواه د چا سره هم نشته او قسم دواړه خوری شرعا د دې څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: صالح محمد سکنه سوګودها پنجاب ... ۱۹ جمادی الاول ۱۴۰۱هـ

**الجواب:** د (المدعی من اذا ترك تُرِك) په بناء باندې موجر مدعی دې او مستاجر منکر دې (۱) او دافع، پس که دا مستاجر ددې دفع د ثابت کولو نه عاجز وی نو دې مستاجر ته به قسم ورکولې شی چې آیا ستا په ذمه دا رقم واجب الاداء نه دې. (شرح المجلة باب الدفع) (۲) وهوالموفق

## د مزدور د مزدورئ نه د پیسو کټ کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په دفتر کې.

---

۱) في شرح المجلة: ثم ان المدعي من اذا ترك ترك والمدعي عليه بخلافه.
(شرح المجلة ٥:٥ المادة: ۱٦۱۳ الكتاب الرابع عشر في الدعاوي)

۲) في شرح المجلة: اذا اثبت من ادعي دفع الدعوي دفعه تدفع دعوي المدعي والا يحلف المدعي الاصلي بطلب صاحب الدفع فان نكل المدعي عن اليمين يثبت دفع المدعي عليه وان حلف تعود دعواه الاصلية.
(شرح المجلة ٥:٧٥ المادة: ۱٦۳۲ الفصل الثاني في دفع الدعوي)

وايضا فيها، وان حلف بطل دفع المدعي عليه وبقي المدعي علي دعواه يقيم البينة او يحلف المدعي عليه اذا انكر. (شرح المجلة ٦:۱۲۱ المادة ۱۸۲۳)

مونږ کاريګران وغيره د تنخواه جوړولو په وخت داسې کوو چې د چا د ورځې دياړى ۱۷،۷۲ ده نو مونږ ۱۷،۷۰ ورکوو که ۱۷،۷۳ وى نو مونږ ۱۷،۷۵ ورکوو زمونږ دا عمل جائز دې يا ناجائز؟ بينواتوجروا

المستفتي: گل محمد ټائم آفس ډى ايم ټيکسټائل ملز راولپنډى... ۷ نومبر ۱۹۸٤ء

**الجواب:** چې د مزدورانو په اذن او اجازت سره وى نو په دې کې هيڅ باک نشته. (۱) يا که د طرفين ترمينځه متعارف وى نو بيا هم څه پرواه نشته. (۲)

وهوالموفق

## د څمکې نه سوا نور څيزونه په نيمه اجاره باندې ورکول

**سوال:** څه فرمائى علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې يو سړى د خط او کتابت ټيپ بل سړى ته په دې شرط باندې ورکړو چې تاسو په دې باندې مزدورى کوئ او روزانه خپله مزدورى وصولوئ او کومې پيسې چې ستاسو د مزدورئ نه زياتې وى هغه به زما او ستاسو ترمينځه نيمې تقسيميږى، اوس که دا مشين خراب شى نو څوک به دا جوړوى مالک يا مزدور؟ که بالفرض زه يو مشين واخلم او بل سړى ته ئې په مزدورئ باندې ورکړم نو د هغې به څه حکم وى؟ بينواتوجروا

المستفتي: مولوى محمد خان تحصيل هنګو، ٥ رمضان المبارک

**الجواب:** د قواعدو په بناء باندې دا معامله سوا د مزارعت نه په نورو مقاماتو باندې فاسد ده، (لکون الاجرة فيها مجهولة ومعدومة عند عقد الاجارة

---

۱) قال الله تعالىٰ: ولا تاكلوا اموالكم بينكم بالباطل. (سورة النساء آيت: ۲۹)

وقال رسول الله ﷺ الا لا تظلموا الا لا يحل مال امرئٍ الا بطيب نفس منه.

(مشکوٰة المصابيح ۲۵۵ باب الغصب)

۲) في شرح المجلة: العادة محکمة يعني ان العادة عامة کانت او خاصة تجعل حکما لاثبات حکم شرعي. (شرح المجلة ۷۸: ۱ المادة ۳۶)

وهما مما يفسد الاجارة كما صرح به في اجارة الهندية (۱) ورد المحتار (۲) پس مناسبه ده چې رقم متعین کړی. وهوالموفق

## د بیرونی ملکونو دپاره په رهبری باندې اجرت اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې مقرر رقم د چا نه اخلی چې زه به تاسو د بهر ملک فلانی ښهر ته رسوم دهغه دپاره دا پیسې اخستل جائز دی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد سعید

**الجواب:** واضحه دې وی چې دمسلمان دپاره هراسلامی ملک ته تلل مشروع دی ممنوع نه دی لهٰذا یو مسلمان منع کول یا دهغه نه پیسې اخستلو سره اجازت ورکول به ناجائز وی پس په صورة مسئوله کې که دې رهبر ته اجیر اویلې شی نو دهغه پیسو اخستل او ورکول به بذات خود جائز شی. (۳)

---

۱) في الهندية: الفساد قد يكون لجهالة البدل.

(فتاوي هندية ۴۳۹:۴ الباب الخامس عشر في بيان مايجوز من الاجارة ومالايجوز)

۲) قال العلامة الحصكفي: فكل ما افسد البيع، مما مر (يفسدها) كجهالة ماجور او اجرة اومدة او عمل .... (و)تفسد (بعدم التسمية اصلا).... (درمختار ۳۲،۳۳:۵ باب الاجارة الفاسدة)

وفي الهندية: واذا دفع الرجل الي رجل دابة ليعمل عليها ويواجرها علي ان ما رزق الله تعالي من شيئ فهو بينهما فان آجر العامل الدابة من الناس واخذ الاجر كان الاجر كله لرب الدابة وللعامل اجر مثله... واذا دفع الرجل الي رجل بعيرا ليسقي به الماء ويبيع علي ان ما رزق الله تعالي في ذلک من شيئ فهو بيننا نصفان فهذا فاسد.

(هندية ۴۴۵:۴ الفصل الثالث في قفيز الطحان)

۳) في شرح المجلة: يجوز اجارة الآدمي للخدمة او لاجراء صنعة ببيان مدة او بتعيين العمل بصورة اخري.

(شرح المجلة ۶۶۰:۲ المادة ۵۶۲ الفصل الرابع في اجارة الآدمي)

خو د شرط فاسد د وجې نه په دا معامله اجاره فاسده وی (۱) او که دا رهبر مزدور مقرر نه کړې شی نو د دې پیسو اخستل په حرام وی. ماخوذ از رد المحتار ۳۰۴/۴ (۲) وهوالموفق

## د حکومت د مستاجر بې دخلی بندولو یا په کرایه کې د زیادت ختمولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې عمر زید ته دکان په کرایه باندې ورکړو اوس ئې هغه واپس اخستل غواړی خو حکومت بې دخلی بند کړې ده او د کرایه زیادت حکومت د قانون خلاف کړې دې اوس عمر څه وکړی؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: فضل احد بټ خیله ملاکنډ ایجنسی ... ۲ رجب المرجب ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** شرعا په زید باندې ضروری ده چې د عمر په وینا باندې دکان

---

(۱) قال العلامة المرغيناني: الاجارة تفسدها الشروط كما تفسد البيع لانه بمنزلته.
(هداية ۳:۳۰۱ باب الاجارة الفاسدة)

(۲) قال العلامة ابن عابدين: (قوله ان دلني الخ) عبارة الاشباه ان دللتني وفي البزازية و والو لوالجية: رجل ضل له شيئ فقال من دلني علي كذا فله كذا فهو علي وجهين ان قال ذلک علي سبيل العموم بان قال من دلني فالاجارة باطلة ... وان قال علي سبيل الخصوص بان قال لرجل ان دللتني علي كذا فلک كذا ان مشي له فدله فله اجر المثل للمشي لاجله لان ذلک عمل يستحق بعقد الاجارة الا انه غير مقدر بقدر فيجب اجر المثل... قال امير السرية من دلنا علي موضع كذا فله كذا يصح ويتعين الاجر بالدلالة فيجب الاجر.
(ردالمحتار ۵:۶۵ مطلب ضل له شيئ فقال من دلني عليه فله كذا)
وقال العلامة الحصكفي: استاجره ليذهب لموضع كذا ويدعوا فلانا باجر مسمي فذهب للموضع فلم يجد فلانا وجب الاجر.
(درمختار ۵:۱۴ کتاب الاجارة)

خالي کړي او امانت واپس کړي بغير د رقم اخستلو نه (١) حکومت ته دا اختيار نشته چې هغه بې دخلي بند کړي يا په کرايه کې زيادت ختم کړي (٢) وهوالموفق

## د مودې د تعين نه کيدو د وجې نه متعاقدين اجاره فسخ کولې شي

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې نن صبا زمونږ د علاقې خلق د اجارې ګاډي د يو بل نه اخلي او معامله داسې کوی چې مثلا زيد د عمرو نه يو ګاډې واخستلو او عمرو ته ئې ووئيل چې زه به تاته لس زره روپئ د مياشتې درکوم د تيلو خرچه به خپله برداشت کوم او د خرابيدلو په صورت کې هم يو مقدار معين کولې شی او دا چې زه به ذکر شوې د مياشتې خرچه درکوم که ګاډې چلوم يا په کور باندې ولاړ وی آيا ذکر شوې اجاره صحيح ده يا نه؟ بينواتوجروا

المستفتی: مولوی رقيب جان وزيرستان ...١٠ نومبر ١٩٨٩ء

**الجواب:** چونکې په دې اجاره کې د مودې تعين نه دې شوې لهذا د مياشتې د ختميدو په وخت په موجر او مستاجر کې هر يو دا اجاره فسخ کولې

---

١ ﴿ في شرح المجلة: يلزم المستاجر رفع يده عن الماجور عند انقضاء الاجارة بمضي المدة اذا كان المعقود عليه المدة... ليس للمستاجر استعمال الماجور بعد انقضاء الاجارة الا باذن صاحبه فلو فعل كان غاصبا... لان الماجور امانة كالوديعة في يده.

(شرح المجلة ٦٩٤،٦٩٣:٢ المادة: ٥٩٣،٥٩١ الفصل الثالث في بيان مواد تتعلق برد الماجور واعادته)

٢ ﴿ قال العلامة المرغيناني: ولا ينبغي للسلطان ان يسعر علي الناس لقوله عليه الصلاة والسلام لا تسعروا فان الله هو المسعر القابض الباسط الرازق ولان الثمن حق العاقد فاليه تقديره فلا ينبغي للامام ان يتعرض لحقه الا اذا تعلق به دفع ضرر العامة.

(الهداية ٤٧١:٤ فصل في البيع، كتاب الكراهية)

شی.(١) بل په دې قسم اجاره کې دا ګاډې د دې مستاجر سره امانت دې او په امانتی څیزونو کې د هلاکولو په صورت کې ضمان عائد کیږی نه پخپله د هلاکیدو په صورت کښ. (٢) خو که په طیب خاطر سره التزام کوی نو ممنوع نه دې (ماخوذ از هدایه شامی) وهوالموفق

## مزدور ته د اجرت په بدل کې د ځمکې په اجاره باندې د ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ما یو مزدور د میاشتې وساتلو او مزدوری مې ورله سل روپۍ د میاشتې مقرر کړه مزدور موصوف ماته وویل چې ما (مزدور) ته ددې عمل په عوض څه ځمکه راکړئ، چې په هغې کې زه کرونده کوم نو ما هغه ته د ټول کال دپاره د دولس سوه

---

١ ﴾ قال العلامة الحصكفي: آجر حانوتا كل شهر بكذا صح في واحد فقط وفسد في الباقي لجهالتها... واذا مضي الشهر فلكل فسخها، وقال العلامة ابن عابدين: (قوله حانوتا) مثال لانه لو استاجر ثورا ليطحن عليه كل يوم بدرهم فالحكم كذلک طوري. (شامي ٥: ٣٤، ٣٥ باب الاجارة الفاسدة)

وقال العلامة المرغيناني: ومن اجر داره كل شهر بدرهم فالعقد صحيح في شهر واحد فاسد في بقية الشهور... واذا تم كان لكل واحد منهما ان ينقض الاجارة لانتهاء العقد الصحيح. (هداية ٣: ٣٠٢ باب الاجارة الفاسدة)

٢ ﴾ وايضا قال: الوديعة امانة في يد المودع اذا هلكت لم يضمنها.

(هداية ٣: ٢٧٣ كتاب الوديعة)

وقال العلامة الحصكفي: (وهي امانة) هذا حكمها مع وجوب الحفظ والاداء عند الطلب (فلا تضمن بالهلاک)..

(درمختار ٤: ٥٥١ كتاب الايداع)

روپو په عوض یوه ځمکه ورکړه چې هغه پکې کرونده کوي نو آیا دا معامله جائز ده؟ بینواتوجروا

المستفتي: وحید الله دیر

**الجواب:** د قواعدو په رڼا کې دا معامله جائز ده. یدل علیه ما في شرح التنویر علی هامش رد المحتار ٥٢/٥ : اجارة المنفعة بالمنفعة تجوز اذا اختلفا جنساً (١) وهوالموفق

## مستاجر مړ شو نو د مزدور د اجرت حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې دوه معزز سړو یو ټیکیدار ته درې پلاټونه په ټیکه باندې ورکړل، کله چې د درې وارو تعمیر مساوی (یو) حده پورې ورسیدلو نو ټیکه دار دمالکانو نه د پیسو تقاضه وکړه، تقریبا پنځه څلویښت زره روپۍ د ټیکه دار خرچ شوې وې په مالکانو کې یو د شپاړسو زرو روپو چیک د یوې میاشتې په میعاد باندې ورکړو هم په دې دوران کې ټیکه دار د پیسو د نیشتوالی د وجې نه کار بند کړو کله چې د چیک د کیش کیدو وخت راغلو نو ټیکه دار چیک بینک ته یوړلو نو د بینک منیجر ټیکه دار ته وویل چې د کهاته دار په کهاته کې دومره پیسې نشته کله چې ټیکه دار مالک ته رجوع وکړه نو مالک وویل چې ویریږه مه حساب کتاب کولو سره به تاته پیسې درکولې شی دې دوران کې د چیک مالک ناڅاپه مړ شو کله چې ټیکه دار دویم شریک پلاټ ته رجوع وکړه نو هغه د خلقو مخکې قسم اوخوړلو او په طور د سند ئې ولیکل چې په پلاټ باندې زما هیڅ حق نشته دا درې واړه پلاټونه د مړ کیدونکی

---

١) (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ٥:٤٣ قبیل باب ضمان الاجیر)

وفي شرح المجلة: وتفسد ایضا اجارة المنفعة بالمنفعة اذا اتحد جنسا کاجارة سکني دار بسکني دار اخري... واما لو اختلف المنفعتان جنسا کاستئجار سکني دار بمزارعة ارض فانها تصح.

(شرح المجلة ٥٤١:٢ المادة ٤٦٠ الفصل الرابع في فساد الاجارة وبطلانها)

وو چې د هغې په يو حصه باندې مړ کيدونکې زما کور جوړول غوښتل کله چې ټيکه دار د مړی د وارثانو نه د پيسو تقاضه وکړه نو وارثانو جواب ورکړو چې زوره! مونږ ته هيڅ پته نشته خوته داسې وکړه چې د پلاټونو نه ملبه اوچته کړه، اوس سوال دا دې چې ټيکه دار په څه صورت باندې د موجوده مالکانونه خپل خرچ کړې پيسې وصول کړی؟ په داسې حال کې چې ټيکه دار سره اقرار نامه او ذکر شوې چيک موجود دې؟ بينواتوجروا

المستفتی: مستری غلام محمد ... حيدر آباد سنده

**الجواب:** د دې مړی په وارثانو باندې دا ضروری ده چې دې ټيکه دار ته اجرت باقاعده ادا کړی، لما صرح به الفقهاء: ثم تقدم ديونه التي لها مطالب من جهة العباد، (هامش رد المحتار ۶۴۳/۵) (۱) او که دې ژوندی سړی باقاعده ټيکه ورکړې وی نو په هغه باندې هم اجرت (مزدوری) ورکول ضروری دی. (۲) وهوالموفق

## په لا مذهب سکول کې د ملازمت (مزدوری) حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې که يو سړې د مجبورئ د وجې نه په لا مذهب سکول کې ملازمت کوی نو دا جائز دې ناجائز؟ بينواتوجروا

المستفتی: ماستر غلام نبی بهکر ميانوالی... ۱۲ صفر ۱۳۹۲هـ

**الجواب:** واضحه دې وی چې تاسوته که په بل ځای کې ملازمت نه ملاويږی نوپه دې سکول کې دضرورت د وخته پورې ملازمت اختيارولې شئ څکه چې د يو مجبور مقروض دپاره د سوال د ذلت برداشت کول جائز دی، لحديث

---

۱ ) (الدر المختار علي هامش ردالمحتار ۵:۵۳۶ كتاب الفرائض)

۲ ) في الهندية: ثم الاجرة تستحق باحد معان ثلاثة... او باستيفاء المعقود عليه فاذا وجد هذه الاشياء الثلاثة فانه يملكها.

(فتاوي عالمگيرية ۴:۴۱۳ الباب الثاني في بيان انه متي تجب الاجرة)

ورد بذلك (۱) نو د دې ادنی ذلت برداشت کول به ورله په طریق اولی جائز وی. لانه من ابتلی ببلیتین فلیختراهونهما (۲) وهوالموفق

## د بس چلولو پرمټ په کرایه باندې د ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید د ګورنمنټ نه د بس چلولو دپاره پرمټ حاصل کړو خو د پرمټ دپاره بس وانخستلې شو، اوس زید په ځای د بس اخستلو صرف هم دا پرمټ په کرایه باندې ورکول غواړی نو آیا د دې کرایه اخستل شرعا جائز دی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتي: محمد عبدالرزاق ذریعه کرنل عبدالجبار خان مردان چهاؤنی ۲ صفر ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** چونکې زید د پرمټ په ذریعه یو استحقاق حاصل کړې دې کوم چې مقبوض هم نه دې او د مجرد حق بیع او اجاره صحیح نه ده (۳) لهذا د پرمټ بیع او اجاره غیر صحیح ده. ونظیره بیع الصکاک انکره ابوهریرة رضی الله تعالی عنه (رواه مسلم ۵/۲) (۴) وهوالموفق

---

(۱) في المشكوة: عن حبشي بن جنادة قال قال رسول الله ﷺ ان المسئلة لا تحل لغني ولا لذي مرة سوي الا لذي فقر مدقع او غرم مفظع.

(مشكوة المصابيح ١٦٣ باب من لا تحل له المسئلة ومن تحل له)

(۲) قال العلامة الحصكفي: والضابط ان من ابتلي ببليتين فان تساويا خير وان اختلفا اختار الاخف. (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ١:٣٠٣،٣٠٤ باب شروط الصلاة)

وفي شرح المجلة: يختار اهون الشرين.

(شرح المجلة للاحكام ١:٧٥ المادة ٢٩)

(۳) في الدرالمختار: وفي الاشباه لا يجوز الاعتياض عن الحقوق المجردة كحق الشفعة.

(درمختار ٤:١٥ مطلب لا يجوز الاعتياض عن الحقوق المجردة)

(٤) عن ابي هريرة رضي الله عنه: انه قال لمروان احللت بيع الربا فقال مروان ما فعلت فقال ابوهريرة احللت بيع الصكاك وقد نهي رسول الله ﷺ عن بيع الطعام حتي يستوفيه فخطب مروان الناس فنهي عن بيعها.

(مسلم شريف ٢:٥ باب بطلان بيع المبيع قبل القبض)

## د افیون راویستلو مزدوری اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د افیونو د راویستلو د مزدورئ څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتي:** غلام حبیب چارسده

**الجواب:** د تعاون علی المعصیت یا عین معصیت کیدو په وجه باندې ناجائز دې (شامی: ٥) (١)، (٢) وهوالموفق

## وراره لره د حقیقی خوی په نوم باندې په مزدورئ لګولو سره د هغه د تنخواه حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی خپل ورارهٔ د خپل حقیقي ځوی په نوم باندې یو ځای کې په نوکرئ باندې ولګولو اوس آیا د هغه تنخواه حلاله ده یا حرامه؟ او چا چې هغه خپل حقیقي ځوئې متعین کړې دې آیا د هغه په نکاح باندې خو څه اثر نه پریوځی؟ **بینواتوجروا**

---

١ ﴿قال العلامة الحصكفي: قلت وقد مناثمه معزيا للنهر ان ما قامت المعصية بعينه يكره بيعه تحريما والا فتنزيها... (و) جاز (حمل خمر ذمي) بنفسه او دابته (باجر) لا عصرها لقيام المعصية بعينه. وتحته في الشامية: (قوله لا عصرها لقيام المعصية بعينه) فيه منافاة ظاهرة لقوله سابقا لان المعصية لا تقوم بعينه وهو مناف ايضا لما قدمناه عن الزيلعي من جواز استيجاره لعصر العنب او قطعه ولعل المراد هنا عصر العنب علي قصد الخمرية فان عين هذا الفعل معصية بهذا القصد. (الدرالمختار مع ردالمحتار ٥:٢٧٧ فصل في البيع كتاب الكراهية)

٢ ﴿د مفتی هند مولانا مفتی کفایت الله د تحقیق مطابق لا بأس به دې.

(مفتی سیف الله حقانی)

المستفتی: جمعه خان آف براله ضلع راولپنډی ... ۳۰ جمادی الثانی ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** که دا سړي د دې کار په کوم چې متعین کړې شوي دي، اهلیت لري نو دا سړي به د دروغ ویلو د وجې نه ګناهګار وی (۱) خو کټه ئې حلاله ده. (۲) او په نکاح باندې ئې هیڅ اثر نه پریوځی. وهوالموفق

## جرندې والو ته په مزدورئ کې اوړهٔ ورکول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په علاقه کښې په جرندو کې مالکان په مزدورئ کې اوړهٔ اخلی او دا دستور دې او زمونږ علماء کرامو تر اوسه پورې دې ته حرام نه دی ویلې خو د څو ورځو نه څو نوې طالب علمان راغلی دی او هغوی دې ته حرام وائی مهربانی وکړئ د دې شک او شبهې نه مو خلاص کړئ. بینواتوجروا

المستفتی: عبدالمتین تحصیلدار اسلام آباد بازار

پشاور ... ۲۹ ربیع الثانی ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** جرندې والو ته په اجرت کې اوړهٔ اخستل او ورکول ناجائز دی. (۳)

---

(۱) قال العلامة ابن عابدین: کل مقصود محمود یمکن التوصل الیه بالصدق والکذب جمیعا فالکذب فیه حرام.

(ردالمحتار ۵:۳۰۳ من فروع کتاب الحظر والاباحة)

(۲) قال العلامة ابن نجیم: واما رکنها فهو الایجاب والقبول والارتباط بینهما واما شرط جواز ها فثلاثة اشیاء: اجر معلوم وعین معلوم وبدل معلوم... واماحکمها فوقوع الملک في البدلین ساعة فساعة. (البحرالرائق ۸:۳ کتاب الاجارة)

(۳) قال العلامة المرغیناني: فیصیر في معني قفیز الطحان وقد نهي النبي ﷺ عنه وهو ان یستاجر ثورا لیطحن له حنطة بقفیز من دقیقه. (الهدایة ۳:۳۰۵ باب الاجارة الفاسدة)

لحدیث ورد بذلك(١) پیسې یا غله ورکول پکار دی. (٢) وهوالموفق

## د وکالت په فیس او د ډاکټر په فیس کې فرق

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې آیا په وکالت باندې فیس ګټل جائز دی یا نه؟ څنګه چې ډاکټر په دوه منټه کې تشخیص کولو سره نسخه لیکی او ډیر فیس اخلی. بینواتوجروا

المستفتی: حاجی شیر بهادر خان ساکن کاکړ ضلع دیر ... ١٥ رمضان المبارک ١٤٠٥ھ

**الجواب:** معالجه جائز ده.(٣) او د ما انزل الله خلاف فیصلې ناجائز دی.(٤) پس د ډاکټر فیس د جائز شرعی معاوضه ده او د غیر اسلامی قانون

---

١ ) قال العلامة الزيلعي : وقد نهي النبي ﷺ عنه يعني قفيز الطحان قلت اخرج الدار قطني ثم البيهقي في سننهما في كتاب البيوع ... عن ابي سعيد الخدري قال نهي عن عسب الفحل وعن قفيز الطحان.

(نصب الراية لاحاديث الهداية ٤:١٤٠ باب الاجارة الفاسدة)

٢ ) قال العلامة ابن عابدين : قال الرملي وبه علم بالاولي جواز ما يفعل في ديارنا من اخذ الاجرة من الحنطة والدراهم معاً ولا شک في جوازه.

(ردالمحتار ٥:٤٠ قبيل مطلب يخص القياس والاثر بالعرف العام)

٣ ) قال العلامة النووي : (قوله ﷺ لكل داء دواء فاذا اصيب دواء الداء برأ باذن الله تعالي) وفي هذا الحديث اشارة الي استحباب الدواء وهو مذهب اصحابنا وجمهور السلف وعامة الخلف.

(حاشية النووي علي الصحيح للامام المسلم ٢:٢٢٥ باب لكل داء دواء واستحباب التداوي)

٤ ) قال الله تبارک وتعالي : ومن لم يحكم بما انزل الله فاولئک هم الفاسقون.

(سورة المائدة آيت ٤٧)

د جج او وکیل فیس وغیره د حرام شرعی وغیره معاوضه ده.(۱) خو که تاسو داسې کیس اخلئ کوم چې د شریعت سره متصادم نه وی نو هیڅ باک نشته (۲) وهوالموفق

## د ډاکټر د فیس حکم

**سوال:** ماذا تقول العلماء المحققون في هذه المسئلة: ان الطبيب والدكتور يأخذ من المريض نقدا على التشخيص بدون ايتاء اى شيئ منه هل هو جائز ام لا؟ بينوا توجروا

المستفتی: محمد علی مهاجر ابوظهبی برج زاهدا ...۸۰۰٤... ۲۸ شعبان ۱٤۰۲ھ

**الجواب:** تشخيص المريض عمل مشروع لا منع من اخذ الاجرة عليه (۳) وهوالموفق

---

۱ ﴾ قال العلامة المرغيناني: لا يجوز الاستيجار علي الغناء والنوح وكذا سائر الملاهي لانه استيجار علي المعصية والمعصية لا تستحق بالعقد.
(الهداية ۳:۳۰۳ باب الاجارة الفاسدة)

۲ ﴾ في شرح المجلة: اذا اشترطت الاجرة في الوكالة واوفاها الوكيل يستحقها وان لم تشترط ولم يكن الوكيل ممن يخدم بالاجرة يكون متبرعا وليس له مطالبته باجرة.
(شرح المجلة ٤٤٥:٤ المادة ١٤٦٠)

وقال العلامة الدكتور وهبة الزحيلي: تصح الوكالة باجْر وبغير اجر.
(الفقه الاسلامي وادلته ٥:٤٠٥٨ الوكالة باجر)

۳ ﴾ وفي فتاوي تنقيح الحامدية: (سئل) في رجل به داء في ظهره اتفق مع طبيب علي مداواته وجعل له اجرة ولم يضرب له مدة وداواه... ويريد الطبيب اجرة مثله وما انفقه في ثمن الادوية فهل له ذلك الجواب نعم، والمسئلة في الخيرية من الاجارة....

...[بقیه بر صفحه آئنده...

## په رمضان کې د ډوډۍ نه خوړلو په عوض کې د مزدورۍ د زیاتولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ د کار کونکو (ترکاڼانو) مزدوری آتۀ روپۍ د ورځې او د سحر خوراک د ماښام چائې مقرر وه اوس په رمضان شریف کې هغوی بالقطع لس روپۍ د ورځې مقرر کړې دی اصل مزدوری خو اتۀ روپې وه خوراک خو یو فاضله او اخلاقی معیار وو کوم چې په مزدورۍ کې نه شی شاملولې، بیا مزدورۍ کونکې سرې د تیر وخت نه یو ساعت مخکې هغوی ته رخصت ورکوی قیاسا د ډوډۍ نه خوړلو معاوضه د نقدو په صورت کې حاصلولو سره د هغې په تصرف کې راوستل او هغې لره حلال او جائز حق تصور کول د ډوډۍ خوړلو مترادف کیدې شی یا نه؟ نو آیا مزدور پیشه مسلمانانو ته د مشقت دوران د ډوډۍ نه خوړلو په عوض د (مخکښ) معمول مطابق د ورځنی اجرت نه علاوه نوره معاوضه حاصلول جائز دی یا نه دی؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: شیر محمد قریشی دسترکټ راولپنډی ... ۷ شوال ۱۳۹۹هـ

**الجواب:** که په رمضان کې دا اجرت د دواړو طرفونو په مرضۍ سره مقرر شوې وی او د هغې نه وروستو مزدورانو مشقت شروع کړو نو په دې کې د جانبینو هیڅ حرج او گناه نشته او که دا مقدار معروف وی نو بیا هم دا حکم

---

...بقیه ازحاشیه گذشته]

(فتاوي تنقیح الحامدیة ۲:۱۵۱ کتاب الاجارة)

وقال العلامة خير الدين: (سئل) في رجل به داء في انفه اتفق مع طبيب علي مداواته وجعل له اجرة ولم يضرب لذلک مدة وداواه فما الحكم (اجاب) للطبيب اجرة مثله وما انفق في ثمن الادوية لفساد الاجارة علي الوجه المذكور والله اعلم.

(الفتاوي الخيرية علي هامش تنقيح الحامدية ۲: ۱۸۲ کتاب الاجارة)

دي.(۱) او که دمعمار سره د فيصلي کولو نه بغير په مشقت کي شروع شو نو جانبين مجرمان دی، فقط وهوالموفق

## د معزول مدرس د شعبان، رمضان او شوال د تنخواه ګانو اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دي مسئلي په باره کي چي یو مهتمم صاحب یو مدرس معزول کړو اوس معزول شوي مدرس د شعبان، رمضان او شوال تنخواه غواړی او مهتمم صاحب ئې نه ورکوی، آیا معزول مدرس د دي میاشتو حقدار دي یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: فضل کل علاقه غیر تیراه... ۱۳ نومبر ۱۹۷۵ء

**الجواب:** چونکي شعبان او رمضان د تیر کال نه حساب دی لهذا د دي اجرت به مدرس مستحق وی د کال ټول کار هغه پوره کړي دي، الا ان یشترطوا عدم الاخذ عند ابتداء الامر فافهم.(۲) وهوالموفق

---

۱) قال العلامة ابن نجيم : العادة المطردة هل تنزل منزلة الشرط قال في اجارة الظهيرية : والمعروف عرفا كالمشروط شرعا.

(الاشباه والنظائر مع شرحه للحموي ۱:۳۰۶ القاعده السادسة، العادة محكمة)

وفي شرح المجلة : العادة محكمة يعني ان العادة عامة كانت او خاصة تجعل حكما لاثبات حكم شرعي. (شرح المجلة ۱:۷۸ المادة ۱۶)

۲) قال العلامة ابن عابدين : فحيث كانت البطالة معروفة في يوم الثلاثاء والجمعة وفي رمضان والعيدين يحل الاخذ وكذا لو بطل في يوم غير معتاد لتحرير درس الا اذا نص الواقف علي تقييد الدفع باليوم الذي يدرس فيه.

(ردالمحتار ۳:۴۱۶ مطلب في استحقاق القاضي والمدرس الوظيفة في يوم البطالة)

وقال العلامة ابن نجيم: ومنها البطالة في المدارس كأيام الاعياد ويوم عاشوراء وشهر رمضان في درس الفقه لم ارها صريحة في كلامهم والمسألة علي وجهين فان كانت مشروطة لم يسقط من المعلوم شيئ ...[بقيه بر صفحه آئنده...

## د مزدور دپاره د تنخواه نه د زیاتی مراعاة اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام ددې مسئلې په باره کښې چې زه یو سپرنټنډنټ یم او د حکومت نه دیرش روپۍ د میاشتې اخلم اوس زما د کور کرائی دیارلس روپۍ ده او باقی اولس روپۍ د خپل ځان دپاره خرچ کوم نو آیا د شریعت په رڼا کښې د اولس روپو نه زیات اخستل جائز دی یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: محمد نواز..... ۲۰ فروری ۱۹۷٤ء**

**الجواب:** ستاسو دپاره دا مراعاة یعنی دیرش روپۍ وصولول جائز دی خو د دروغو رسید پیش کول ناجائز دی.(۱) **وهوالموفق**

## هندوانو ته د عبادت دپاره کور په کرایه باندې د ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چې زما د دوستانو

---

...بقیه ازحاشیه گذشته]

والا فینبغي ان یلحق ببطالة القاضي وقد اختلفوا في اخذ القاضي ما رتب له من بیت المال في یوم بطالته فقال في المحیط انه یأخذ في یوم البطالة لانه یستریح للیوم الثاني وقیل لا یأخذ.

(الاشباه والنظائر مع شرحه للحموي ۱:۳۰۰،۳۰۱ القاعدة السادسة: العادة محکمة)

(۱) عن سفیان ابن اسد الخضرمي قال سمعت رسول الله ﷺ یقول کبرت خیانة ان تحدث اخاک حدیثا هو لک به مصدق وانت به کاذب.

(مشکوٰة المصابیح ٤۱۲ باب حفظ اللسان والغیبة والشتم)

وقال العلامة ابن عابدین: ان کل مقصود محمود یمکن التوصل الیه بالصدق والکذب جمیعا فالکذب فیه حرام.

(ردالمحتار ۵:۳۰۳ کتاب الحظر والاباحة)

يو كور دې هغوى هغه كور د كلي څو هندوانو ته د هغوى د عبادت دپاره په كرايه باندې وركړې وو هندوان دا هم وائي چې مونږ د بت پرستئ قائل نه يو او نه كوو صرف عبادت د خپل مذهب په طريقه باندې كوو آيا هغوى ته دا كور په كرايه باندې وركول صحيح دي يا نه؟ **بينواتوجروا**

المستفتي: **محمد رفيق خوازه خيله...سوات...يكم محرم الحرام ۱۴۰۳ھ**

**الجواب:** په پاكستان كې هندوانو ته د عبادت دپاره كور په كرايه وركول ناجائز دي، ځكه چې په دې علاقو كې شعائر اسلام ظاهر او شائع دي. **كما في شرح التنوير على هامش ردالمحتار: ۳۲۶/۵: واما الامصار وقرى غير الكوفة فلا يمكنون لظهور شعائر الاسلام فيها**(۱) **والله تعالى اعلم**

## د هيډ ماسټر (سرمعلم) غير حاضر استاذ لره حاضر لګول

**سوال:** څه فرمائي علماء كرام د دې مسئلې په باره كې چې په سركارى سكولونو كې د استاذانو دپاره د چټيانو مقرره نصاب لس ورځې مقرر دي، كه يو استاذ د خپلو لسو ورځو رخصت پوره كړى او بيا د دې نه د زياتو چټيانو كولو دپاره مجبور شي او هيډماسټر (سرمعلم) كوم چې خودمختار افسردې هغه دۀ لره په زياتى ورځو كې د غير حاضر لګولو په ځاى د

(۱) (الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۵:۲۷۸ فصل في البيع كتاب الحظر والاباحة)

وقال العلامة ابن نجيم: (واجارة بيت ليتخذ بيت نار او بيعة او كنيسة او يباع فيه خمراً بالسواد) يعني جاز اجارة البيت لكافر ليتخذ معبدا او بيت نار للمجوس او يباع فيه خمر في السواد وهذا قول الامام، وقالا: يكره كل ذلک... وانما قيده بالسواد لانهم لا يمكنون من ذلک في الامصار ولا يمكنون من اظهار بيع الخمر والخنزير في الامصار لظهور شعائر الاسلام فلا يعارض بظهور شعائر الكفر قالوا في هذا سواد الكوفة لان غالب اهلها اهل ذمة واما في غيرها فيها شعائر الاسلام ظاهرة فلا يمكنون فيها في الاصح.

(البحر الرائق ۸:۲۰۲ كتاب الكراهية، فصل في البيع)

حاضرۍ د دستخط اجازت ورکړي نو آیا دا جائز ده؟ یا د اختر ځتیاني د حکومت د طرف نه پنځه ورځې مقرر شوې دي او مدرس که یو دوه ورځې مخکې لاړ نشي نو هغه اختر له کور ته نه شي رسيدې نو آیا د هغه دپاره به د دې ورځو تنخواه حرام وي؟ مهرباني وکړئ جواب راکړئ. **بينواتوجروا**

**المستفتي**: عبدالحمید معلم گورنمنټ هائي سکول

ډیره اسماعیل خان ... ٤ ذی القعده ١٣٨٩ھ

**الجواب**: هیډ ماسټر (سرمعلم) ته د حکومت د طرف نه دا اجازت نشته چې غیر حاضر لره حاضر ولګوي لهذا د غیر حاضرۍ په صورت کې د حاضرۍ دستخط ناجائز دي.(١) بلکه دا چې د معروف ورځو نه علاوه د رخصت اخستلو په وخت د تنخواه نه اخستل ضروري دي (٢) **وهوالموفق**

---

١) قال العلامة انور شاه الكشميري: (قوله ﷺ المسلمون عند شروطهم الخ يعني يلزمهم كل شرط تتحمله قواعد الشرع فعليهم الايفاء بها.
(فيض الباري علي صحيح البخاري ٣:٢٧٦ كتاب الاجارات، باب اجرة السمسرة)

٢) قال العلامة الحصكفي: الاجير الخاص... يستحق الاجر بتسليم نفسه في المدة وان لم يعمل... وليس له ان يعمل لغيره ولو عمل نقص من اجرته بقدر ما عمل (الدرالمختار) وقال العلامة ابن عابدين: واذا استأجر رجلا يوما يعمل كذا فعليه ان يعمل ذلک العمل الي تمام المدة ولا يشتغل بشيئ آخر سوي المكتوبة... نجار استوجر الي الليل فعمل لآخر دواة بدرهم وهو يعلم فهو آثم وان لم يعمل فلا شيئ عليه وينقص من اجر النجار بقدر ما عمل في الدواة.
(ردالمحتار ٥:٤٨ كتاب الاجارة، مطلب ليس للاجير الخاص ان يصلي النافلة)

وفي شرح المجلة: الاجير الخاص يستحق الاجرة اذا كان في مدة الاجارة حاضرا للعمل... لكن ليس له ان يمتنع عن العمل واذا امتنع لا يستحق الاجرة.
(شرح المجلة ٢:٤٨٧ المادة: ٤٢٥ كتاب الاجارة، الباب الاول في بيان ضوابط العمومية)

## د استاذ د حکومتي قانون د مخالفت نه کولو د وجې نه د غیر حاضرۍ په ورځو کې فرضي حاضري لګول

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ اتفاقیه رخصت د لسو په ځای پنځویشت ورځې کړې شوې دې او په ټول کال کې دا رخصت هر ملازم په وخت د ضرورت استعمالولې شي خو د انګریزي قانون د لاندې محکمه تعلیم دا شرطونه مقرر کړې دی ۱: یو ملازم د شپږو ورځو نه زیات په یو وخت رخصت نه شي اخستلې.
۲: د هائي سکول هیډ ماسټر ته د لسو ورځو پورې اختیار حاصل دې او ضلع انسپکټر صاحب په وخت د ضرورت ملازم ته کله د څلورو او کله د درې او کله د دوه ورځو رخصت ورکولې شي.
۳: کله چې یو معلم پوره لس ورځې رخصت اتفاقیه استعمال کړو او اوس هغه ته د نور رخصت ضرورت هم راغلو نو باقي زیاتي پنځلس ورځو د رخصت منظوري به مجاز افسر ډائریکټر صاحب دمحکمه تعلیم نه طلب کوی د هغه ځای نه په اجازت ملاویدو باندې به ضرورت مند معلم ته رخصت ورکوی هسې خو دا شرط عارضي دې ځکه چې افسر مجاز پورته ذکر شوې ضرورت مند مدرس ته د رخصت ورکولو نه پس ډائیریکټر صاحب ته صرف خبر ورکوی کنه نو دا پنځویشت ورځې خو د مرکزي حکومت نه بالکل منظور شده دی، هسې دا شرط د پابندئ او ضبط قائمولو په غرض باندې دې که یو معلم دوه درخواستونه جوړ کړي یو د شپږو ورځو او دویم د څلورو ورځو او په رجسټر مدرسین کې په حاضرئ کې د شپږ ورځو او څلور ورځو په مینځ د څو ورځو د حاضرئ دستخط وکړي چې حکومت ته قانونا دا ظاهره شي چې په یو وخت لس ورځې رخصت نه دې اخستلې شوې که پورته ذکر شوې طریقه استعمال کړې شي چې په هغې سره حکومت او قوم ته نقصان نه وی مګر د نفس په خاطر د دروغو شک ضرور وی نو داسې کول جائز دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالحمید ایس وی معلم مډل سکول کهوټی ډهیره ... ۱ جون ۱۹۷۰ء

**الجواب:** چونکې ملازم د ټولو قوانینو او شرطونو په منظورئ باندې دستخط کړې دې لهذا داسې کول جائز نه دی (۱) ددې فرضی حاضرئ حاضرئ نه د غیر حاضرئ د نقصان تحمل غوره دې. بیشکه کوم قوانین چې خلاف شرع وی د هغې نه مخالفت بهر حال جائز دې.(۲) **وهوالموفق**

## په مشترکه کور کې د اوسیدو په صورت کې د کرایه حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د والد صاحب نه یو کور په میراث کې پاتې شوې وی او په هغې کې د پلار بعض اولاد اوسیږی او باقی اولاد په مختلفو ځایونو باندې وی کور ته هم ځی راځی، اوس په کور کې د اوسیدونکو ورونو نه کرایه طلب کولې شی یا نه؟ **بینوا توجروا**

المستفتی: منور حسین مغل پوره لاهور... ۱۵... ۱۰ اگست ۱۹۸۳م

**الجواب:** په مشترکه کور کې د اوسیدو په صورت کې کرایه واجب الادا نه

---

۱) قال الله تبارک وتعالیٰ: یایها الذین امنوا اوفوا بالعقود.
(سورة المائدة آیت: ۱۰)
وفي الهندية: وفي فتاويٰ الفضلي اذا استأجر رجلا يوما ليعمل كذا فعليه ان يعمل ذلک العمل الي تمام المدة ولا يشتغل بشيئ آخر سوي المكتوبة.
(فتاويٰ هندية ۴:۷۱۶ الباب الثالث في الاوقات التي يقع عليها عقدالاجارة)

۲) قال العلامة السهارنفوري: قال رسول الله ﷺ المسلمون علي شروطهم زاد الترمذي والحاكم الا شرطا احل حراما او حرم حلالا وزاد البيهقيٰ ما وافق الحق لقوله ﷺ كل شرط ليس في كتاب الله فهو باطل.
(بذل المجهود في حل ابي داؤد ۴:۳۱۰ كتاب القضاء، باب في الصلح)
وقال انور شاه الكشميريٰ: قوله المسلمون عند شروطهم الخ يعني يلزمهم كل شرط تتحمله قواعد الشرع فعليهم الايفاء بها.
(فيض الباري علي صحيح البخاري ۳:۲۷۶ كتاب الاجارات، باب اجرة السمسرة)

وی ځکه چې عقد اجاره موجود نه وی.(۱) (ماخوذ از هندیة) وهوالموفق

## د ډیوټۍ په وخت د متعلقه کار نه علاوه نور کار کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې اول به زمونږ په دفتر کې چې چا تنخواه ادا کوله یعنی په خلقو باندې به ئې تنخواه تقسیم کوله نو هغه ته به د حکومت د طرف نه پنځویشت روپۍ الاؤنس ملاویدو خو اوس دا الاؤنس ختم کړې شوې دې او د دې پیسو په عوض کې هر سړې کله چې تنخواه ادا کوی نو خپل اوور ټائم اپیلائی کړی او دا مقدار دده ددې رقم مطابق جوړیږی. نژدې نژدې دومره ساعته اوورټائم اپیلائی کړی حال دا چې اوور ټائم په هغه صورت کې ملاویږی چې د ډیوټۍ نه پس څومره وخت کار وکړې شی د هغې معاوضه ملاویږی. اوس د نیمې ډیوټۍ نه پس خو کینی نه خو د لیک په طور کیناستل ظاهرولو سره د تنخواه د ادا کولو الاؤنس اخلی، آیا دا جائز ده؟

---

(۱) في الهندية: لو استأجر من صاحبه بيتا او حانوتا لا يجب الاجر وذكر القدوري ان كل شيئ لا يستحق به الاجرة الا بايقاع العمل في العين المشتركة فاذا استأجر احد الشريكين الآخر لم يجز.

(فتاوي عالمگيرية ۴:۴۵۷ الباب الثامن عشر في الاجارة التي تجري بين الشريكين)

وقال العلامة الطاهر بن عبد الرشيد: واجمعوا انه لو اجر من شريكه يجوز سواء كان مشاعا يحتمل القسمة او لا يحتمل القسمة وسواء استاجر كل نصيبه او بعضه وعن ابي حنيفة انه لا يجوز ايضا من شريكه.

(خلاصة الفتاوي ۳:۱۰۹ كتاب الاجارات)

وقال العلامة ابن عابدين: (قوله فلا يعول عليه) بل المعول عليه علي ما في الخانية ان الفتوي علي قول الامام وبه جزم اصحاب المتون والشروح فكان هو المذهب افاده المصنف وعليه العمل اليوم.

(ردالمحتار ۵:۳۳ قبيل مطلب في اجارة البناء)

۲: د اوور تائم لګولو دا پیسې اخستل څنګه دی؟ یعنی کار نه کوی خو د افسرانو سره په یو ځای کیدو باندې ئې په لیک کې راولی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد اسلم کوارټر ۶،۶،۴۵ پی این واه کینټ. ۲۸ جمادی الاول ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** د ډیوټئ په وخت کښې د متعلقه کار نه علاوه بل کار کول ناجائز دی.(۱) چې په هغې کې تقریبا اکثر افسران او سپاهیان اخته دی.۲: په تائم لګولو یا نه لګولو سره عملی خلاف ورزی نه ختمیږی. (۲) وهوالموفق

## بینک جوړول او هغه په کرایه باندې ورکول او د دې موجر د کور نه د خوراک کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې د حکومت نه قرضه سود اخستلو سره یو کور جوړ کړی یا بینک جوړ کړی یا خپله ځمکه د بینک دپاره ورکړی، او د همیشه دپاره کرایه اخلی نو په

---

۱) في الهندية: وفي فتاوي الفضلي اذا استأجر رجلا يوما ليعمل كذا فعليه ان يعمل ذلک العمل الي تمام المدة ولا يشتغل بشيئ آخر سوي المكتوبة وفي فتاوي اهل سمرقند قد قال بعض مشائخنا رحمهم الله تعالي له ان يؤدي السنة ايضا واتفقوا انه لا يؤدي نفلا وعليه الفتوي.
(فتاوي هندية ۴:۴۱۶،۴۱۷ الباب الثالث في الاوقات التي يقع عليها عقد الاجارة)

۲) قال العلامة الحصكفي: (وليس للخاص ان يعمل لغيره ولو عمل نقص من اجرته بقدر ما عمل (الدرالمختار)، وقال العلامة ابن عابدين: (قوله وليس للخاص ان يعمل لغيره بل ولا ان يصلي النافلة قال في التتارخانية وفي فتاوي الفضلي واذا استأجر رجلا يوما يعمل كذا فعليه ان يعمل ذلک العمل الي تمام المدة ولا يشتغل بشيئ آخر سوي المكتوبة... نجار استوجر الي الليل فعمل لآخر دواة بدرهم وهو يعلم فهو آثم وان لم يعلم فلا شيئ عليه وينقص من اجر التجار بقدر ما عمل في الدواة.(ردالمحتار ۵:۴۸ كتاب الاجارة مطلب ليس للاجير الخاص ان يصلي النافلة)

پورته ذکر شوې صورتونو کې د فقه حنفي مطابق څه حکم دې؟ او د داسې سړي سره معامله کول څنګه دي؟ بینواتوجروا

المستفتي: عبدالله ارمړ پایان ..... ۱۹ مارچ ۱۹۷۵ء

**الجواب:** واضحه دې وي چې د بینک نه سود اخستل حرام دي، (لان النبی ﷺ لعن اکل الربا وموکله)(۱) وهذا الشخص مؤکل،هم دغه شان بینک جوړول یا د هغې دپاره په کرایه باندې کور ورکول حرام دي، (قال الله تعالی ولاتعاونوا علی الاثم والعدوان) (۲) بلکه دا چې دې موجر ته خالص د سود نه کرایه ورکولې شي چې د هغې پخپله خوړل او په بل خوړل حرام دي. (۳) ونظیر الثانی عصر العنب لیتخذ منه الخمر وهو حرام کما فی الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۵:۳۴۵،قلت ولظهور شعار الاسلام فی بلادنا لایمکن الفسقة والکفرة بالربا وغیره کما فی الدر المختار بعد اسطر فلیراجع(۴)

پس د داسې سړي سره لین دین کولو کې احتیاط ضروري دې. وهوالموفق

---

۱) (مشکوٰة المصابیح ۲۴۴ باب الربوا)

۲) (سورة المائدة آیت:۲)

۳) في الهندية: آكل الربا وكاسب الحرام اهدي اليه او اضافه وغالب ماله حرام لا يقبل ولا يأكل مالم يخبره ان ذلک المال اصله حلال ورثه او استقرضه وان كان غالب ماله حلالا لا بأس بقبول هديته والاكل منه. (فتاویٰ هندية ۵:۳۴۳ الباب الثاني في الهدايا والضيافات)

۴) قال العلامة الحصكفي: وجاز تعمير كنيسة (وحمل خمر ذمي) بنفسه او دابته (باجر) لا عصرها لقيام المعصية بعينه (و) جاز (اجارة بيت بسواد الكوفة لا بغيرها علي الاصح) واما الامصار وقري غير الكوفة فلا يمكنون لظهور شعار الاسلام فيها... (ليتخذ بيت نار او كنيسة او بيعة او يباع فيه الخمر) وقالا لا ينبغي ذلک لانه اعانة علي المعصية وبه قالت الثلاثة زيلعي. (الدرالمختار ۲۷۸،۲۷۷:۵ كتاب الحظر والاباحة، فصل في البيع)

**په مستاجره ګاډی کې سمګلنګ (غیرقانوني شیانو د یو ځای نه بل ځای ته د انتقالولو) سره د نیولې کیدو په صورت کې به د ګاډي تاوان په مستاجر وي**

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید د خالد نه ټیکسي په کرایه باندې واخستلو او کوئټې ته د تلو اراده ئې وکړه زید خالد ته د ویلو نه بغیر په ټیکسي کې د سمګلنګ (غیرقانوني شیان) سامان کیښودلو ، په کسټم پوسټ باندې د چیکنګ په دوران کښې ددې ټیکسي نه سامان راوو تلو کسټم حکام ټیکسي او سامان ضبط کړو ، وروستو خالد په پنځوس زره روپۍ خرچې سره ټیکسي د کسټم والو نه خلاص کړو آیا خالد د زید نه د دې پنځوس زرو روپو د اخستلو حقدار دې یا نه؟ ځکه چې خالد ته د زید د وجې نه دا نقصان شوې دې ، شرعي حکم څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتي : حافظ مطيع الرحمٰن خطيب مركزى جامع مسجد چمن بهر

بلوچستان ......... ٢٧ ربيع الاول ١٤٠٣ھ

**الجواب:** په شرط د صدق او ثبوت دا ضمان به په دې مستاجر (زید) باندې وي، يدل عليه ما في شرح المجلة ۴۳۱ المادة: ۷۷۹ فعل ما لا يرضى به المودع في حق الوديعة تعد(١) والله اعلم

## د کارخانو نوکری کول

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې عام طور سره د

---

١) (شرح المجلة لسليم رستم باز: ۴۳۱ المادة ۷۷۹ الفصل الثاني في احكام الوديعة)

قال العلامة الدكتور وهبة الزحيلي : تعتبر يد المستاجر علي العين المستاجرة في اجارة المنافع يد امانة فلا يضمن ما يتلف بيده الا بالتعدي او التقصير في الحفظ ، ويتقيد في الانتفاع بمقتضي العقد وما شرط فيه وما جري به العرف... قد تتغير صفة الامانة الي الضمان في الاحوال الآتية، اولا ترك الحفظ ثانيا الا تلاف والافساد ، ثالثا مخالفة المستاجر شرط المؤجر نصا او دلالة، المخالفة سبب لوجوب الضمان ، وللمخالفة صور وهي اما في الجنس او في القدر او في الصفة او في المكان اوفي الزمان.
(الفقه الاسلامي وادلته ۵:۳۸۵۷، ۳۸۵۰ المبحث الخامس ، ضمان العين المستاجرة)

کارخانه دارو کاروبار د بینکونو سره دې د دې کارخانه دارو په کارخانو کې نوکری کول او مزدوری کول او د دې خلقو د جوړو کړو څیزونو نه فائده اوچتول، د هغوی په مساجدو کې مونځ کول، د هغوی خیرات او صدقه اخستل جائز دی یا ناجز؟ بینواتوجروا

المستفتی: گل مست خان پېښور

**الجواب:** د کارخانو نوکری جائز ده (١) ځکه چې کومې پیسې نوکر او مزدورانو ته ورکولې شي نو په دې کې د سود کیدو احتمال وی هغه یقینا یا ظنا سود نه وی. (٢) وهوالموفق

## د یوې ادارې ملازم ته د رخصت ورکولو په صورت کښې د اعزاز په طور پیسې ورکول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې په یوه اداره کې ملازم دې څه اختیارات هم هغه ته حاصل دی د ادارې سربراه او اهل شوری خپل مینځ کې مشوره کولو سره دې سړی لره د ملازمت نه ختمول غواړی او اعزازی طور هغه ته پنځوس زره روپئ ورکوی آیا ذکر شوې پیسې د دې سړی دپاره حلال دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: فقیر الله مانسهره.... ٢ رمضان المبارک ١٤١٠ھ

---

(١) قال العلامة ابن عابدين: (قوله وكل انواع الكسب) اي انواعه المباحة بخلاف الكسب بالربا والعقود الفاسدة ونحو ذلك... فالمراد من قولهم كل انواع الكسب في الاباحة سواء انها بعد ان لم تكن بطريق محظور لايذم بعضها وان كان بعضها افضل من بعض. (ردالمحتار ٥:٣٢٨ كتاب الصيد)

(٢) قال العلامة بدرالدين العيني: والشبهة هي المعتبرة دون النازل عنها اي عن الشبهة لان شبهة الشبهة اذا اعتبرت ينسد باب العقود اذ لا يخلوا عن شبهة الشبهة فما دونها. (البناية في شرح الهداية ١٠:٣١٨ باب البيع الفاسد)

وفي الاشباه والنظائر: اليقين لا يزول بالشك. (الاشباه والنظائر ٥٦)

**الجواب**: د اهل حل وعقد دپاره دا رخصت کول او ملازم ته دا اعزازی پیسې ورکول جائز دی دا پیسې رشوت نه دې دا جبیره او اکرام دې (۱) **وهوالموفق**

**استاذ ته د تنخواه نه ورکولو په صورت کې د محکمې نه حق وصولول**

**سوال**: څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زه په ۱۹۷۹ء کې د بی ایډ کورس دپاره لاړم نو محکمې زما د چهټۍ درخواست مسترد کړو او وې ویل چې د دې درې واړو میاشتو دپاره یو درخواست ولیکه په دې باندې محکمې ما سره زیاتې وکړو، څکه چې د یو ټرېنډ استاذ کېدو سره د هغه تنخواه د حکومت په ذمه واجب الادا ده، نو پورته ذکر شوې موقف د شریعت په رڼا کې صحیح دې یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی**: توحید الله موضع صریح شبقدر فورټ چارسده... ۹ رجب ۱۴۰۱ھ

**الجواب**: که واقعی په تاسو باندې زیاتې شوې وی نو تاسو خپل حق په نورو طریقو سره هم حاصلولې شئ (۲) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة الدکتور وهبة الزحیلي: والهبة مشروعة مندوب الیها لقوله تعالی فان طبن لکم عن شيئ منه نفسا فکلوه هنیئا مریئاً... ولقوله ﷺ تهادوا تحابوا... وانعقد الاجماع علی استحباب الهبة بجمیع انواعها قال الله تعالی: وتعاونوا علی البر والتقوی.
(الفقه الاسلامي وادلته ۵:۳۹۸۱،۳۹۸۲ الفصل السادس، الهبة)

۲) قال العلامة الحصکفي: لیس لذي الحق ان یاخذ غیر جنس حقه وجوزه الشافعي وهو الاوسع. (الدرالمختار ۵:۳۰۰ کتاب الحظر والاباحة فروع، فصل في البیع)

وقال العلامة الدکتور وهبة الزحیلي: وقال الشافعیة لصاحب الحق استیفاء حقه بنفسه باي طریق سواء کان من جنس حقه ام من غیر جنسه... ووافق الحنفیة علی رأي الشافعیة فیما اذا کان الماخوذ من جنس حقه لا من غیره والمفتي به الیوم کما قال ابن عابدین جواز الاخذ من جنس الحق او من غیره.
(الفقه الاسلامي وادلته ۴:۲۸۵۸ المبحث الرابع: احکام الحق، استیفاء الحق)

## د حکومت د نوکرئ حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د حکومت آمدنی زیات ترد ټیکسونو نه حاصلیږی په دې وجه د دې متعلق ولیکئ چې د حکومت نوکری کول جائز دی یا نه؟ بینوا توجروا

**المستفتی:** گل مست خان پیښور

**الجواب:** د جمهور علماء کرامو په نزد د ټیکس مال حرام دې، لهٰذا د دې اخستل او په دې کې نوکر کیدل د هغوی په نزد ناجائز دی او د لعنت سبب دی.(۱) وهوالموفق

## په جعلی سند باندې د ملاؤ شوې ملازمت حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زه په دار العلوم اسلامیه دره آدم خیل کې سبق وایم اوس زمونږ په کور کې څه مشکلات پیدا شوې دی چې د هغې د وجې نه ما سبق پریښودلو. صحت هم د لوستلو اجازت نه راکوی، حافظه مې هم د حد نه زیاته کمزورې ده زما د سکول

---

(۱) في حاشية شرح الوقاية: قوله كالجبايات هي المصادرة وما ياخذ الظلمة قهرا وظلما وقال ابن عابدين الوظائف التي وضعها الفارس علي رعاياهم من الخياط والصباغ والحداد كل يوم اوشهر كذا فهو لايحل اخذه كذلک الوظائف السلطانية اليوم في بلادنا علينا المسماة به (ټیکس) لانهم ياخذونها حيث ما ذكرنا مسانهة والعذر بانهم يصرفون الي حوائجنا مردود لان خزائنهم معمورة تزيد كل يوم الي ما شاء الله تعاليٰ عاقبة امرها فلاحاجة الي اموال الناس ومثل ذلک المحصولات المتعددة الموضوعة علي التجار علي كل مار والمعصية كلها علي الآخذ والآمر وان تبعوا النصاري في هذه النهب والاخذ ومن يتبع اهوائهم فماله من الله من ولي ولا نصير.
(تكملة عمدة الرعاية حاشية الوقاية ۱۰۹ كتاب الكفالة)

تعلیم د مدل پورې دي که زه سند په پیسو واخلم او د سکول ماسټر جوړ شم نو آیا دا به د بنده دپاره جائز وي یا ناجائز؟ بینواتوجروا

المستفتي: محمد نورزاهد مارکیټ کوهاټ ... ۲۵ دسمبر ۱۹۸۵ء

**الجواب:** که تاسو د دې کار اهلیت لرئ نو ستاسو تنخواه به حرامه نه وي، جائز او حلاله به وي.(۱) خو دروغ او دهوکه باندې به غور کول غواړي (۲) وهوالموفق

## په سکول کې د اسلامیات د معلم په حیثیت سره د تنخواه اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی په سکول کې د اسلامیات د معلم په حیثیت سره تنخواه اخلی دا د هغه دپاره جائز ده یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتي: نامعلوم..... یکم اگست ۱۹۸۴ء

---

(۱) قال العلامة ابن نجیم : واما رکنها فهو الایجاب والقبول والارتباط بینهما اما شرط جوازها فثلاثة اشیاء: اجر معلوم وعین معلوم وبدل معلوم ومحاسنها دفع الحاجة بقلیل المنفعة واما حکمها فوقوع الملک في البدلین ساعة فساعة.

(البحر الرائق ۸:۳ کتاب الاجارة)

(۲) وفي المشکوة : عن سفیان بن اسد الحضرمي قال سمعت رسول الله ﷺ یقول کبرت خیانة ان تحدث اخاک حدیثا هو لک به مصدق وانت به کاذب.

(مشکوة المصابیح ۴۱۳ باب حفظ اللسان والغیبة)

وقال العلامة ابن عابدین: کل مقصود محمود یمکن التوصل الیه بالصدق والکذب جمیعا، فالکذب فیه حرام.

(ردالمحتار ۵:۳۰۳ من فروع کتاب الحظر والاباحة)

وقال الامام البخاري تعلیقا: قال النبي ﷺ الخدیعة في النار.

(الصحیح للامام البخاري ۱:۲۸۷ باب النجش)

**الجواب:** د دې ملازمت او تنخواه حرمت ثابت نه دې په دې کې هيڅ ګناه نشته (۱) وهوالموفق

## د قانون خلاف د ملازمت حاصلونکو د تنخواه حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې يو طالب العلم د وفاق المدارس د دويمې درجې امتحان پاس کړې دې په دې سند باندې طالب علم د اسلاميات ماستر لګيدلې دې هغه ډيوټۍ هم کولې شي خو يو مقامي عالم وائي چې دا طريقه صحيح نه ده اوس سوال دا دې چې د هغه تنخواه حلال ده که حرام؟ بينواتوجروا

المستفتي: خليل احمد عاشق کالونی کوهاټ.... ۱۹ مئی ۱۹۸۹ء

**الجواب:** داسې د قانون خلاف ملازمت حاصلونکی کله چې متعلقه خدمت پوره کولې شي نو د هغوی تنخواه حلاله ده (۲) خو دروغ ويل او دهوکه ورکول حرام امور دي (۳) وهوالموفق

---

(۱) في شرح التنوير علي هامش ردالمحتار: (والثاني) وهو الاجير (الخاص) ويسمي اجير وحد (وهو من يعمل لواحد عملا موقتا بالتخصيص ويستحق الاجر بتسليم نفسه في المدة وان لم يعمل كمن استوجر شهراً للخدمة.
(الدرالمختار علي هامش ردالمحتار ۵:۴۸ مبحث الاجير الخاص، كتاب الاجارة)

(۲) قال العلامة ابن نجيم: واما ركنها فهو الايجاب والقبول والارتباط بينهما اما شرط جوازها فثلاثة اشياء: اجر معلوم وعين معلوم وبدل معلوم ومحاسنها دفع الحاجة بقليل المنفعة واما حكمها فوقوع الملک في البدلين ساعة فساعة. (البحر الرائق ۸:۳ كتاب الاجارة)

(۳) وفي المشكوة: عن سفيان بن اسد الحضرمي... قال سمعت رسول الله ﷺ يقول كبرت خيانة ان تحدث اخاک حديثا هو لک به مصدق وانت به كاذب. (مشكوة المصابيح ۴۱۳ باب حفظ اللسان والغيبة)

...بقيه برصفحه آئنده...

## د امام د پاره د حج یا د تبلیغ د ورځو د تنخواه حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زه د یو جامع مسجد پیش امام یم یو مقتدی ما ته د خبر راکولو نه بغیر د حج دپاره زما په نوم باندې داخله اخستلې ده او هغه منظور شوې ده اوس مسئله دا تپوسل دی چې حج نه په تلو راتلو کې به څلویښت پنځوس ورځې لګې د دې ورځو تنخواه اخستل زما دپاره څنګه دی؟ د مسجد والو نه هم د چُټیانو اخستلو د مخکې نه رواج نشته زه په کال کې چله هم لګوم د هغې تنخواه هغوی راکوی بینواتوجروا

المستفتي: خلیل احمد عاشق کالونی کوهاټ ... ۱۸ مئی ۱۹۸۹ء

**الجواب:** که د چُټیانو د دې مسجد د کمیټۍ سره مطبوعه قانون نه وی نو د نورو لویو جامع مسجدونو په قوانین باندې فیصله وکړئ (۱) خو حج نفلی عبادت دې او د تبلیغی جماعت سره چله تیرول بدعت حسنه دې صرف خود

---

...بقیه ازحاشیه گذشته]

وقال العلامة ابن عابدين: كل مقصود محمود يمكن التوصل اليه بالصدق والكذب جميعا فالكذب فيه حرام. (ردالمحتار ۵:۳۰۳ من فروع كتاب الحظر والاباحة)

وقال الامام البخاري تعليقا: قال النبي ﷺ الخديعة في النار.

(الصحيح للامام البخاري ۱:۲۸۷ باب النجش)

۱) قال العلامة ابن عابدين: حيث كانت البطالة معروفة في يوم الثلاثاء والجمعة وفي رمضان والعيدين يحل الاخذ وكذا لو بطل في يوم غير معتاد لتحرير درس الا اذا نص الواقف علي تقييد الدفع باليوم الذي يدرس فيه كما قلنا. (ردالمحتار ۳:۴۱۶ كتاب الوقف)

وقال العلامة ابن نجيم: ومنها البطالة في المدارس كأيام الاعياد ويوم عاشوراء وشهر رمضان في درس الفقه لم ارها صريحة في ... [بقيه برصفحه آئنده

ساخته اصلاحی پروګرام دي نو دا فرق بې تمیزی ده وهو الموفق

## په اجاره کې د پیشګی رقم ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید خپل څلور کناله پټې عمر ته د دوه سوو روپو په حساب د کال په اجاره باندې ورکړی خو دوه زره روپۍ پیشګی ورته ورکوی آیا مذکوره اجاره شرعا جائز ده یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: مسافر شاه شبقدر چارسده... ۱۶ ذوالقعده ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** که دا دوه زره روپۍ پیشګی اجرت وی نو په دې کې هیڅ باک نشته (۱) او که په دې کې بعض اجرت او بعض قرض وی نو دا اجاره د دې شرط د وجې نه ناجائز ده، کما فی الهدایة ۳۰۱/۳ : **الاجارة تفسدها الشروط كما تفسد البيع لانه بمنزلته الا ترى انه عقد يقال ويفسخ** (۲) او که دا نورې پیسې کلاً یا بعضاً په طور د ګانې اخستلې شی نو په دې کې به تصرف ممنوع وی. (۳) وهوالموفق

---

...بقيه ازحاشيه گذشته ] كلامهم والمسألة علي وجهين فان كانت مشروطة لم يسقط من المعلوم شيئ والا فينبغي ان يلحق ببطالة القاضي وقد اختلفوا في اخذ القاضي ما رتب له من بيت المال في يوم البطالة فقال في المحيط انه يأخذ في يوم البطالة لانه يستريح لليوم الثاني وقيل لايأخذ (الاشباه والنظائر مع شرحه للحموي ۱:۳۰۰ القاعدة السادسة،العادة محكمة)

۱ ) في شرح المجلة : تلزم الاجرة بالتعجيل يعني لو سلم المستاجر الاجرة نقدا ملكها الآجر وليس للمستاجر استردادها. (شرح المجلة ۲:۵۵۱ المادة ۴۶۷ الفصل الثاني في بيان المسائل المتعلقه بسبب لزوم الاجرة)

۲ ) (الهداية ۳:۳۰۱ باب الاجارة الفاسدة)

۳ ) في شرح المجلة : وليس للمرتهن الانتفاع بالرهن بدون اذن الراهن لا باستخدام ولا سكني ولا يلبس ولا بأخذ ثمرة ولا لبن ولا باجارة ولا باعارة. ...[بقيه برصفحه آئنده

## په اجاره کې په مالک باندې د عشر د واجب کولو د پاره د نادر صورت رعایت ضروری نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د ځمکې اجاره لس زره روپئ وی او په کرونده باندې خرچ پنځه زره روپئ وی چې د هغې مجموعه پنځلس زره وی د فصل نه آمدن دولس زره وی او اووۀ نیم سوه روپئ آبیانه وی، اوس به د هغه د عشر څه معامله وی حال دا چې اجاره دار په تاوان کې دې؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: حضرت مولانا سید گوهر شاه صاحب مهتمم دار العلوم اسلامیه چارسده...... یکم ربیع الاول ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** د داسې نادر صورت رعایت ضروری نه دې کنه نو د مالک توله اجاره به په عشر کې لاړه شی. (۱) **وهوالموفق**

## په اجاره کې به عشر په موجر باندې وی یا مستاجر باندې؟

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید خپله مزروعه ځمکه عمر مستاجر ته په نقد زر روپو باندې د یو کال د پاره، یعنی د خزان او د سپرلی د فصل دپاره ورکړی، او زید عمر ته وائی چې د اوچې او اوبه هر دواړو فصلونو مالیه به هم ته حکومت ته ورکوې او زکاة د ما خرج من الارض عشر به هم ستا په ذمه وی په دې صورت کې به زید چې د ځمکې مالک دې د ځمکې د زکاة نه بری الذمه شی یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: میاں مسرت شاه حکمت آباد تحصیل چارسده... ۳ جمادی الثانی ۱۳۸۹ھ

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] (شرح المجلة ۱۹۴، ۱۹۳:۳ المادة ۷۵۰ الفصل الثاني في تصرف الراهن والمرتهن في الرهن)

(۱) قال العلامة ابن عابدين: قلت ولكن في زماننا عامة الاوقاف من القري والمزارع لرضاالمستأجر غراماتها ومؤنها يستأجرها بدون اجر المثل بحيث لا تفي الاجرة ولا اضعافها بالعشر او خراج المقاسمة فلا ينبغي العدول عن الافتاء بقولهما.

(شامي ۲:۶۰ قبيل مطلب هل يجب العشر علي المزارعين في الاراضي السلطانية)

**الجواب:** چونکې مستاجر ته غالبا د اجرت نه څو چنده زیات بچت کیږی لهذا عشر به په مستاجر باندې واجب وی اودا اشتراط به مفسد د عقد نه وی، وفی الدرالمختار: والعشر علی الموجر کخراج موظف وقالا علی المستأجر وفی الحاوی وبقولهما نأخذ وقال العلامة ابن عابدین فی ردالمحتار بعد ذکر جماعة افتوا بقول الامام، قلت لکن فی زماننا عامة الاوقاف من القری والمزارع لرضا المستأجر غراماتها ومؤنها یستأجرها بدون اجر المثل بحیث لا تفی الاجرة ولا اضعافها بالعشر اوخراج المقاسمة فلاینبغی العدول عن الافتاء بقولهما الخ (۲:۷۵)(۱) د دې عبارت نه معلومیږی کله چې حاصلات او بچت په نسبت د اجرت څو چنده زیات وی نو هلته د صاحبین په مذهب باندې فتوی ورکول ډیر مناسب دی. **فقط وهوالموفق**

## د دکان یا کور پټکې

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې نن صبا دکان یا کور چې په کرایه باندې ورکولې شی نو د کرایه دار نه پټکې اخستلې شی کوم چې یو جبری قرضه یا جبری امانت دې د دکان یا کور مالک په هغې باندې تجارت کولو سره بنه ګټه کوی د دې شرعی حکم څه دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** ډاکټر غلام فرید شفاخانه حیوانات پېښور ..... ۲۳ مئی ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** که دا پټکی د کرایه معجل نوم وی نو په دې کې څه باک نشته.(۲) اوکه د قرض یا امانت نوم وی اوپه کرایه باندې ورکونکی دطرف نه دا ضروری وی، شرط وی نودامعامله اجاره فاسده اوناجائزده. (۱) **وهوالموفق**

---

۱) (ردالمحتار ۲:۶۰ قبیل مطلب هل یجب العشر علي المزارعین في الاراضي السلطانیة)

۲) في شرح المجلة: تلزم الاجرة بشرط التعجیل یعني لو شرط کون الاجرة معجلة یلزم المستأجر تسلیمها ان کان عقد الاجارة واردا علي الاعیان ...[بقیه بر صفحه آئنده...

## په مقرره پیسو یا د پیداوار په حصه باندې ځمکې ته اوبه ورکول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې ۱: زمونږ په علاقه کې د ټیوب ویل مالک ځمکې ته د دریمې حصې پیداوار په بدله کې اوبه ورکوی آیا دا جائز ده یا ناجائز؟ ۲: په بل صورت کې د ټیوب ویل مالک د ځمکې د مالك نه شل روپۍ د یو ساعت اخلی د دواړو صورتونو وضاحت وکړئ؟ بینواتوجروا

المستفتی: اورنگ زیب حقانی متعلم حقانیه.... ۱۱ دسمبر ۱۹۸۵ء

**الجواب:** صورة اولی ناجائز(۱) اودویم صورت جائزاواجاره ده.(۲) والله اعلم

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] او علي العمل.
(شرح المجلة ۲:۵۵۱ المادة ۴۶۸ الباب الثالث، کتاب الاجارة)

۱ ﴾ قال العلامة المرغیناني: الاجارة تفسدها الشروط کما تفسد البیع لانه بمنزلته.
(هدایة ۳:۳۰۱ باب الاجارة الفاسدة)

وقال الدکتور وهبة الزحیلي: قرار مجمع الفقه الاسلامي في جدة رقم ۶ لعام ۱۴۰۸ه الموافق ۱۹۸۸م: اولا اذا اتفق المالک والمستأجر علي ان یدفع المستأجر للمالک مبلغا مقطوعا زائدا عن الاجرة الدوریة (وهو ما یسمي في بعض البلاد خلوا) فلا مانع شرعا من دفع هذا المبلغ المقطوع علي ان یعد جزأ من اجرة المدة المتفق علیها.

وایضا: قال في الصفحة السابقة: ویعد الماخوذ جزأ معجلا من الاجرة المشروطة في العقد. (الفقه الاسلامي وادلته ۳۸۲۶، ۵:۳۸۲۴ عقد الایجار، مقابل الخلو)

۲ ﴾ قال العلامة الحصکفي: (فکل ما افسد البیع) مما مر (یفسدها) کجهالة ماجور او اجرة او مدة او عمل. (درمختار ۵:۳۲ باب الاجارة الفاسدة)

وفي شرح المجلة: کل ما افسد البیع مما مر في البیوع یفسد الاجارة کجهالة ماجور واجرة او مدة... ویفسدها ایضا جعل الاجرة بعض ما یخرج من عمله کان یدفع غزلا لآخر لینسجه بنصفه... والاصل في ذلک نهیه ﷺ عن قفیز الطحان.
(شرح المجلة ۲:۵۳۸ المادة ۴۶۰ الفصل الرابع في فساد الاجارة)

۳ ﴾ وفي الهندیة: واما شرائط الصحة فمنها ان تکون الاجرة معلومة.[بقیه برصفحه آئنده

## د قرض په عوض کې کور په اجاره باندې ورکول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی چاته پیسې قرض ورکړې قرض داری پیسو والا ته کور د وثیقه په طور ورکړو او کرایه هم د دې مالک مکان دپاره مقرر کړې شوه آیا دا جائز ده یا ناجائز؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولانا سید گوهر شاه حقانی مهتمم دار العلوم اسلامیه

چارسده... یکم مئی ۱۹۸٤ء

**الجواب:** په صورۃ مسئوله کې به ګانه کالعدم متصور کولې شی او دا اجاره به صحیح وی په دې شرط چې دا اجرت د هغه قرض د وجې نه کم نه وی مقرر شوې، اما الاول فلما في الهندية ٥: ٤٩٠،وكذلك لو استأجره المرتهن صحت الاجارة وبطل الرهن(١) واما الثاني فللاصل المشهور كل قرض جر نفعاً فهوربا(٢). وهوالموفق

---

...بقيه ازحاشيه گذشته]

(هندية ٤١١:٤ الباب الاول في تفسير الاجارة)

وقال العلامة ابن البزاز الكردري: ولا يجوز عقدها حتي يعلم البدل والمنفعة وبيان المنفعة باحد ثلاث بيان الوقت وهو الاجل وبيان العمل والمكان.

(الفتاوي البزازية علي هامش الهندية ١١:٥ كتاب الاجارات، الاول في المقدمة)

٣) (فتاوي هندية ٤٦٥:٥ الباب الثامن في تصرف الراهن اوالمرتهن في المرهون)

وقال العلامة الحصكفي: (بخلاف الاجارة... من مرتهن او من اجنبي اذا باشرها احدهما باذن الآخر) حيث يخرج عن الرهن ثم لا يعود الا بعقد مبتدإ لانها عقود لازمة. (درمختار ٢٦٤:٥ باب التصرف في الرهن)

٢) قال العلامة ابن عابدين: (قوله كل قرض جر نفعا حرام) اي اذا كان مشروطا. (ردالمحتار ١٩٤:٤ مطلب قوله كل قرض جر نفعا حرام)

## بهر ملک ته د ملازمت دپاره تلل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې بهر ملک ته د ملازمت دپاره تلل څنګه دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد علی رائے ونڈ لاهور... ۳۰ جون ۱۹۹۵ء

**الجواب:** نه ممنوع دی او نه مطلوب دی البته د خیرالقرون نه ترننه پورې معمول دې(۱). وهوالموفق

## په نتیجه بودلو باندې اجرت اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې بعض دکانداران د میترک نتیجه (د کتاب په شکل کښې) راوړی او په شل یا دیرش روپو کې هریو ته نتیجه ښائی که کامیاب وی یاناکام، آیادا پیسې جائزدی؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم... ۲۳ اکتوبر ۱۹۸۸ء

**الجواب:** دا اجاره ناجائز ده، کما فی شرح التنویر علی هامش رد المحتار ۲۹/۵ اوکتابا ولوشعرا لیقراه اومصحفا شرح وهبانیة(۲) وهوالموفق

---

۱) قال العلامة الکاساني: وعلي ذلک جرت العادة من تجار الامصار انهم یدخلون دارالحرب للتجارة من غیر ظهور الرد والانکار علیهم الا ان الترک افضل لانهم یستخفون بالمسلمین ویدعونهم الي ما هو علیه فکان الکف والامساک عن الدخول من باب صیانة النفس عن الهوان والدین عن الزوال فکان اولي.
(بدائع الصنائع ۶:۶۵ بیان ما یکره حمله الي دارالحرب ومالایکره)

۲) في الدرالمختار: (لا) تصح (اجارة الدابة لاجل ان یربطها علي باب داره) وکذا لو استأجر بیتا لیصلي فیه او طیبا لیشمه او کتابا ولو شعرا لیقرأه او مصحفا شرح وهبانیة.
(درمختار ۲۴،۲۳:۵ باب مایجوز من الاجارة وما یکون خلافا فیها)
وفي الهندیة: ولو استأجر کتبا لیقرأ فیها شعرا کان او فقها... [بقیه برصفحه آئنده

## رشوت ورکولو سره د ملازم د تنخواه حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې بعض وخت د يو سړی نمبرې کمې وی خو رشوت ورکولو سره ورته نوکری ملاؤ شی او بعض وخت ئې نمبرې ښه وی خو د رشوت نه ورکولو په وجه باندې د نوکرئ نه محروم وی، اوس څه وکړی صرف په قابليت باندې هم کار نه کيږی، که په رشوت باندې ئې نوکری حاصله کړه نو آيا د ټول عمر ګټه به ئې حرامه وی يا نه؟ بينواتوجروا

المستفتی: لطف الرحمٰن ساکن ميرو کلے شبقدر چارسده.... ۱۱۳ کتوبر ۹۰ء

**الجواب:** کله چې ناجائز طور ملازمت حاصل کړې شی مثلاً په رشوت ورکولو سره نو دا کار ناجائز دې [1] خو تنخواه به حلاله وی په دې شرط چې کله د متعلقه ډيوټئ پوره کولو اهليت موجود وی. [2] والله اعلم

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] او غير ذلک لا يجوز ولا اجرله وان قرأ وکذلک اجارة المصحف.

(فتاوی عالمگيرية ۴۴۹:۴ الباب السادس في مسائل الشيوع في الاجارة)

۱ ) قال العلامة ابن عابدينؒ: وفي الفتح ثم الرشوة اربعة اقسام: منها ما هو حرام علي الآخذ والمعطي وهو الرشوة علي تقليد القضاء والامارة...الثالث اخذ المال ليسوي امره عند السلطان دفعا للضرر او جلبا للنفع وهو حرام علي الآخذ فقط.

(شامي ۳۳۸:۴ مطلب في الکلام علي الرشوة والهدية)

۲ ) قال العلامة ابن نجيم: واما رکنها فهو الايجاب والقبول والارتباط بينهما واما شرط جوازها فثلاثة اشياء اجر معلوم وعين معلوم وبدل معلوم... واما حکمها فوقوع الملک في البدلين ساعة فساعة. (بحرالرائق ۸:۳ کتاب الاجارة)

## که د ځمکې په اجرت کې غله مقرر وي نو آیا د غلې په ځائ د هغې د قیمت ورکولو اجازت شته؟

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په صوبه سرحد کې په بعض ځایونو کې دا رواج دې چې موجر د مستاجر سره څه شرح (یعنی د ځمکې اجرت د غلې څه مقدار فی کنال) مقرر کړی نو دا جائز دې یا نه؟ که جائز وی نو موجر د هغوی نه د غلې قیمت اخستلې شي یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** سید شبیر احمد کاکاخیل اسسټنټ انجنیر سی این ایس راولپنډی... ۲۵ ربیع الثانی ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** د اجارې عوض د پیسو په ځای غله مقرر کول صحیح دی کله چې د غلې تقید هم د دې ځمکې د حاصلاتو نه نۀ وی شوې. **لما فی الکاملیة ۱۹۱:** سئلت فیمن استأجر ارضا بیضا للزراعة بکذا وکذا قفیزا من الغلة هل یجوز ذلك قلت نعم، یجوز اذا کانت الاجرة مشارا الیها او موصوفة فی ذمته ولا تکون من الغلة التی تخرج من زرع الارض المستأجرة کذا فی فتاوی قارئ الهدایة([1]) او د اجارې د عوض (غلې) په بدل کې د حال د نرخ مطابق پیسې اخستل هم جائز دی. لحدیث ابی داؤد والنسائی: عن ابن عمر کنت ابیع الابل بالنقیع بالدنانیر فآخذ مکانها الدراهم وابیع بالدراهم فآخذ مکانها الدنانیر فاتیت النبی ﷺ.... فقال لا بأس ان تاخذها بسعر یومها (مشکوٰة ۲۶۸)([2]). وهوالموفق

## اجاره بشرط الاقراض او د انتفاع بالمرهون حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې که زید عمر ته ووائی چې ماته یو کنال ځمکه، په دوه زره روپئ باندې ګاڼه راکړه او عمر ووائی چې د یو کنال اجرت رواجی سل روپئ دې نو زه به تاسو ته سل روپئ درکړم او زه به د دې کنال ځمکې نه فائده اخلم خو یقینی خبره دا ده چې که

---

[1] (فتاوی کاملیة ۱۹۱:۲ کتاب الاجارة)

[2] (مشکوٰة المصابیح ۲۴۸ باب المنهي عنها من البیوع)

زید عمر ته دوه زره روپئ نه ورکوی اګر چې رواجی اجرت سل روپئ دي نو په صورت مذکوره کې د زید په ګانې باندې د قبضې حق ثابت شو او هغه نفع بالاجرة اخلی نو آیا صورت مذکور د «کل قرض جر نفعاً فهو ربا الخ» د لاندې راځی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتي: حضرت مولانا فضل مولی مدرس دار العلوم هذا ... ۲۷ ربیع الاول ۱٤۰۲هـ

**الجواب:** دا معامله اجارة علی شرط الاقراض ده او په دې شرط کې د موجر نفع موجود ده، پس د قواعدو په رڼا کې دا اجاره د بیع په شان ناجائز ده، کما فی الهدایة ۳/۳۰۱. الاجارة تفسدها الشروط کما تفسد البیع لانه بمنزلته الا تری انه عقد یقال ویفسخ (۱). په ظاهر کې دا د انتفاع بالمرهون صورت دې او انتفاع بالمرهون جائز نه ده. (سیف) وهوالموفق

## په تراویح کې په ختم قرآن باندې د اجرت ورکولو او اخستلو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په تراویح کښې په ختم قرآن باندې اجرت اخستل د علماء کرامو ترمینځه مختلف فیه ده، د دې په باره کې ډیر شکی یم. د دې د حقیقت نه خبرولو سره زما زړه او ذهن ته د سکون اسباب برابر کړئ. بینواتوجروا

سائل ... خادم العلماء حافظ بشیر حسن ایبټ آباد

**الجواب:** واضحه دې وی چې د مفتی به قول په بناء په امامت باندې اجرت اخستل جائز دی (۲) او په تلاوت مجرده باندې اجرت اخستل مختلف فیه

---

۱ ﴿ (الهدایة ۳:۳۰۱ باب الاجارة الفاسدة)

وفي الهندية: الاجارة تفسدها الشروط التي لا يقتضيها العقد كما اذا شرط علي الاجير الخاص ضمان ما تلف بفعله او بغير فعله.

(فتاوي هندية ٤:٤٤۲ الفصل الثاني فيما يفسد العقد فيه لمكان الشرط)

۲ ﴿ قال العلامة الحصكفي: ويفتي اليوم بصحتها لتعليم القران والفقه والامامة؛

(الدر المختار ٥:۳۸ باب الاجارة الفاسدة)

دی. بحر (۱)، الاشباه والنظائر (۲) او هندیة (۳) کې جواز مصرح دې او په اکثر فتاوی کې حرمت ته ترجیح ورکړې شوې ده. (۴)

او دا دې هم واضحه وی چې څنګه د اجرت دوه قسمونه دی مشروط او معروف، دغه شان د اکرام هم دوه قسمونه دی مشروط او معروف.

**کمافی حدیث انس رضی الله تعالی عنه: ان رجلا من کلاب سئل النبی صلی الله علیه وسلم عن عسب الفحل فنهاه فقال یارسول الله انا نطرق الفحل فنکرم فرخص له فی الکرامة (۵).**

دا دې هم واضحه وی چې معتبر د دافع نیت او قول دې نه د آخذ. **کمافی التکملة** ۳۵۹/۱ (۶) پس د دې مقدماتو په بناء باندې په تراویح کې په ختم کولو او حافظ وغیره ته په پیسو ورکولو کې هیڅ باک نشته. څکه چې اول خو دا پیسې وغیره د اکرام او شکرانې په طور ورکولې شی د چنده ورکونکو هم دا نیت وی.

---

۱) قال العلامة ابن نجیم: فان المفتي به جواز الاخذ علي القراءة.
(البحر الرائق ۵:۲۲۸ باب الوقف)

۲) (الاشباه والنظائر مع شرحه للحموي ۲:۲۲۹ کتاب الوقف)

۳) (فتاوي هندية ۴:۴۴۹ کتاب الاجارة، الباب السادس في مسائل الشيوع، مطلب الاستيجار علي الطاعات)

۴) قال العلامة الشامي: ان القرآن بالاجرة لا يستحق الثواب لا للميت ولا للقاري وقال العيني في شرح الهداية ويمنع القاري للدنيا والاخذ والمعطي أثمان.
(ردالمحتار ۵:۳۹ باب الاجارة الفاسدة،مطلب تحرير مهم في عدم جواز الاستيجار علي التلاوة)

۵) (سنن الترمذي ۱:۱۵۳ باب ماجاء في كراهية عسب الفحل)

۶) وفي التكملة: القول للدافع لانه اعلم بجهة الدفع.
(تكملة ردالمحتار ۱:۳۹۱ مطلب في واقعة الفتوي، فروع)

دویم داچې که داپیسې اجرت هم ومنلې شي نو دا اجرت علی الامامة الخاصة دې کوم چې جائز دې، دلیل په دې باندې دا دې چې که دا حافظ په دې مسجد کې د تراویح نه خارج ختم وکړي نو دې د پیسو وغیره مستحق نه شي ګڼلې، نو معلومه شوه چې دا پیسې وغیره صرف د تلاوت معاوضه نه ده.

بله دا چې که دا حافظ په تراویح کې امام جوړیدو سره په (الم ترکیف) باندې تراویح وکړي نو په دې صورت کې هم مستحق نه شي ګڼلې نو معلومه شوه چې دا صرف د امامت اجرت نه دې خو کله چې په تراویح کې ختم قرآن واوروي نو هغه مستحق شمار کولې شي نو د دې نه معلومه شوه چې دا اجرت علی الامامة الخاصة دې. کوم چې جائز دې لکه چې که یو قوم له د فجر یا د جمعې امام مقرر کړي او دا شرط ولګوي چې (الم تنزیل) سورة دهر، سورة جمعة او منافقون وغیره به لوستل وی. نو دا یو صحیح غرض دې په دې سره په اجرت اخستلو کې هیڅ حرمت نه پیدا کیږي. (۱) چونکې دا مسئله زمونږ د اکابرو ترمینځه مختلف فیه ده لهذا په دې کې د نورو لیکلو نه معذور یم. فتأمل فی حدیث الترمذی فانه سیف صارم علی عنق کل شاتم. وهوالموفق

---

۱ ﴾ وفي المنهاج : واما ما يعطي الحفاظ في رمضان عند ختم القرآن فالحق انه جائز لانها هدية معروفة ليست بأجرة ويشهد له حديث الترمذي عن انس رضي الله تعالي عنه ان رجلا من كلاب سأل النبي ﷺ عن عسب الفحل فنهاه فقال يا رسول الله انا نطرق الفحل فنكرم فرخص له في الكرامة والاعتبار لنية الدافع دون الآخذ فافهم ولو سلم انه اجرة فلا حرج فيه ايضا لانها ليست عوض التلاوة البحتة بل هي عوض الامامة المسنونة المخصوصة ولا ضير في اخذ الاجرة علي الامامة المقيدة بمكان او زمان او قراء ة سورة وسور هذا.

(منهاج السنن شرح جامع السنن ۲:۹۰ باب كراهية ان يأخذ المؤذن علي الاذان الاجر)

## په خانداني منصوبه بندئ کې ملازمت کول

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په خانداني منصوبه بندئ کې ملازمت کول جائز دي یا ناجائز؟ بینواتوجروا

المستفتي: عبدالقدوس... کیمل پور

**الجواب:** چونکې د دې محکمې بهبودیانې د هاتهي غابښونه دي، د ډیرو مفاسدو دپاره منتج دي په دې وجه په دې محکمه کې ملازمت کول د مذهبي او قومي غیرت خلاف ده.(۱) وهوالموفق

## په امامت باندې د اجرت اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په امامت باندې اجرت اخستل جائز دي یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتي: عبدالخالق، سکنه خانپور ضلع دیر

ملاکنډ ډویژن... ۲۰ رمضان المبارک ۱۴۱۰ھ

**الجواب:** په امامت باندې اجرت اخستل که پنځه وخته وي یا صرف تراویح وغیره، بیشکه او بې شبهې جائز دې (۲) وهوالموفق

## د ایصال ثواب او دم په طور په ختم قرآن باندې اجرت اخستل

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام په ختم قرآن باندې د اجرت اخستلو په باره

---

۱) قال العلامة الدكتور وهبة الزحيلي :سد الذرائع اصل من اصول الشريعة الاسلامية... سد الذرائع لا يقتصر علي مواضع الاشتباه والاحتياط وانما يشمل كل ما من شأنه التوصل به الي الحرام... وضابط منع الذريعة ان تكون من شأنها الافضاء الي المفسدة لا محالة (قطعاً) او كثيرا او ان تكون مفسدة الفعل ارجح مما قد يترتب علي الوسيلة من المصلحة.

(الفقه الاسلامي وادلته ۷:۵۲۵۸ بشأن سد الذرائع)

۲) قال العلامة الحصكفي رحمه الله "لا تصح الاجارة لاجل الطاعات مثل الاذان والحج والامامة وتعليم القرآن والفقه و يفتي اليوم بصحتها لتعليم القرآن والفقه والأمامة والاذان.

(الدر المختار ۵:۳۸ باب الاجارة الفاسدة)

کله چې اجرت معین وی یا غیر معین وی، د مریض د شفاء د خاطره وی یا د مړی د دفن کولو نه پس کړې شوې وی، یعنی مړی ته د ایصال ثواب دپاره کړې شوې وی، په دواړو شقونو کې په جدا جدا تفصیل سره د جواز او عدم جواز د ټولو صورتونو وضاحت وکړئ؟ والسلام

المستفتی: میاں خان صاحب جان، کاکاخیل ... ۱۳ جون ۱۹۷۰ء

**الجواب:** ۱: قرآن کریم لره د دم په طور لوستلو باندې مال اخستل جائز دی که اجرت د مخکې نه مقرر کړې شوې وی او که نه وی. یدل علیه مارواه البخاری مرفوعا: ان احق ما اخذتم علیه اجرًا کتاب الله(۱) وفی رد المحتار ۵:۴۸: وما استدل به بعض المحشیین علی الجواز بحدیث البخاری فی اللدیغ فهو خطاء لان المتقدمین المانعین الاستیجار مطلقاً جوزوا الرقیة بالاجرة ولو بالقرآن کما ذکره الطحاوی(۲) او کله چې دمخکې نه معین نه وی نو دا هم جائز ده ځکه چې دا اجاره فاسده نه ده. بلکې په طریق د جعل او په طریق د مروت ورکولې شی. یدل علیه ما رواه احمد وابو داؤد فی حدیث رقیة المعتوه ''فاعطونی جعلاً فقلت لا حتی اسئل رسول الله ﷺ فقال کل، فلعمری لمن اکل برقیة باطل لقد اکلت برقیة حق ''(۳)

نو په دې صورت کې مال د مخکې نه نهٔ وو متعین شوې. خو رسول الله ﷺ د دې تردید اونه کړو بلکه تقریر ئې اوکړو.

د ایصال ثواب په طور کله چې قرآن اولوستلې شی نو په هغې باندې اجرت اخستل مختلف فیه دی. د علامه شامي وغیره رائې د عدم جواز ده.

وفی رد المحتار ۵:۴۷: قال العینی فی شرح الهدایة: ویمنع القاری للدنیا والآخذ والمعطی آثمان فالحاصل ان ما شاع فی زماننا من قرآة الاجزاء

۱ ) (الصحیح البخاري ۳۰۴:۱ باب مایعطي في الرقیة)

۲ ) (ردالمحتار ۵:۳۹ باب الاجارة الفاسدة 'مطلب تحریر مهم في عدم جواز الاستیجار علي التلاوة)

۳ ) سنن أبي داود ۲:۵۴۴ باب کیف الرقي)

بالاجرة لا يجوز لان فيه الامر بالقرأة واعطاء الثواب للآمر والقرأة لاجل المال فاذا لم يكن للقارى ثواب لعدم النية الصحيحة فاين يصل الثواب الى المستأجر ولولا الاجرة ما قرء احد لاحد فى هذا الزمان بل جعلوا القرآن العظيم مكسبا ووسيلة الى جمع الدنيا انا لله وانا اليه راجعون. (۱) او د بعض فتاوی نه جواز معلومیږی وفى الهندية۴: ۴۶۱ واختلفوا فى الاستئجار على قراءة القرآن على القبرمدة معلومة قال بعضهم لا يجوز وقال بعضهم يجوز وهو المختار وكذا فى السراج الوهاج(۲) د دې نه معلومه شوه چې د متاخرينو په نزد په دې کې اختلاف دې اګر چې په تعليم وغيره باندې اتفاق دې فما قال صاحب البحر۵: ۲۲۸: ان المفتى به جواز الأخذ على القراءة (۳) محمول على الظاهر مما قاله الرملى والشامى ان المراد منه جواز الأخذ على تعليم القراءة(۴) پس احتياط په نه اخستلو کې دې او په اخستونکو باندې سخت انکار نه دی کول پکار. فقط، (وصرح الشاه عبدالعزيز فى فتاواه بان الاعطاء تصدقا صلة جائز فليراجع(۵)). وهوالموفق

---

۱ ) رد المحتار ۵: ۳۹ مطلب تحرير مهم في عدم جواز الاستيجار علي التلاوة )

۲ ) (فتاوي عالمگيرية ۴: ۴۴۹ كتاب الاجارة، الاستيجار علي الطاعات )

۳ ) (البحر الرائق ۵: ۲۲۸ كتاب الوقف )

۴ ) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله "وقد رده الشيخ خير الدين الرملي في حاشية البحر في كتاب الوقف حيث قال اقول المفتي به جواز الاخذ استحسانا علي تعليم القر آن لا علي القراءة المجردة. (ردالمحتار ۵: ۳۹ باب الاجارة الفاسدة)

۵ ) قال العلامة الشاه عبدالعزيز "دريم صورت دا دې چې يو کس خالص د الله د پاره د خپل تلاوت ثواب بل چاته اوبخښي يا هغه بل کس ته د ثواب رسولو په غرض سره اووائي او د عوض اخستلو خيال دده په زړه کې بالکل تير نه شي او دغه بل سړې ددې لوستلو په عوض کې د لوستلو نه وروسته يا د لوستلو په مينځ کې، لوستونکي ته څه ورکړي يا بل څه احسان ورسره اوکړي ....... دا صورت بې شکه چې جائز دې بلکه مستحب دې ځکه چه د احسان په بدله کې احسان کول جائز دی (فتاوي عزيزيه ۴۹۰، عبادات واعمال کو اجرت پہ دینے کا حکم)

## د خوشحالئ دپاره په ختم القرآن باندې د خوراک کولو او د اجرت اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د خوشحالئ دپاره ختم القرآن کولې شي په هغې باندې خوراک یا پیسې اخستل جائز دي یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتي: مولانا فضل خالق... ۲۶ اگست ۱۹۷۵ء

**الجواب:** چونکې دا خوراک د اکرام او اعزاز (یعنی شکرانې) په طور ورکولې شي. لهذا د دې په اخستلو کې هیڅ باک نشته

یدل علیه حدیث الترمذی "ان رجلا من کلاب سئل النبی ﷺ عن عسب الفحل فنهاه فقال الرجل انا نطرق الفحل فنکرم فرخص له فی الکرامة(اوکما قال النبی ﷺ). (۱)وهوالموفق

## د استشفاء او دنیاوی حاجتونو دپاره په ختم القرآن باندې اجرت اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د بیمارئ نه د جوړیدو دپاره په ختم القرآن باندې اجرت اخستل جائز دي یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتي: عبدالودود خاص مقام چارسده

**الجواب:** د قرآن کریم تلاوت کله چې د استشفاء دپاره وي نو په هغې باندې اجرت اخستل جائز دي، لحدیث رواه البخاری وغیره: ان أحق ماأخذتم علیه اجرًاکتاب الله تعالی (۲)اوکما قال ﷺ وقال العینی فی شرح البخاری ونقله(جوازاخذالأجرة)القرطبی عن أبی حنیفة فی الرقیة،(۳)

---

۱) (سنن الترمذي ۳۷۲:۱ باب ماجاء في کراهیة عسب الفحل)

۲) (الصحیح البخاري ۳۰۴:۱ باب مایعطي في الرقیة)

۳) (عمدة القاري ۹۵:۱۲ باب ما یعطي في الرقیة)

او هم دغه شان د نورو دنیاوي حاجتونو دپاره په تلاوت باندې اجرت اخستل به هم جائز وي ځکه چې دلته ایصال ثواب مقصود نه دې وصرح به الشاه عبدالعزيز في الفتاوى العزيزية(۱) وهوالموفق

## د ګجرانو نه قلنګ اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې آیا د ګجرانو نه د غرونو قلنګ اخستل جائز دی؟ بینواتوجروا

**المستفتی:** امیر رحمٰن ضلع سوات.... ۲۹ رمضان المبارک ۱۴۱۰ھ

**الجواب:** د ګجرانو نه قلنګ اخستل جائز دی (۲) وهوالموفق

---

۱) قال العلامة الشاه عبدالعزیز رحمه الله: پنځم صورت دادې چه څوک قرآن شریف اووائی او دهغه نیت د عبادت نه وی بلکه صرف دې خیال سره ئې اووائی چه قرآن شریف وئیل مباح دی اوپه دې باندې اجرت واخلی. مثلاً دم ئې کړی یا ئې اولیکی او تعویذ ورکړی یا د قرآن شریف بعضې سورتونه په دې غرض سره اووائی چه څه خاص دنیوی مطلب حاصل شی........ دا هم بغیر د کراهتہ جائز دی او همدا ددې حدیث نه مراد دی ان احق ما اتخذتم علیه اجرا کتاب الله''.

(فتاوي عزیزیه ۴۹۱ عبادات واعمال کواجرت پر دینے کا حکم)

۲) وفي الهندية :ولا یجوز بیع الکلاء واجارته وان کان في أرض مملوکة.

(فتاوي هندیة ۳:۱۰۹ الفصل الثاني في بیع الثمار الخ)

وقال العلامة الحصکفي :وفسد بیع المراعي أي الکلاء واجارتها اما بطلان بیعها فلعدم الملک لحدیث : الناس شرکاء في ثلاث في الماء والکلاء والنار واما بطلان اجارتها فلأنها علي استهلاک عین. (الدر المختار ۴:۱۲۳ مطلب في البیع الفاسد)

وفي دررالحکام ''لکل أحد أن یطعم حیوانه الکلاء النابت في المحال التي لاصاحب لها کالجبال والأراضي الموات ولیس لأحد منعه لأن الکلاء مباح.

(دررالحکام ۱۰:۲۸۰ المادة ۱۲۵۶)

## د میاشتې د کرایه نه علاوه پیشګی اجرت اخستل جائز دی

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د زید په یو بازار کې ډیر دکانونه دی. کله چې یو دکان په کرایه باندې ورکوی اول د هغه نه زر روپۍ پیشګی اخلی، دا زر روپۍ نه خو په کرایه کې شمارلې شی، او نه داکله واپس کولې شی. داپیسې د زید دپاره اخستل جائز دی یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: نامعلوم

**الجواب:** په ظاهر کې دا پیسې اجرت معجلة دې (۱) او د دې د اجرت مرتبه سره څه تعارض نشته. **هذاماعندي ولعل عندغيري احسن منه.**

## د ثالثانو په فیصلې باندې د اجرت اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د دوه کسانو په ځمکه باندې جهګړه راغله، طرفین د جرګې په فیصله باندې راضی شو، اوس د جرګې والا وائی چې تاسو مونږ ته چیلې یا پنځه سوه روپۍ راکړئ حال دا چې پیسې ورکونکی د دې نه نفرت کوی، مجبورا ئې ورکړې، نو آیا په شریعت کې داسې پیسې اخستل جائز دی یا ناجائز؟ او چا چې پیسې ورکړی دی د هغه څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: زیر بهادر خان ګیس کمپنی مدینة المنورة سعودی عرب ... ۶ مئی ۱۹۸۸ء

**الجواب:** دا په حقیقت کې اجرت علی التحکیم دې چې ممنوع دې. (۲) که

---

۱ ﴾ وفي الهندية "ثم الأجرة تستحق بأحد معان ثلاثة اما بشرط التعجيل أوبالتعجيل أو باستيفاء المعقود عليه فاذاوجد أحدهذه الأشياء الثلاثة فانه يملكها.
(فتاوی هندیه ۴۱۳: ۴ الباب الثاني في بيان أنه متي تجب الأجرة)

۲ ﴾ وقال العلامة الطحطاوي رحمه الله تعالي "هل يستحق الأجرام لا؟ قال الزاهدي في شرحه للقدوري لايستحق الأجر وإنمايستحقه إذا ... ...[بقيه بر صفحه آئنده...

دا پیسې طرفین مساوي طور په طور د هبې یا ډالۍ ورکړي نو په دې کې هیڅ تهمت نشته. (۱) وهوالموفق

...

...بقیه ازحاشیه گذشته] لم یکن له في بیت المال شئ.

(الطحطاوي ۳:۲۲۶ قبیل کتاب الشهادات)

وقال العلامة اشرف علي التهانوي رحمه الله تعاليٰ:

سوال: مدعی چې کله په عدالت کې دعوئ داخلوي نو بعضې ځل اشخاصو لره حکم ګرځولې شي چه هغې ته ثالث وائي. چه هغوی تحقیقات کولو سره فیصله ورکړي، په دوارو صورتونو کې د فریقینو نه څه رقم وصولولې شي،او هغه کمیشن او ثالث ته ورکولې شي، ایا دا رقم اخستل جائز دي یا نه؟

الجواب:. دا تحقیق او فیصله دواړه د قضا د باب څیني دی اوپه قضا باندې اجرت اخستل جائز نه دی، البته د بیت المال نه د کفایت په اندازه د نفقې اخستلو مستحق دي.ځکه چې دا سړې بحق المسلمین محبوس دې اود محبوس نفقه د من له الحبس د مال نه په وجه د جزاء الحبس وی، پس په دې وجه دې مفتش او حکم لره اجرت اخستل جائزنه دی خو چونکې دا د یو خاص وخته پورې دهغه په کار کې مشغوله دې ددې وخت دپاره به دده ضروری نفقه د معاملې والا د مال نه اخلی نود ضروري نفقې په اندازه ددې وخت اخستل به جائزوی. باقی کوم چې زیاتی وی هغه دې معاملې والا ته واپس کړی

(امدادالفتاوي ۳:۴۳۹ حکم اجرت حکم بتجویز عدالت انگریزي)

۱) قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالي "لم أرحکم قبول الهدیة و إجابة الدعوة و ینبغي أن یجوز له لانتهاء التحکیم بالفراغ إلا أن یهدي إلیه وقته من أحد هما فینبغي أن لا یجوز.

(ردالمحتار ۵:۳۸۹ قبیل باب کتاب القاضي إلي القاضي)

# باب اجرة الدلال والنوائب

(د دلال اجرت، د چونگی او ټیکسونو بیان)

## په منډو کې د زمیندارانو او سوداګرو نه کمیشن اخستل

**سوال:** څه فرمائي علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې په منډیانو کې د زمیندار او بیوپاریانو دواړو نه کمیشن اخستلې کیږي، آیا دا جائز ده؟ بینواتوجروا

المستفتي: رضوان الله سردهیری .... ٤ جون ١٩٧٥ء

**الجواب:** د زمیندار نه چې کوم آړهت (رقم) اخستلې شي هغه په اجرت دلال کې داخل دې او د تعامل د وجې نه فتوی په جواز ده، كمافي ردالمحتار ص٣٩، ج٥: اجارة السمسار والمنادي والحمامي والصكاك وما لايقدر فيه الوقت ولاالعمل تجوز لماكان للناس به حاجة(١) وفيه أيضا ص٥٣، ج٥: وفي الحاوي سئل محمدبن سلمة عن أجرة السمسار فقال أرجوأنه لابأس به وان كان في الأصل فاسد الكثرة التعامل(٢)

او کوم چې د سوداګر نه اخستلې شي (بورۍ اوړونکو یا د بندونکو دپاره) نو د معین کیدو په صورت کې هغه هم جائز دی.(٣) وهوالمصوب.

---

١) (ردالمحتار ٥: ٣٢ "باب الاجارة الفاسدة")

٢) (ردالمحتار ٥: ٤٤ "مطلب في أجرة الدلال، كتاب الاجارة")

وفي الخلاصة: وفي الأصل أجرة السمسار والمنادي والحمامي والصكاك وما لاتقديرفيه للوقت ولامقدارلمايستحق بالعقدلكن للناس فيه حاجة جاز.

(خلاصة الفتاوي ٣: ١١٦، جنس آخرفي المتفرقات وفيه الاستيجار على المعاصي)

٣) وقال العلامة الدكتوروهبة الزحيلي: يشترط لصحة الاجارة شروط تتعلق بالعاقد والمعقودعليه أن يكون المعقودعليه وهوالمنفعة معلوماً علماً يمنع من المنازعة.....والعلم بالمعقودعليه يكون ببيان محل المنفعة وبيان المدة... [بقيه بر صفحه آئنده...

## د تخم دپاره د قرضه ورکونکی کمیشن ایجنټ

## په لاس باندې د مال خرڅولو نه پس کمیشن اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې کمیشن اینجنټ حضرات، چې د هغوی فیصدی کمیشن مقرر دې، او د مال د خرڅیدلو نه پس ئې وصولوی، اوس مسئله دا ده چې کمیشن ایجنټ د فصل د کروندې په وخت زمیندارو ته د تخم او سرې دپاره قرض ورکوی، کله چې د زمیندارو فصل تیار شی نو زمیندار خپل مال دې کمیشن ایجنټ ته یوسی، کمیشن ایجنټ مال خرڅولو سره خپلې پیسې هم وصول کړی او کمیشن هم اخلی.

**نوټ:** کمیشن ایجنټ هم هغه فیصدی کمیشن وصولوی کوم چې د هر مال راوړونکی نه وصولوی که قرضه ئې ورکړې وی او که نه وی، کمیشن نه زیات وصولوی او نه کم، آیا دا جائز دې؟ **بینوا توجروا**

المستفتی: علی محمد بلوچ لورالائی بلوچستان...١١ ذوالقعده ١٤٠٢ھ

**الجواب:** په ظاهر کې دا معامله په ﴿کل قرض جر نفعا فهو ربا﴾ لې داخل نه ده بلکې د سوداګرئ په اصولو کې داخل ده چې د رعایت او حسن سلوک د وجې نه خپل ګاهک زیات کړې شی. (١) **وهوالموفق**

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] وبیان العمل في استیجار الصناع والعمال......وأمّاشروط الأجرة فهي اثنان :أولاًأن تکون الأجرة مالاًمتقوّماًمعلوماً.

(الفقه الاسلامي وأدلّته ٣٨٢٢،٣٨٠٨:٥ ''شروط صحة الاجارة'')

١ ﴾قال العلّامة بدرالدین العیني رحمه الله تعالی:''عن جابربن عبدالله رضي الله عنهماأنّ رسول الله ﷺ قال رحم الله رجلاً سمحاً اذاباع واذااشتري واذا اقتضي......وروي الترمذي والحاکم من حدیث أبي هریرة مرفوعاً... أنّ الله یحبّ سمح البیع سمح الشراء سمح القضاء......وفي الحدیث الحضّ علي المسامحة وحسن المعاملة واستعمال محاسن الأخلاق ومکارمهاوترک المشاحة في البیع....

[بقیه برصفحه آئنده...

## د محصول ادا کول یا د هغې مطالبه کول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې د محصول ادا کول یا د هغې مطالبه کول جائز دی یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: توکل خان C/O مکان نمبر 89D/ مسجد ورور

پاړه چنار... ٣٠ جمادی الثانیه ١٤٠١ھ

**الجواب:** بغیرد محصول د نظام نه د ښهرنظام او سهولتونه نه شی برابریدلې خو د بعض مفاسدو د وجې نه موږ عام فتوی نه شو ورکولې. **هوالموفق**

## په اډه کې د تلو راتلو ټیکس اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید یوه اډه په ټیکه باندې واخستله، اوس هغه د خپل طرف نه بعض ټیکس وصولوی مثلاً کوم ټرک چې ددې اډې نه مال وړی یا سورلئ وړی دهغوی نه هم دا ټیکس وصولوی حال دا چې د حکومت د طرف نه دا ټیکس مقرر نه دې، آیا د زید دپاره دا زیاتی ټیکس وصولول جائز دی یانه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: شیخ عبدالمنعم مدرس مدرسه مفتاح العلوم دومیل وزیرستان

**الجواب:** که دا ټیکس د تلو راتلو اجرت وی نو د دې اخستل او ورکول جائز دی، خو په دې شرط چې دا اډه د حکومت اخستلې او مملوکه وی. او که دا اډه وغیره شاملات وی نو د دې ټیکس د جواز هیڅ صورت نشته (١)

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] (عمدة القاري شرح الصحيح البخاري ١١: ١٨٨باب السهولة والسماحة في الشراء والبيع الخ)

١) قال حكيم الأمة رحمه الله :اگرآں زمین مملوک آں زمیندار است بطریق شرعي، پس کرایه اش گرفتن ازگزرندگان یاوارابر کرایه سالانه دادن هردو جائزست .في الدرالمختار: باب مايجوز من الاجارة...[بقیه برصفحه آئنده...

الاان تکون اجرة المرمة وغیرها(١) وهوالموفق

## بغیر د ضرورت شرعی نه محصول وصولول او هغه په ټیکه باندې ورکول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ د علاقې باجوړ نواب صاحب محصول یعنی ټیکس مقرر کړو لکه چې د دیر نواب صاحب په چکدره کې ټیکس مقرر کړې دې، بیا هغه په ټیکه باندې ورکړې شوې دې، په شریعت محمدی ﷺ کې د دې ټیکس څه حکم دې؟ ځکه چې پل وغیره نه دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: گل زمان زوبند والا باجوړ ښهر ... ٢٥ نومبر ١٩٧٢ء

**الجواب:** بغیر د ضرورت شرعی نه داسې محصول وصولول ظلم دې، لحدیث ابی داؤد، ﴿لایدخل صاحب مکس الجنة﴾(٢) او د دې ټیکه حرام ده لانها اجارة فاسدة(٣) او په دې خلقو باندې خرڅول جائز دی.

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] وتصحّ اجارة الأرض للبناء والغرس وسائر الانتفاعات.
واگرطریق حق عام است پس محصول گرفتن برآن حرام است.
(امدادالفتاوي ٣: ٣٩٨ ''کتاب الاجارة: راه داري مقرر کردن زمیندار'')

١ ﴾وقال العلّامة الدکتوروهبة الزحیلي: یشترط لصحّة الاجارة شروط تتعلق بالعاقد والمعقود علیه...وهي رضاالمتعاقدین...أن یکون المعقودعلیه وهوالمنفعة معلوما علما یمنع من المنازعة...أن تکون المنفعة المعقودعلیهامباحة شرعًا...أن تکون المنفعة مقصودة یعتاداستیفاء هابعقدالاجارة ویجري بهاالتعامل بین الناس.(الفقه الاسلامي وأدلّته ٥: ٣٨٠٨,٣٨٢١، شروط صحّة الاجارة)

٢ ﴾(سنن أبي داوٗد ٢: ٤٠٨ کتاب الخراج: باب في السعایة علي الصدقة)

٣ ﴾ وفي البحر: (ولایجوزعلي الغناء والنوح والملاهي)لأن المعصیة لایتصور استحقاقًا بالعقد فلایجب علیه الأجرمن أن یستحق علیه.
(البحرالرائق ٨: ٢٠، باب الاجارة الفاسدة)

لأنهم يشترون مطلقاً ثم يدفعون من تلك الأموال وهو جائز (۱) صرح به العلامة الشامي في ردّ المحتار ۲۱۹:۴ وعلى هذا الدفع يكون من غير هذا المال وكذا يكون بعد الاختلاط. فافهم. وهو الموفق

## د بائع مشتري ته د شرط نه بغير کميشن ورکول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زه دلته د يوې کمپنۍ دپاره سودا کوم، په دې سودا باندې که دکاندار ماته د زړه نه څه رقم راکړي نو آيا دا حلال دې؟ کله چې پيسې نه وی مقرر کړې شوې چې څومره به وی؟ او که د اخستلو نه مخکې مخصوص پيسې مقرر کړې شی نو بيا به څه حکم وی؟ او که دکاندار پوره کوشش کولو سره په کم قيمت باندې سودا واخلی او په خپله خوشحالۍ سره څه ورکړی نو بيا به څه حکم وی؟

المستفتی: عبدالرحمن عباسی حالا مقيم سعودی عرب

**الجواب:** د دکاندار (بائع) د طرف نه دې اخستونکی ته څه پيسې وغيره ورکول ناجائز نه دی، د تاجرانو د طرف نه دا اکرام د تجارت د ترقۍ دپاره کولې شی، دا د تجارت د اصولو نه شمار کولې شی خو د دې اخستونکی دپاره اخستل هغه وخت جائز دی کله چې په باقاعده کوشش سره دا څيز واخلی، او د مخکښې نه د کميشن اخستلو شرط او نه لګوی، او زړه د طمع

---

(۱) وقال العلّامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: رجل اكتسب مالاً من حرام ثم اشترى فهذا على خمسة أوجه: إمّا أن دفع تلك الدراهم الى البائع أوّلاً ثم اشترى منه بها، أو اشترى قبل الدفع بها ودفعها، أو اشترى قبل الدفع بها ودفع غيرها، أو اشترى مطلقاً ودفع تلك الدراهم، أو اشترى بدراهم أخر ودفع تلك الدراهم... وقال الكرخي في الوجه الأوّل والثاني لا يطيب، وفي الثلاث الأخيرة يطيب، وقال أبوبكر لا يطيب في الكل، لكن الفتوى الآن على قول الكرخي دفعاً للحرج عن النّاس.

(ردّ المحتار ۴: ۲۴۴ مطلب اذا اكتسب حراماً ثم اشترى فهو على خمسة أوجه)

نه خالي کړي یعني دا فیصله وکړي چې که دا دکاندار کمیشن رانکړي نو زه به سوا د طبعي بوجهه نه د نورو څیزونو نه نۀ متاثر کیږم، ونظیره فی رد المحتار ۳۶۲/۴ فی اقسام الرشوة: ولوقضی حاجته بلا شرط ولا طمع فاهدی الیه بعد ذلك فهوحلال لابأس به (۱) وهوالموفق

**دوکیل د اخستلو شوي څیز، زیات قیمت د موکل نه په نوم د کمیشن وصولول**

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زید د عمرو سره په کاروبار کې شریک دې، د کاروبار نوعیت څه داسې دې چې عمرو په مختلف ادارو کې (مثلا د کالجونو، سکولونو وغیره) ضروریات (مثلا د سائنس د لیبارټرئ سامان) راوړي، او هغه د دې ادارو په لاس باندې خرڅوي، د دې څیزونو د اخستلو سامان مثلا بکر ته اوسپارلې شي، هغه د سامان سودا د عمر سره په دې شرط باندې کوي چې هغه به د سامان د قیمت لس فیصده مثلا د کمیشن په طور پرېږدي، پس چې د کوم سامان قیمت عمرو نهه زره روپئ وصولوي د هغې سودا د بکر سره په نهه زره روپو کې کولو سره د لسو زرو روپو بل بکر ته ورکوي، هغه نهه زره وصولوي او بکر بل پیش کولو سره لس زره روپئ د ادارې نه وصولوي، زید وائي چې د لس فیصده کمیشن طریقه زمونږ ملګري، بکر او هم دغه شان د نورو ادارو وکیلانو ته صرف د اخستلو د ترغیب دپاره اختیارولې شي، او کله کله د عمرو سره سودا کوي خو په بل کې لیکلې شوې پیسې وصولوي نو په دې صورت کې: ۱: آیا د عمرو بکر ته زر روپئ پرېښودل د رشوت په شمیره کې راځي او دا عمل جائز دې یا نه؟

---

۱) (ردالمحتار ۳۳۸: ۴مطلب في أقسام الرشوة)

وقال ابن نجیم رحمه الله تعالی: وان طلب منه أن یسوّي أمره ولم یذکرله الرشوة وأعطاه بعدمایسوّي اختلفوافیه قال بعضهم لایحلّ له أن یأخذوقال بعضهم یحلّ وهوالصحیح لأنّه یرید مجازاة الاحسان فیحل.

(البحرالرائق ۲۶۲: ج ۶ ''کتاب القضاء'')

۲: که ناجائز وی نو د عمر دپاره په کړې شوې سودا کې به زید په پیسو وصولولو باندې گناهگار وی یا نه؟

۳: که جائز وی نو د بکر د ادارې نه زیاتی رقم وصولول یا د بل چا په دې امر کې د تعاون کولو څه حکم دې؟ **واجرکم علی الله الشکور**

**المستفتی: اصلاح الدین حقانی... ۲ ستمبر ۱۹۸۷ء**

**الجواب:** **(لن یصلح العطاء ما افسده الدهر)** مونږ دهوکې او دروغ ویلو ته څنگه جائز اوایو (۱) خو که دا بکر (کاغذی کارروایئ لره برطرف کولو سره) د خپل ذات دپاره واخلی او په اداره ئې د خپل طرف نه خرځ کړی نو په دې نیت سره به څه جواز پیدا شی. **هوالموفق**

## د دلال د اجرت حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې عمر تجارت کوی خو د هغه دومره اثرورسوخ نشته چې خپل مال پخپله خرځ کړی په دې وجه هغه خپل مال د زید په په واسطه په طور د دلالئ خرڅوی، زید دا مال بل ځای ته لیږی او بیا یې په طور د دلالئ خرڅوی، نو په دې مال سره زید او بکر دواړه دلالی اخلی، په صورت مسئوله کې آیا د زید او بکر دواړو دپاره د دلالئ اجرت اخستل جائز دی؟ حال دا چې د دواړو په فائده او نقصان کې هیڅ برخه نشته، یا د یو دپاره جائز دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: مولوی حبیب الرحمن شهباز گڑهی مردان... ۱۳ رمضان المبارک ۱۳۸۵ھ**

---

۱) قال الله تعالیٰ: {وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ الزُّورِ}(سورة الحج آیت نمبر ۳۰) وقال الله تعالیٰ: {لَعْنَةَ اللهِ عَلَى الْكٰذِبِيْنَ}. (سورة ال عمران آیت ۶۱)

عن أبي هريره رضي الله تعالیٰ عنه قال قال رسول الله ﷺ: اية المنافق ثلاث... اذاحدث كذب. (مشكوٰة المصابيح: ۱۷ كتاب الايمان، باب الكبائر وعلامات النفاق)

وفي البخاري قال النبي ﷺ "الخديعة في النّار. (الصحيح البخاري ۱: ۲۸۷ باب النجش)

**الجواب:** که د اجرت او مودې تعین کړې شوې وی نو دلال ته ورکول او د هغه دپاره اخستل جائز دی او د تعین د نه کیدو په صورت کې د اعانت او مساوات په طور به اخستل ورکول جائز وی او د اجرت په طور ورکول اخستل ناجائز دی. قال في البزازية على هامش الهندية ٥:٤٨٤: الاجارة على البياعة لاتجوزولايطيب له الأجرمالم يذكروقتاً معلوماً بأن استأجرتك اليوم بدرهم تشتري لي هذه الأثواب أوتبيع فانه يجوزولايستأجره فيشتري له ماشاء ثم يواسيه بأجرجزاء لعمله(١) فقط. وهوالموفق

## د کورونو د ټیکس حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام ددې مسئلې په باره کې چې د زید د استوګنې کور په پېښور کې موجود دې خو هغه د کاروبار په سلسله کې په بل ښهر کې په کرایه باندې اوسیږی. آیا د اسلامی قانون په رڼا کې په دې خالی کور باندې حکومت ټیکس لګولې شی؟ او که کورونه زیات وی نو بیا ټیکس لګولې شی؟ که هغه په کرایه باندې ورکړی نو بیا د ټیکس د لګولو په باره کې څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: میاں عصمت شاه دارالعلوم حقانیه... ١٦ رجب المرجب ١٤٠٥ھ

**الجواب:** د کور ټیکس غیر اسلامی ټیکس دې، شرعا د دې اخستل ناجائز دی که په مسلمان باندې وی یا غیر مسلم باندې،

---

(١) (البزازية علىٰ هامش الهندية ٥:٤٨٢ ''كتاب الوكالة، الفصل الرابع، نوع في المستبضع'')

وفي ردّالمحتار: وفي الحاوي سئل محمّدبن سلمة عن أجرة السمسار فقال أرجوأنّه لابأس به وان كان في الأصل فاسداً لكثرة التعامل.

(ردّالمحتار ٥:٤٤ ''مطلب في أجرة الدلال، كتاب الاجارة'')

كمافي عشرشرح التنوير على هامش ردّالمحتار ۲: ۷۲ "ولاشئ في داره ومقبرة ولولذمي، وفي ردّالمحتار: لأنّ عمررضي الله تعالى عنه جعل المساكن عفوًا وعليه اجماع الصحابة(١). والله الموفق

## په سړکونو باندې د مالونو محصول نه ورکول

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې دمال محصول نه ورکول حرام دی یا حلال؟ د دې شرعا څه حکم دې؟ بینواتوجروا

**المستفتی:** کچکول شیډوا کوره..... ۱۹ جولائی ۱۹۸۶ء

**الجواب:** دا انتظامی امور دی، بغیر د دې نه به په سړکونو وغیره باندې په تلو راتلو کې مشکلات جوړیږی، پس د دې نه بچ کیدل د قانونی جرم نه علاوه بداخلاقی هم ده. وهوالموفق

## مشروط یا معروف کمیشن اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې کمیشن اخستل څنګه دی؟ پس د کمیشن بیوپاری ګورنمنټ (حکومت) هم د څه حده پورې جائز کړې دې او دا کمیشن ټیکیدارانو، دکاندارانو وغیره نه اخستلې شی که دا کمیشن جائز وی نو آیا بیا د دې نه صدقه او خیرات کیدې شی؟ او که ناجائز وی نو صرف د معاشرې د مجبورئ نه اخستلو سره په غریبانانو تقسیم کړې شی نو بیا به څنګه وی؟ بینواتوجروا

**المستفتی:** ولایت شاه افیسر سپرنټنډنټ کنټونمنټ بورډ بنوں ۳۰ جمادی الثانی ۱۴۰۱ھ

---

١) (ردّالمحتار ۲: ۵۷ "باب العشر، كتاب الزكاة")

قال العلّامة ابن نجيم رحمه الله تعا تعالىٰ: (قوله وداره حر) لأنّ عمررضي الله تعالىٰ عنه جعل المساكن عفوًا وعليه اجماع الصحابة.

(البحر الرائق ۲۳۹: ج ۲ باب العشر، كتاب الزكوة)

**الجواب:** په خوشحالئ سره مشروط یا معروف کمیشن اخستل جائز دی.

یدلّ علیه مافی ردّالمحتار ۶: ۶۳ الطبع المصطفی البابی،وفی الحاوی سئل محمّدبن سلمة عن أجرة السمسارفقال أرجوأنّه لابأس به وان کان فی الأصل فاسدًالکثرة التعامل (¹). وهوالموفق

## د دلال د وکیل کیدو په صورت کې د جانبینو نه اجرت اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې دلال یا کمیشن ایجنټی یا پراپرټی ډیلر (ځمکو خرڅولو کاروباری) د خلقو جائیداد خرڅولو سره د دواړو طرفونو نه دلالی یاکمیشن والا پیسې اخستل حلال دی یا حرام؟ داسې ګڼه به د قرآن او حدیث په رڼا کې حلاله ګڼه وی که حرامه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: شاهد محمد فیصل آباد ۱۲ جون ۱۹۹۰ء

**الجواب:** که دا دلال د جانبینو وکیل او مختار وی نو صرف د یو طرف نه اجرت اخستلې شی نه د دواړو طرفو نه.(²) او که رضاکار وی نو د یو طرف نه هم پیسې نه شی اخستلې. واللہ اعلم بالصواب

---

١ ﴾(ردّالمحتار ۵: ۴۴ ''مطلب في أجرة الدلال، کتاب الاجارة'')
وفي الهندیة :وفي الدلال والسمساریجب أجرالمثل...دفع ثوباًالیه وقال بعه بعشرة فمازادفهوبیني وبینک...ولوباعه باثني عشر أوأکثرفله أجرمثل عمله وعلیه الفتوي.
(فتاويٰ هندیة ۴: ۴۵۱،۴۵۰ کتاب الاجارة،الباب السادس عشرفي مسائل الشیوع الخ)

٢ ﴾ قال العلامة ابن عابدین : وفي الحاوي سئل محمد بن سلمة عن اجرة السمسار فقال ارجو انه لابأس به وان کان في الاصل فاسداً لکثرة التعامل.
(ردالمحتار ۵:۴۴ مطلب في اجرة الدلال ،کتاب الاجارة)
وفي الخلاصة : اجرة السمسار والمنادي والحمامي والصکاک ومالاتقدیر فیه للوقت ولا مقدار لما یستحق بالعقد ولکن للناس فیه حاجة جاز. (خلاصة الفتاويٰ ۳:۱۱۶ جنس آخر في المتفرقات وفیه الاستیجار علي المعاصي)...

[بقیه برصفحه آئنده...

## د طرفینو نه کمیشن اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې زه د یو پراپرټی ډیلر (ځمکو خرڅولو کاروباری) سره په شراکت باندې کار کول غواړم، دینی لحاظ سره د قرآن او حدیث په رڼا کې زما رهنمائی وکړئ چې دا کار زما دپاره جائز ده یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** محمد مدثر شاهد آزاد کشمیر... ١٤ مئی ١٩٩٠ء

**الجواب:** د طرفینو نه کمیشن اخستل ناجائز دی، خو د یو طرف نه اخستل جائز دی (١) **والله الموفق.**

....

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] وفي المنهاج: واجرة السمسار جائزة اذا كان سمسارا من جانب واحد لكن بشرط ان تكون متعينة. (منهاج السنن شرح جامع السنن ٤:٥ ابواب البيوع باب ماجاء في التجار)

وقال المفتي محمد شفيع: سوال: دلالی اخستل جائزده یا نه؟ هرکله چه دلالی د مشتری نه وصولولې شي نو څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

الجواب: که د بائع یعنی د مالك په اجازت سره پخپله دلال مال خرڅوی نو دهغې اجرت او دلالی د بائع په ذمه ده او که دلالی محض کوشش کونکې او معامله کونکې دې او خرڅونکې پخپله بائع دې نوپه دې کې به د عرف او د رواج اعتبار وی، د رواج مطابق چې دچا په ذمه دلالی وی دهغه نه به اخستل جائز وی، په درمختار کې دی. **واما الدلال** بان باع العين بنفسه باذن ربها فاجرته علي البائع وان سعي بينهما وباع المالك بنفسه يعتبر العرف فتجب الدلالة علي البائع او المشتري او عليهما بحسب العرف جامع الفصولين، شامي لیکن جواز د مسئلې مختلف فیه دې، احتیاط په ترک کې دې، صرح به الشامي في الاجارات. (امداد المفتيين ٢:٧٠٥،٧٠٦ كتاب الحظر والاباحة، دلالی لینے کا حکم)

١) د ماقبل مسئلې تول حواله جات اوګورئ

فتاوی یوسفیه مشهوره په

# ستاسو جدید مسائل

# او د هغې حل

سره د حوالو او تخريجه

د پنځم جلد اجمالی فهرست


د زکوٰة مسئلې، نفلي صدقات،
د حج مسئلې، د قربانی مسئلې،
د غير مسلم د ذبيحې حکم، د عقيقې حکم،
د حلال او حرام خاروو مسئلې،
د دريابي ښکارونو مسئلې،
د مرغانو او د هغوی د هګيو مسئلې،
د تريخې او لرې مسئلې،
د سپی مسائل، د قسم کولو مسئلې،



مؤلف

حضرت مولانا محمد يوسف لدهيانوي شهيد

مفتی اعظم کراچی


تقريظونه

شيخ الحديث حضرت مولانا سيد شير على شاه مدنی مدظله
شيخ الحديث دار العلوم حقانيه اکوړه خټک

شيخ الحديث حضرت مولانا محمد ادريس صاحب مدظله
شيخ الحديث دار العلوم نعمانيه اتمانزئی


ناشر

جديد مکتبه رشيديه

قصه خوانی بازار محله جنګی پشاور
091-2580074